# د پښتو ادبیاتو تاریخ

## لومړی او دویم ټوک






پوهاند عبدالحی حبیبي




د کتاب ځانګړنې:

= = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = = =

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | :: د پښتو ادبیاتو تاریخ (لومړی او دویم ټوک) |
| لیکوال | :: لوی استاد عبدالحی حبیبي |
| خپرندوی | :: دانش خپرندویه ټولنه |
| چاپ زیار | :: استاد محمد آصف صمیم |
| چاپ شمېر | :: ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپ نېټه | :: ۱۳۸۴ل/۲۰۰۵ز |
| کمپوزګر | :: حاجي محمد "عمرخېل" |



چاپ او کمپیوټر ځای

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه — پېښور

Tel/ Fax: 2564513 E-mail: danish2k2000@yahoo.com

# د خپرندويې ټولنې يادښت

دانش خپرندويه ټولنه وياړي، چې د ارواښاد استاد حبيبي د پښتو ادبياتو تاريخ (دواړه ټوکه) چې له دې تېرو شپږو لسيزو راهيسې يې زموږ د علمي او ادبي حلقو د تندې په خړوبولو کې د ژووب (آب حيات) اغېز ښندلی، په نوې ولوله او نوې جوله د ادب او ادبي څېړنې مينه والو ته وړاندې کوي.

نوې ولوله مو ځکه وويله، چې موږ له څه مودې راهيسې د خپلو علمي ستو د فرهنگي ميراثونو د بيا راژوندي کونې تکل کړی دی او د ټولو هغو علمي، تحقيقي، ادبي او تاريخي آثارو بيا خپراوي ته مو لېچې رانغښتي، چې د ننني کمپيوټري او ماشيني اغېزو له لامله بيا ددغسې آثارو رامنځته کېدو هيله ـ په ښکاره ـ له زاړو کتوري غوښتل دي.

نوې جوله او بڼه دا، چې موږ د استاد حبيبي ددې تاريخ دواړه ټوکه په يوه خت او سدرۍ کې ددې لپاره وړاندې کړل، چې زموږ خپرني تجربې جوته کړې، چې ددغسې پرله پسې آثارو جلا جلا خپراوی د وخت په تېرېدو د بشپړ غونډ يا سېټ د نيمګړتيا اندېښنه راولاړوي.

موږ ددې ارزښتناک اثر د منځپانګې د کتې متې وړاندې کولو د ژمنې ترخنګ ددې اثر د لومړي ټوک د

لومړي چاپ (۱۳۲۵ل) د لیکدود د بیا راغبرگوني زړورتیا هم کړې ده. داسې چې

ددې اثر په لومړي چاپ (۱۳۲۵ل) کې استاد حبیبي د خپلې وروستۍ املا (سو) پرځای (شو) کښلی دی او دا مو په دې هیله کړې ده، چې د استاد حبیبي د هغه مهال د املایي دریځ په رڼا کې اوسنۍ لیکدودي ربړې او گډوډۍ سمې او کره شي.

هیله ده زموږ ځینې هغه ځوان لیکوال، چې د پښتو د اوسني کولتوري او سیاسي حساس برخلیک په دې حساس پړاو کې ځینو لیکدودي گډوډیو ته ځانخبري یا ناځانخبرې لمن وهي او په دې توگه په لوی سر کې د ملي یوښت کمزوري کېدو ته لار پرانیځي، له موږ سره په دې هڅه او بهیر کې ځان راګډ کړي.

په پای کې له ښاغلي استاد محمد آصف صمیم څخه یوه نړۍ مننه کوو او کوروداني ورته وایو، چې په ډېر لنډ ـ تنگ وخت کې یې د کتاب پروف وکتل. همدارنگه د دانش خپرندویې ټولنې ځوان، هڅاند او تکړه کمپوزر ښاغلي حاجي محمد عمر خېل هم د زیاتې مننې وړ دی، چې د کتاب کمپوز یې په ښه توگه ترسره کړ.

په درنښت

دانش خپرندویه ټولنه ـ پېښور

۱۳۸۴ ل

# "پښتو ادبیاتو تاریخ"
# یو ځل بیا

علامه پوهاند عبدالحي حبیبي لکه په هېواد کې چې د ډېرو نورو علمي، تحقیقي، ایجادي او ادبي هڅو یو نوښتګر قلموال دی، دغسې یې د لومړي ځل لپاره په افغاني فرهنګي ټولنه کې د پښتو ادبیاتو د تاریخ په کښلو خپل نوښتګرانه ارزښت هم پر ادبي ټولیو منلی دی.

استاد حبیبي ددې ادبي تاریخ د بنسټ تیره هغه مهال کېښوده، چې ادبیاتو پوهنځی د کابل پوهنتون په چوکاټ کې د دویم پوهنځي په توګه تازه تازه (۱۳۲۳ل) جوړ شو او استاد یې د لومړني رئیس په توګه په څارنه ژمن شوی و.

د پښتو ادبیاتو تاریخ په نامه کوم اثر او کوم مضمون تر دې دمه زموږ په فرهنګي او ادبي چاپېریال کې چا نه پېژاند او لکه استاد چې پخپله وایي:

"د لوی څښتن په مرسته د پښتو ژبې د ادبیاتو تاریخ لومړی پلا زه لیکم، پوهان پوهېږي، چې دغه کار دمخه چا نه دی کړی او نه پخوانو مونږ ته څه ابتدایي مواد ددې چارې لپاره راپرېښي دي."

(د پښتو ادبیاتو تاریخ/۱۳۲۵)

د پښتو ادبیاتو دغه تاریخ کلونه زموږ د ځوانانو په علمي او ادبي وده کې ونډه او نقش ولاره، د ادبیاتو دغه تاریخ تر لومړي چاپ څه کم درې لسیزې وروسته بیا له ګټورو

زیاتونو سره د اشت د له دې ګیلې سره د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځي له خوا چاپ شو:

"زما هیله هغه وخت (د لومړي چاپ پر وخت) دا وه، چې دا کتاب به سمدستي د لومړي صنف د محصلانو په کار ورسي او بیا چې دغه زده کوونکي استادان سي او خارج ته د لوړو زده کړو لپاره ولاړ سي او په لوړو پوهنتونونو کې لوست وکړي؛ نو به دوی د خپلې پوهنې په رڼا کې نوې او ژورې څېړنې وکړي او ښایي چې تر دې ډېر ښه او ګټور او محققانه کتابونه پر همدغه موضوع باندې وکاږي.

... زموږ ددغه لومړي صنف ښاغلي محصلان خو لویان سول، د لوړو تحصیلاتو خاوندان او دوکتوران او د پوهنتون او همدغه پوهنځي رئیسان او وزیران سول... مګر زه چې اوس ګورم، هغه امید مې ترسره نه سو، چې د تحقیق او څېړنې په میدان کې یو څوك داسې بل بشپړ او جامع تر کتاب راوباسي، چې ددې کتاب بل چاپ ته خلك اړ نه سي".

(د پښتو ادبیاتو تاریخ ـ لومړی ټوك، درېیم چاپ).

د استاد حبیبي د همدې ګیلې او ننګوني اغېزه او انګېزه وه، چې سر محقق زلمي هېوادمل یې د ادبیاتو د تاریخ د لومړی ټوك (لرغونې او منځنۍ دورې) او اروانباد روهي یې د پښتو ادبیاتو (معاصر) تاریخ دویم ټوك کښنې ته وهڅول.

دغو دواړو ادبپوهانو د ادب تاریخ او ادبي تذکرو پولې سره جلا کړې او ویې کښل چې: "ادب تاریخ ادبي پدیدې (ښکارندې) څېړي او د همدې څېړنو پر بنسټ د تاریخ او ادبپوهنې له دواړو مېتودونو کار اخلي، تاریخي مېتود دا څېړي، چې یو ادبي اثر چېرې، کله، د چا له خوا په څه ډول

شرایطو کې له پخوانیو او معاصرو آثارو سره په څه ترڅاو رامنځ ته شوي دي؟

الف: په ادب تاریخ کې یواځې د هغو لیکوالو او شاعرانو پر ژوند او افکارو باندې اوږدې خبرې کېږي، چې د یوه ادبي سبك یا ادبي مکتب بنسټ ایښوونکي یا غوره استازي وي او د ایجاداتو په هینداره کې یې د زماني فرهنګي اوضاع او تر څه ځایه ټولنیز، سیاسي او اقتصادي حالات منعکس کېږي. پر دې سربېره ځینو لیکوا او شاعران بېله دې چې د کوم ادبي بدلون ښکارندوی وي، هم یواځې د هنري کمال له مخې تر څېړنې لاندې نیول کېږي.

ب: په ادبي تذکرو کې د لیکوال یا شاعر شهرت، نوم، تخلص، لقب، مستعار نوم، د مور و پلار نوم، نومور خپلوال، زده کړه، زوکړه، ټولنیز او اقتصادي دریځ، کسب و کار، نسب، چاپېریال، کلی، سیمه، مړینه، د ښخېدو ځای، ژوندنی لوړې ژورې، ملګري، سیالان، مذهبي، سیاسي عقاید او د آثارو نومونه راځي*.

ددغو پولو او بریدونو د جوتولو په ترڅ کې یې د علامه استاد حبیبي د پښتو ادبیاتو تاریخ او وریسې د ادب تاریخ کښلي آثار داسې وارزول:

په دغو ادبي تاریخونو کې په ژبه کې هر ډول لیکلي آثار په ادب تاریخ کې څېړل کېدل، یا څېړل شوي دي حال دا چې په ادب تاریخ کې د یوې ژبې هغه آثار څېړل کېږي، چې ادبي هنري ارزښتونه ولري.

* زموږ په تېرو ادبي تاریخونو کې په تاریخ کې راغلي موضوعات او سرلیکونه د شاعرانو د نومونو له مخې اوډل شوي دي، یانې د هر شاعر تر نامه لاندې د شاعر د احوالو او

آثارو، تر بحث وروسته د هغه د کلام بیلګې راغلې دي، چې دا دود تر ادب تاریخ زیات ادبي تذکرو ته ورته دی

* زموږ په خینو ادبي تاریخونو کې د ژبې پر تاریخ او له لرغونیو اریایي ژبو سره د پښتو ژبې پر تړاو او اړیکو خبرې شوې دي، حال دا چې دا ډول خبرې او څېړنې له ادب تاریخ سره څه اړه نه لري

د علامه حبیبي په قلم د پښتو ادبیاتو د تاریخ لیکنې پیل شوې لړۍ وروسته بیا نورو ادبي مؤرخانو لکه پوهاند رشتین، پوهاند داکتر زیور، پروفیسر نواز طایر، شهسوار سنګروال، شیر افضل بریکوټي او... هم وکښل؛ خو رښتیا خبره ده، چې د علامه حبیبي د کښلیو دواړو ټوکو ادب تاریخ ارزښت د همدغو په ګوته شویو چاڼونو او تنقیحاتو په شرط، خپل ارزښت پر ځای ساتلی او په دې ارزي، چې بیا بیا د ادبي تاریخ زده کړوالو او مینه والو ته وړاندې شي.

زه ددې ارزښتناک اثر بیا چاپونه او خپراوی د علامه حبیبي د اروا د خوښې په هیله بختور او اغېزمن ګڼم او د دانش خپرندویې ټولنې ځوان او ژمن څښتن اسدالله ساپي ته د اوږده، روغمن او پتمن ژوند لپاره لاسونه لپه کوم.

درنښت

محمد آصف صمیم

۱۹/۸/۱۳۸۴

پېښور

# د لوی خدای په نامه

دېرش کاله دمخه نوی د ادبیاتو په پوهنځي کې شامل شوی وم، پوهاند حبیبي ددغه کتاب یادښتونه له ځانه سره لرل او د "پښتو ادب تاریخ" درس یې راکاوه.



تر دې دمخه په ښوونځي کې د پښتو د یو شمېر لرغونو او معاصرو شاعرانو له نامه سره اشنا وو او د آثارو او کلام نمونو پوره برخه یې موږ ته ښوولې وه: خو د پښتو ادب د تاریخ په باب مو مدون کتاب نه و لیدلی، هغه هم داسې د زیاتو منابعو او معلوماتو شتوالی یې له مهمو ممیزاتو څخه شمېرل کېږي؛ اصلاً په هغه مهال کې د دري ادب د تاریخ په اړه هم پرته له څو معدودو کتابونو نور څه نه وو.

دغه کتاب، چې د لومړي ځل لپاره د تدریس په منظور کښل شوی و، په مقدمه کې یې د ادب د موضوع او غایې او د ادبي علومو د وېش په اړه ګټورې خبرې شوې، او د ادب شاګردان ترې زیاته ګټه پورته کولای شي.

د کتاب په لومړۍ برخه کې د آريا، آرين او آريايي ژبو په موضوعاتو بحث شوی او د پښتو ژبې موقف په دې ژبو کې تعيين شوی، او هم له آريايي ژبو سره د پښتو په نسبت خبرې شوې دي.

د کتاب دوهمه برخه د "پښتون او پښتو" په باب د اهميت او ارزښت وړ معلومات لري، د آريانا په قديم تاريخ کې د لسو تېرو جګړه، چې ددې برخې له عمده مطالبو څخه شمېرل کېږي، د هغو تطبيق د افغانستان د اوسنيو قبايلو له نومونو سره، د ادب تاريخ د يوه محصل لپاره ډېر په زړه پورې او د پاملرنې وړ دی؛ ځکه ددې تېرو نومونه که څه هم په زياترو زړو متونو کې ليدل کېږي؛ خو د اوسنيو قبايلو له نومونو سره يې قرابت او تطبيق زيات تحقيق او څېړنه غواړي، چې البته استاد دغه کار په ښه توګه کړی دی ـ او په دې باب يې زياتو آثارو او ماخذو ته مراجعه ـ چې د استاد حبيبي د آثارو خاصه ده ـ د علمي کره والي يو بل دليل دی.

په درېيمه برخه کې کتاب لوستونکي ته د پښتو او ويدايي ژبې (سنسکريت) د نژدېوالي او لغوي تحليل د مطالعې لارښوونه کوي، د پښتو لغاتو تحليل او بيا له سنسکريت سره د هغو مقابله او مقايسه ډېر درونډ کار دی، زيات تحقيق او مطالعې ته اړه لري، او دا داسې کار دی، چې ښايي يوازې ددې کتاب محترم مؤلف يې تر عهدې ووځي، په څلورم څپرکي کې فاضل استاد د درېيم څپرکي په څېر تحقيقي څېړنې په پښتو او اوستايي ژبه کړې دي. که څه هم استاد دغه کتاب دېرش کاله دمخه کښلی و او په دې موده کې په آريايي ژبو او خصوصاً پښتو کې ډېرې څېړنې وشوې؛ مګر د استاد

د اثر مقام بیا هم ساتل شوی، او ډېر ارزښت لري.

په دوهم چاپ کې پوه او فاضل مؤلف د کتاب پر ټولو مطالبو دوهم نظر وکړ، او څه زیاتونې یې پر وکړې، د پښتو او اوستا په فصل کې، چې د کتاب څلورمه برخه ده، د نورو څېړنو په رڼا کې یې نوي مطالب پر زیات کړي دي، همدارنګه د کتاب په ضمایمو کې یې د کوشاني او تخاري ژبې، د پښتو دوه نیم زره کلنی شعر په زرړه پارسو، مباحث نوي ورزیات کړل، دغه ډول نوی چاپ بشپړ او با ارزښته نوم لیك Index هم لري، چې د کتاب علمي درنښت یې نور هم پسې زیات کړی دی.

دا چې اوس د پښتو ټولنې په همت د پښتو ژبې او ادبیاتو سیمینار د یونسکو په مرسته په کابل کې دایرېږي، د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځی ویاړي، چې دغه ډول با ارزښته کتاب نوموړي سیمینار ته وړاندې کوي.

دلته خپله وظیفه بولم، چې د ځوان طالب العلم ښاغلي زلمي د هغو زیارونو او ستونزو او احتیاط یادونه وکړم، چې د هغه کتاب د چاپ په چارو کې یې پر ځان منلي دي. دغه رنګه د ښاغلي لامان "مراد" ... د زیار یادونه هم کېږي.

په درناوي

پوهاند میر حسین شاه

د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي رئیس

# د لومړي چاپ سریزه

د لوی ځښتن په مرسته د پښتو ژبې د ادبیاتو تاریخ لومړی پلازه لیکم، پوهان پوهېږي، چې دغه کار دمخه چا نه دی کړی او نه پخوانو موږ ته څه ابتدایي مواد ددې چارې لپاره راپرېښي دي؛ نو ځکه به دغه زما لیکنه هم بشپړه نه وي او ښایي، چې ډېرې ماتې ګوډې ولري؛ خو ددې سره هم ښایي، چې پوهان ما وبخښي او دغه لومړی سعی که څه هم ناقصه ده. په ښه سترګه ووینې!

زه په دې کتاب کې د پښتو د ادب دورې پر څلور ډوله وېشم او د هرې دورې لپاره یو یو ټوک لیکم؛ نو به د پښتو د ادب تاریخ څلور ټوکه وي په دې ډول:

(۱) لومړی دوه اول ټوک: په دې دوره کې به دا وښوول شي، چې تر اسلام دمخه پښتو ژبه وه. که یه؟ د ژبې موقعیت په پخوانو آریایانو کې څه و؟ او پښتو د زړو آریایي ژبو سره څه نسبت لري؟ دا لومړی ټوک تر اسلام

دمخه زمانه راښيي او هر څه معلومات، چې د پښتو ژبې په خصوص کې په لاس راغلي دي پکې ليکل کېږي.

(۲) دوهمه دوره يا دوهم ټوک: د پښتو ژبې دوهمه دوره د اسلام له ابتداء څخه شروع کېږي او تر (۱۰۰۰هـ) کاله پورې رسېږي، په دې زر کاله کې چې هر څه پر پښتو ژبه راغلي، په دغه دوهم ټوک کې ليکو، د پښتو ژبې لومړني شاعران او نثر ليکونکي چې په دې زر کاله کې تېر شوي دي يو يو د دوی د ليکنو او کتابو او آثارو سره مفصل راوړو، لنډه دا چې دا دوهم ټوک د ژبې د زرو کالو تاريخ څرګندوي مشاهير، ادبي مکتبونه او مسلکونه، د ژبې اوښتنې او تطورات ټول راښيي.

(۳) دريمه دوره او دريم ټوک: دا دوره له (۱۰۰۰هـ) څخه شروع کېږي، تر (۱۳۰۰هـ) پورې رارسېږي؛ نو زموږ د کتاب دريم ټوک د پښتو ژبې د ۳۰۰ کالو يعنې درو پېړيو تاريخ دی، په دې دوره کې د پښتو ادب ښه وده کړې ده او په نظم او نثر کې ډېر تحولات پېښ شوي او نوي نوي مکتبونه او مسلکونه پکې مونډل شوي دي؛ نو ځکه دا ټوک ډېر مهم دی او د ژبې د پخو پخو خبرو بيان کوي او د ادب مهم اړخونه يې راښيي.

(۴) څلورمه دوره يا څلورم ټوک: له (۱۳۰۰هـ) څخه شروع کېږي او د ژبې د وروستنيو (۶۰) کالو پرمختګ او لوړتيا راښيي، د نوي ادب د نوو تحولاتو څرګندونه کوي، د ژبې د عصري نهضت تاريخ دی، هغه نوي حرکات، چې د پښتو ادب په دې نوې دوره کې مخ پر وده دي، سره له ادبي

خصایصو او مزایاوو څرګندوي، د څلورم ټوك لومړی برخه خو دغه ده، دوهمه برخه یې پښتو ادب ته د مضمون او محتویاتو له امله یوه عمومي کتنه ده. یعنې د پښتو ادبیاتو د شعر اقسام، عمومي مزایا ټول دلته د مثالو سره راوړل کېږي. په دې ډول به د لوی خدای په مرسته د پښتو ادبیاتو تاریخ په څلور ټوکه کې وکاږم او هغه مواد او ابتدایي معلومات به سره راغونډ کړم، چې تر اوسه مې لاس ته راغلي دي، زه دا منم، چې زما کار او سعی به خورا ابتدایي وي؛ مګر هیله لرم، چې وروستني پښتانه به دا چاره ښه بشپړه کړي، او دا بڼ به د تحقیق او پلټنې په ګلونو ښکلی او سمسور کړي؛ خو:



باغ د ګلو به سمسور وي مور به نه یو
د بلبلو به پرې شور وي مور به نه یو

کابل نوی ښار
۱۳۲۳/ د اسد پینځمه
عبدالحی حبیبي

*** 

# د دریم چاپ سریزه

د ۱۳۲۳ شمسي کال د سرطان میاشت وه، او زه د مطبوعاتو د مستقل ریاست معاون او د پښتو ټولنې عمومي مدیر وم، چې د معارف وزارت وغوښتل، چې د ادبیاتو فاکولته جوړه کړي. هغه وخته لا پوهنتون نه و جوړ شوی او فقط د طب او حقوقو دوې فاکولتې په وزارت معارف پورې نښتې وې.[1]

په ۱۱ سرطان ۱۳۲۳ د صدارت له لوړه مقامه دا فرمان نمبر ۳۰۳/۳۵۰ د ښاغلي محمد نعیم په امضا صادر شو، چې هغه وخت د صدارت معاون او د معارف وزیر و:

"ج. صلاح الدین خان رئیس مستقل مطبوعات!

ع، ص عبدالحی حبیبی معاون مطبوعات و مدیر عمومي پښتو ټولنه رابریاست فاکولته جدید التاسیس ادبیات مقرر نمودیم، اینک بشما اطلاع داده شد تا نامبرده را از ریاست مطبوعات منفك دانسته بوزارت معارف اعزام دارید.

امضای وزیر معارف".

---

[1] دا خبرې د ادبیاتو د پوهنتځي په تاریخ کې مهمې دي؛ ځکه یې زه لږ څه په تفصیل لیکم او ځکه چې دغه کتاب ددې پوهنځي لومړی نشریه وه؛ نو اوس پس له ۳۰ کالو د دریم چاپ په سریزه کې ددې تاریخګي یادونه بې ځایه نه ده.

دلته دا هم د ویلو وړ خبره ده، چې ددې کتاب یوه لنډه بې لاس او پښو نسخه په ۱۹۵۱ کال د پېښور ادارهٔ اشاعت سرحد هم په ۱۰۷ کوچنیو مخو کې د مؤلف بې اجازې چاپ کړې ده، دغه لنډونه ښاغلي محمد تقویم الحق کاکاخیل د پېښور په پښتو او د هغه ښاغلي په اصطلاح په علاقایي ژبه ترجمه کړې ده، چې د مؤلف په لیك او لهجه کې یوه ناوړه او کرغېړنه مداخله ده؛ نو ځکه زه دغه اوسنی طبع دریم چاپ ګڼم (ح).

تر دې فرمان پېنځه ورځې دمخه ما دغه پوهنځي د لومړي صنف د تدريس لپاره د پښتو ادبياتو د تاريخ دغه لومړی ټوک ليکلی و، چې په همدغه مياشت کې يې په تدريس پيل وشو؛ نو ددې کتاب راټولونه او ليکنه فقط په يوه مياشت کې وشوه، او د يوه عاجل مقصد لپاره ډېر ژر ژر وکښل شو، چې د ادبياتو د پوهنځي د لومړۍ خپرونې په ډول په ۱۳۲۵ش کال د مرحوم محمدګل نوري په اهتمام چاپ او خپور شو.

زما هيله هغه وخت دا وه، چې دا کتاب به سمدستي د لومړي صنف د محصلانو په کار ورشي، او بيا چې دغه زده کوونکي استادان شي او خارج ته د لوړو زده کړو لپاره ولاړ شي، او په لوړو پوهنتونو کې لوست وکړي؛ نو به دوی د خپلې پوهنې په رڼا کې نوې او ژورې څېړنې وکړي او ښايي چې تر دې ډېر ښه او ګټور او محققانه کتابونه پر همدغه موضوع باندې وکاږي.

دېرش کاله د يوې ټولنې په ذهني او فکري ارتقا کې لږ وخت نه دی، زموږ د پوهنې او څېړنې له مؤسسو څخه دا انتظار کېده، چې بايد د نوي عصر د مترقي وسايلو سره پوهنه او څېړنه هم پر مخ ولاړه شي او لکه د دنيا په ژبو او ادبياتو کې چې نوې څېړنې او پلټنې کېږي، په پښتو کې به هم نوي کتابونه او تحقيقونه راووځي.

زموږ ددغه لومړي صنف ښاغلي محصلان خو لويان شول، د لوړو تحصيلاتو خاوندان او دوکتوران او د پوهنتون او همدغه پوهنځي رئيسان او وزيران شول او دا د يوه معلم لپاره د خوښۍ او وياړ وړ خبره ده؛ مګر زه چې اوس ګورم، هغه

امید مې تر سره نه شو، چې د تحقیق او څېړنې په میدان کې یو څوك داسې بل خورا بشپړ او جامع تر کتاب راوباسي، چې ددې کتاب بل چاپ ته خلك اړ نه شي.

ددې کتاب لومړی چاپ اوس نه پیدا کېږي او د ادبیاتو او بشري پوهنو پوهنځی دې ته اړ شو، چې بیا یې د محصلانو او زده کوونکو د ګټې لپاره چاپ کړي. په دې درېمه طبع کې ډېر هغه نوي مطالب زیات شوي دي، چې په دې وروستیو کلو کې له نوو څېړنو او پیدا شوو آثارو څخه لاس ته راغلي دي او د پښتو ژبې پر تاریخي اصالت باندې ګواهي لي.

زه بیا خپله هغه هیله تکراروم، چې ددې کتاب څلورم چاپ ته زموږ علمي محیط اړ نه شي او تر دې زیاتره ګټور او تحقیقي آثار د نوي علم تر رڼا لاندې راووځي او دا خبره ثابته شي، چې زموږ نوي نسلونه د پوهنې پر سمه لاره په رڼو سترګو روان دي او کولای شي، چې د اسلافو بل کړی کوچنی څراغ، لوی ځلانده مشال کاندي او د تحقیق او څېړنې په رڼا کې خپل ژوند ښه سمبال کړي.

ادا زما د پنځوس کلن علمي کړاو هیله ده:

آمدم تا صد چـــمن بر جلوه ناز ان بینمت!
نشه در سر، می بساغر، گل بدامان بینمت!

۱۵ قوس ۱۳۶۳ش
جمال مېنه ـ کابل
عبدالحی حبیبي.

# د پښتو د ۱۹۰ ق، م
# یو پخوانی کتاب

د میلاد په دوهمه پېړۍ کې د باختر یوناني سلطنت پر دوو برخو ووېشل شو، چې له هغو څخه منانډر مشهور یوناني سالار د هند ډېري سیمې ونیولې او دی د هند په تاریخ کې د مالنده پاچا وبلل شو او د بودا دین یې هم ومانه.

دده مذاکره د بودايي مشهور فیلسوف ناګسینه سره د "مالنده پنهو" په نامه یادېږي او دغه کتاب په اصل کې په پخوانۍ پښتو کښل شوی و، چې پښتو نسخه یې نه ده پاته؛ مګر په پالي ژبه یې ترجمه په سیلون او برما او سیام کې وه، او یوه قدیمه پالي نسخه یې، چې په څلورمه میلادي پېړۍ کې کښله شوې ده، د جاپان په یوه بودايي معبد کې پیدا شوې ده (راجه ترنګیني د کشمیري مؤرخ کلهنه تالیف او د راجت سیتارام پنډت انګرېزي ترجمه او ضمایم ص ۷۴۵ د دهلي چاپ ۱۹۶۸م د پروفیسر سیلوین لیوي د تخاري او کوچه ژبو په حواله).

# ادب څه شی دی؟

د کتاب موضوع داده، چې د پښتو ژبې د ادب تاریخ ولیکو؛ نو تر هر څه دمخه باید یواري ادب وپېژنو، چې څه شی دی؟

ادب په عربي ژبه ښېګړې او کیاست او د ژبې او زړه ظرافت او ذکاوت ته وایي[1] چې ظرافت او حسن تناول یې لنډ لغوي تعریف دی.[2]

اما په اصطلاح کې ادب په دې دول تعریف کېږي: ادب هغه پوهنه یا ښه ریاضت دی، چې سړی د هغه په وسیله یو فضیلت او یوه ښېګړه له ښېګړو څخه مومي[3]، یا له تېروتلو او خطاوو څخه ژغورل کېږي[4]. خلاصه: ادب د لغت او اصطلاح له مخې ښېګړه ده، چې سړی له خطا او بدو څخه ساتي[5] او په خوی او خلق اړه لري، چې بیان یې د اخلاقو د علم کار دی او دلته په دې بحث اړه نه لري.

[1] اقرب الموارد.

[2] د فېروز آبادي قاموس.

[3] معیار اللغه ج، ۱، ص ۶۱.

[4] د جرجاني تعریفات.

[5] دایرة المعارف دبستاني

# د ادب علم

ادب پر دوه ډوله دی: يوه تـه طبيعـي او نفسـي ادب وايـو، چـې لـوړ يـې تعريـف راغـی او د انسـان اخلاقـي ښېګـړې، لکـه ښندنه، زغمنه (حلم) او نورې اړه پورې لري.

دوهـم ډول تـه کسـبي او درسـي ادب وايـو، چـې پـه لوسـتنه او زده کـړه او پلټنـه مونـدل کېـږي[1] او دغـه دوهـم ډول ادب تـه نـو د ادب علم هم وايي.

نـو پـه دې لنډ ډول د ادب د علـم تعريـف کـوو، چـې دغـه يـوه صناعي او کسـبي پوهنه ده، چې د بليغـي او ښې وينا ډولونـه پـه هـر حـال کـې راښيـي[2] او تـل ددغـه علم څخـه دا زده کـوو، چـې د خپـل زړه مطالـب پـه الفـاظو او قلـم پـه څـه ډول ښکـاره کـو او بـل څرنګـه پـه خپلـو خبـرو وپوهـوو؟[3] پـه دې کتـاب کـې هـم تـل لـه دوهـم ډول ادب څخـه خبـرې کېـږي او (ادبيـات) هـم هغـو علومـو او پوهنـو تـه وايـي، چـې پـه دغـه دوهـم ډول ادب اړه لـري، پـه نـوې دنيـا کـې ادب يعنـې Literature نسبتاً ارت مفهـوم لـري او د ځينـو پوهـانو تعريفونـه د ادب دغـه عصـري اړخونـه ښـه څرګنـدوي مـثلاً ((ادب د انسـان د ژوندانـه تفسـير دی)) (مياتهيوارنلډ) ددغـې خبـرې شـرح بـل يـوه سـړی پـه دې ډول کـوي: ((هغـه ابـدي او سـرمدي قـوه او شـيونه چـې قـدرت انسـان تـه ورکـړې دي، ددغـو اظهـار او ښکـاره کولـو تـه ادب وايـي)) (مياکن).

د آيرلينډ مشهور شاعر ټيس ليکي:

---

[1] د ابن هذيل عين الادب او علم الادب، ص ۵، ج ۱ په حواله.
[2] د هاشمي جواهر الادب ص، ۸، ج ۱.
[3] د سخاوي ارشاد القاصد.

((په ادب کې ژبه تشه د ژبې په ډول په کار نه ده؛ بلکې د یو لطیف فن په رنګ باید استعمال شي؛ نو هغه لطیف فن چې د ژبې په ذریعه ښکاره کېږي لټریچر یې بولي))[1]

**خلاصه**: د انسان د احساساتو، افکارو او جذباتو ترجماني د ادب وظیفه ده؛ مګر دا ترجماني به تل په داسې ډول وینا او خواږه بیان سره وي، چې پر نورو باندې اغېزه وکړي او خوندوره وي[2] په دې ډول د ادب لمن ډېره ارته ده او ټول هغه معلومات چې په ژبه او بیان اړه لري او د انسان د زړه ترجماني کوي، په ادبیاتو کې شمېرل کېږي او ادب ټولو بشري علومو او پوهنو ته هم له دې رویه خدمت کوي، چې د هر علم او پوهنې د بیان او اظهار ذریعه هم دغه ادب دی، په پښتو ژبه د ادب کلمه په دغه عامه معنی په (ژبوري) سره ښوولای شو او ټول هغه علوم چې په ژبه او ښه بیان اړه لري، پکې داخلولای شو.

## د ادب موضوع

### د پخوانو شرقیانو آراء:

پخوانو پوهانو د ادب موضوع داسې ټاکلې ده، چې ادب فقط په وینا (نظم او نثر) کې د فصاحت او بلاغت له خوا بحث کوي او ګټه یې همدغه ده، چې سړی په نظم او نثر وینا کې مهارت ومومي او عقل یې مهذب شي، زړه یې پاک شي، له ناپوهې څخه وژغورل شي، اخلاقي کمال مینده کړي، د ښه

[1] روح تنقید ص ۶۰.

[2] د بروک انګلش لټریچر، ص ۵ او د جان مورلي آن دي سټډي آف لټریچر، ص ۳۹.

خوی او د ښه عمل او لوړ همت خاوند شي[1]. پخوانو پوهانو چې د ادب موضوع منظومه یا منثوره وینا ګڼله، دوی ټول هغه علوم چې په دغو دوو ډولو اړه لري (علوم ادبیه) بلل؛ نو په یوه لنډه خبره کې دا ویلای شو، چې د ادب موضوع وینا ده او وینا هم تل له الفاظو احوال او ډولونه راښیي، د شرق پوهان دغه علوم، چې د لفظ او کلماتو څخه جوړېږي؛ نو ادبي علوم هم د لفظ او کلمې په شاوخوا کې سره ګرزي او د الفاظو رازونه او څرنګوالی بیانوي، ډول ډول وېشي. عبدالرحمان بن الانباري (۵۱۳_ ۵۷۷ ق) وایي، چې: اته علمه، لکه نحو، لغت، تصریف، عروض، قافیه، صنعت الشعر، اخبار، انساب په ادب کې داخل دي، یو سړی چې له دغو علومو څخه په یوه یا ټولو پوهېږي (ادیب) بلل کېږي[2].

محمود بن عمر زمخشري (۴۶۷_ ۵۳۹ ق) په قسطاس کې لیکي، چې علوم ادبیه (۱۲) دي او قاضي عمیدالدین زکریا بن محمود قزویني د بیضاوي په حاشیه کې وایي، چې ټول (۱۴) دي[3]. علامه یاقوت حموي د ادیب او عالم فرق داسې کوي، چې ادیب د هر شي څخه خورا ښه اخلي او تالیف یې کوي؛ مګر عالم د علم یو فن را اخلي او څېړي یې[4]. په دې ډول ددې شرقي پوهنوال په عقیده د ادب موضوع ټول اشیاء دي او وظیفه یې همدغه ده، چې د هر شي ښېګړې

---

[1] جواهر الادب، ص ۸، ج ۱؛ علم الادب، ص ۷؛ د ابن خلدون د مقدمې او د ابن هذیل د عین الادب والسیاسه په حواله.

[2] طبقات الادباء، ص ۱۱۷.

[3] کشف الظنون، ص ۵۷، ج ۱.

[4] معجم الادباء، ص ۱۷، ج ۱.

ښکاره کړي. علامه علي بن محمد چې په سيد شريف جرجاني مشهور او په (۸۳۵هـ) مړ دی، علوم ادبيه په دې ډول وېشي:

لومړی پلا د ادب علوم پر دوه ډوله دي: اصول او فروع، اصول اته علمونه دي، په دې ډول: (۱) که مفرد لفظ د اصل او ډول او مادې له پلوه وښيي، علم لغت يې بولي؛ (۲) که د مفرد لفظ صورتونه او شکلونه راوښيي علم صرف يې بولو؛ (۳) که د اصالت او فرعيت له خوا د الفاظو يو له بله نسبت بيان کړي؛ نو يې (علم اشتقاق) بولو، که داسې وي چې د الفاظو د ترکيب او سره نښلولو څېړنه وکړي نو دا ډولونه لري (۴)؛ که يې د ترکيب اشکال او د اصلي معناوو د ادا بحث کاوه علم نحوه ده (۵)؛ که بې له لغوي معناوو د افادې ډولونه په کې بيان شي (علم معاني) يې بولي (۶)؛ که د معنا ذ کيفيت او څرنګوالي بحث د ښکاره توب او پټوالي لامله وکړي، (علم بيان) يې بولي، که د هغو مرکبو الفاظو بيان وکړي، چې ځانله بېل وزن لري؛ نو دا هم لاندې ډولونه لري (۷)؛ که فقط د اشعارو وزن ښکاره کړي، (علم عروض) يې بولي (۸)؛ او که د بيتو د آخر او د پای د کلماتو بحث وکړي؛ نو يې (علم قافيه) بولو.

په دې ډول علامه سيد شريف اصولي ادبي علوم اته ګڼي او (علم بديع) هم د معاني او بيان له قسمه بولي، اما فرعي ادبي علوم څلور دي:

(۱) که د ليک او کتابت د نقوشو بحث وي، (علم خط) دی؛ (۲) که خاص د منظوم کلام څېړنه وي (قرض الشعر) دی، (۳) که خاص د نثر وينا بحث وي (علم انشاء) يې بولي (۴) که په دغو ټولو اړه نه لري، (علم محاضرات) يې بولي، چې تاريخ

او انساب هم په دغه څلورم قسم پورې اړه لري او دا علم سړي ته ښه وينا او بديه ويل ورښيي، چې د کلام معاني او ترکيب دواړه ښه او سم وي[1].

ځينې پوهان علاوه پر دغو علومو د علم قرائت قوانين هم په ادبي علومو کې داخل گڼي[2] او علاوه پر دغه د تاريخ، قصو، انسابو، مسالك او ممالکو علوم د ادب فروع گڼل شوي دي[3] او علم دواوين (د مدونو اشعارو پوهنه) او علم امثال (يعنې د متلو پوهنه) هم ادبي علوم دي[4]. يو بل علم چې احاجي واغلوطات بلل کېږي او د الفاظو له هغو استعمالولو څخه بحث کوي، چې د اصولي او قياسي قاعدو څخه مخالف وي، لکه علم لغز او معماء دا هم په ادبي علومو کې داخل دي[5].



### نوې آراء:

تر دې ځايه مو د پخوانيو ځينو شرقي پوهانو آراء د ادب په خصوص کې لنډ لنډ وليکل؛ مگر په اوسني عصر کې لکه نور ټول بشري علوم چې پر مخ تللي دي، ادب هم تطور موندلی او په نوي رنگ رنگېدلی دی؛ نو بده به نه وي چې د نوي عصر د پوهانو افکار هم د ادب په شاوخوا کې واورو. لومړی پلا بايد دا ووايو: چې نسبت پخوا ته اوس ادب ډېر

[1] کشف الظنون، س ۵۷، ج ۱.
[2] کشاف اصطلاحات الفنون د تهانوي.
[3] د همايي تاريخ ادبيات، ص ۲۸، ج، ۱.
[4] نفايس الفنون.
[5] د همايي تاريخ ادبيات.

ارت شوی او خورا ښه او مفيد شی ځني جوړ شوی دی.

نوي اصول يې مونډلي او په نوي راز راوتلي دي؛ نو به په لاندې ليکو کې ادب د اروپا او نوې نړۍ په سترګه ووينو، په غربي دنيا کې له پخوا زماني څخه خلقو پر ادب باندې څېړنې کړې دي د يونان معروف فيلسوف ارسطو خپل کتاب ((شعريات)) کې هسې ليکي: چې ټول لطيف فنون د فطرت پېښې (محاکات) دي، د انسان چې هر شی خوښ شي؛ نو يې پېښې کوي، دغه پېښې د انسان د لوړتيا اساس دی او خپلې خوښۍ او تاثرات ټل انسان د لطيفو فنونو په ذريعه نقل کوي، چې ادبيات هم له دغو څخه يو فن دی.

نيومن د ارسطو د قول شرح داسې کوي: ((ادب خارجي صداقت نه بيانوي؛ بلکې داخلي رښتيا والی ښيي، شيان نه ښيي؛ بلکې خيالات تصوير کوي)).



ګوسائين فرانسوي نقاد وايي: چې زموږ دماغ ټل د فطرت ښکلاوې او طبيعي جمال او ښه مناظرويني؛ نو ددغو ټولو ښکلاوو د ترجمانۍ خواهښت دی چې ادبيات ځني پيدا کېږي، که موږ دغه ښه ښکلي شيان وګورو؛ نو ددغو څخه مو په دماغ کې يو څه افکار او خيالات راګرزي؛ ددغو افکارو او تخيلاتو ليکنه په ښو الفاظو، جملاتو سره ادب پيدا کوي.

نيومن وايي: ((موږ ټل په خبرو سره خپل افکار څرګندوو، دغه افکار او خيالات که وليکو؛ نو ادبيات ځني جوړېږي))[1].

د برتانيا دائرة المعارف ليکي، چې ليټرېچر **Literature** يوه عمومي اصطلاح ده، د هغو تعابيرو لپاره، چې افکار د ليک ډګر ته راولي او د ادب ډولونه د نژدې خصايصو، يا

[1] روح تنقيد، ص ۷۰ _ ۷۲.

فردي افکارو او طبایعو سره برابر وي، یا د ځینو اجتماعي او سیاسي ټولنو له احواله سره سم وي او د دوی د افکارو تبلیغ کوي، اجتماعي او سیاسي اصول یې څرګندوي[1].

د امریکا یو اوسنی پوهاند لیکي: چې د لیټرېچر کلمه له لاتیني **Litteratura** څخه ده، چې ماده یې هم **Littera** یا **Litter** یعني نوشته او لیك ده او عام تعریف یې دادی: هغه عبارت، چې د افکارو او معانیو نماینده ګي د الفباء د تورو په ډول کوي، اما محدود او مروج تعریف یې دادی: چې ادب هغه سم او مهذب شوي او صنعتي بیانونه دي، چې د تنقیدي علومو تر سیوري لاندې وي او د افکارو د څرګندونې او ښکاره کړنې او د ښکلا او ښایست له پلوه هم قیمت ولري.
جان مورلي **Morly** په لنډ ډول وایي: ټول هغه کتب ادبیات دي، چې په هغو کې اخلاقي حقایق او عمومي اوضاع په ښه ډول ښکاره کېږي او ټول شیان د عمومي حقیقت سره ښیلوي[2] په نوې دنیا کې د ادب څانګې او ښاخلي د ونې ډېرې شوې دي، چې اکثر علوم په ادب کې داخل دي. حتی یو غربي مفکر وایي: ادب فقط دوه ښاخه لري، که له عقله سره اړه ولري ساینس یې بولو او که د خیاله سره اړه ولري؛ نو شعر بلل کېږي، په دې ډول نو مثبت علوم او ساینس هم د ادب له دایرې څخه نه شي وتلای؛ نو دلته لازمه ده: چې د ادب عصري موضوع ښکاره کړو، ه د دنیا مختلفو ادبیاتو ته وګورو، مقاصد او عناوین یې تر نظر لاندې ونیسو؛ نو ښایي، چې لاندې موضوعات ټول په ادب کې داخل وي:

[1] د بریتانیا انسایکلوپیډیا ص، ۲۰۶، ج ۱۴.
[2] امریکا نا انسایکلوپیډیا، ص ۴۷۲، ج. ۱۷.

(الف) هغه ليکونه، چې د حقايقو څرګندونه يې مقصد وي، چې دا لاندېنۍ څلور څانګې لري:

(۱) هغه ليکونه، چې د مشق لپاره وي؛ لکه د ښوونځيو مشقي لوستونه.

(۲) واقعاتي ليکنې، چې لاندې ډولونه لري:

(الف) ورځنۍ ليکنې، لکه کورني خطوط، حسابونه، روزنامچې، چې خپرونه يې مقصد نه وي.

(ب) کورنۍ او شخصي ليکنې او شخصي ليکونه، چې د خپرونې لپاره وليکل شي؛ لکه وصيت، هجو.

(ج) رسمي ليکنې، چې نه خپرېږي؛ لکه پاسپورټ، قباله او دغسې نور.

(د) رسمي ليکنې، چې خپرېږي؛ لکه قوانين، اصول نامې او نور دغسې.



(هـ) نور عام ډول ليکونه، چې د خپرونې لپاره کښل کېږي؛ لکه سياسي او داخلي خبرونه، جغرافيايي او تاريخي احوال، د جرګو او حکومت رويدادونه.

(۳) د حقايقو د ښوونې ليکنې؛ لکه:

(الف) د ښوونځيو او مدرسو د لوست کتابونه.

(ب) تحقيقي کتابونه، چې د لوړو او پوهو خلکو لپاره وي؛ لکه تواريخ، سفرنامې، قصې او نور.

(ج) د خاصو خاصو فنونو پلټنې د مخصوصو پوهانو له خوا.

(د) د خوښۍ، خندا او ټوکو ليکنې؛ لکه کيسې، معماوې، ټوکې او نور دغسې.



(ب) هغه لیکونه، چې د تخیلاتو ښکارونه یې مقصد وي:
او دا لاندېنی څلور څانګې لري:
(۱) هغه لیکنې، چې د شخصي ژوندانه داخلي او دنني محسوسات ښکاره کوي؛ لکه عشقي بدلې، سندرې او خطونه.
(۲) تنقیدي او د کره کړنې لیکونه، لاندېنی څانګې لري:
(الف) څرګند کره کول: چې فیلسوف او ادیب یې په ښکاره لیکي.
(ب) پټ کره کول: چې لیکوال خپل انتقاد د کیسې په لباس کې وکړي.
(ج) د بدو اشوا کولو انتقاد.
(د) د ښو ښکاره کولو انتقاد.
(۳) هغه لیکنې، چې د انساني پوهنې د زیاتولو لپاره وي؛ لکه د ساینس تجربې.
(۴) د انساني فطرت د تهذیب، سموالي او سپېڅلتوب لپاره لیکنې؛ لکه:
(الف) د اخلاقو د ښه والي لپاره (اخلاقي لیکنې).
(ب) د دین او مذهب د تبلیغ لپاره (تبلیغي لیکنې)[1]

په دې ډول د ادب موضوع د حقیقت او تخیل په څانګو کې وېشله کېږي او لمن یې هم خورا ارته ده او رښتیا هم داده، چې ددې عصر ادب دغه ټول وظایف په ښه ډول اجرا کوي. ددې لپاره، چې د ادب ارته لمن او د موضوع احتوا په ښه ډول تاسې ته ښکاره شي؛ نو د یوه بل الماني پوهاند رایه هم د ادب د موضوع پر وېشنه رانقل کوم:

[1] د ادب وېشنه او ګوست August کړې ده، ص ۷۶، روح تنقید.

(۱) د مطلب او معنا په لحاظ، چې لاندې څانګې لري:
(الف) هغه لیکونه، چې د لطیف فن په ډول کښل شوي وي.
(ب) هغه لیکونه، چې د لطیف فن په ډول نه وي کښل شوي.
(۲) د ژبې او بیان د ډول په لحاظ لاندې څانګې لري.
الف: منطقي او استدلالي لیکنې.
ب: جمالیاتي او د ښکلا لیکنې.
(۳) د موزونیت او موسیقیت یعنې وزم لرنې او ږغونې په لحاظ لاندې څانګې لري:
(الف) آزاد او بې وزمه لیك (نثر).
(ب) وزم لرونکی لیك (نظم).
اوس چې د مشرق او مغرب د پوهانو آراء او افکار د ادب د موضوع په وړشنه او پلټنه کې وویل؛ نو دا لاندې نتیجه او لنډیز ځنې را اخلو:
ټولې هغه پوهنې، چې په ژبه او د انسان په پوهولو او پوهېدلو اړه لري، او د افهام او تفهیم ذریعې دي، ادبیات دي او که ادبیات نه وي؛ نو هېڅ سړی خپل مقصد بل ته نه شي ښکاره کولای او د انسانانو د افادې او استفادې لارې تړل کېږي او ټول علوم او انساني مزایا چې په وینا او پوهېدنه پورې اړه لري، له منځه وځي، او د انسان انسانیت هم ورسره محوه کېږي، په دې ډول نو ادب د انساني ارتقاء او ذهني لوړتیا اساس دی او نن چې انسان هر څه لوړتیاوې موندلې دي، د ادبیاتو په برکت سره دي او که ادبیات نه وای؛ نو به انسان هم اعجم حیوان وای.

# د ادب تاریخ




## (موضوع _ اصول _ غایه)

### موضوع:

تاسې دمخه ولوستل، چې د ادب لمن څونې ارته ده او د انساني معلوماتو او پوهنو څونې لویې برخې په ادب کې دننه ګڼل کېږي.

د انسانانو ژوند تل د ودې او لوینبست تر قانون لاندې دی، هر وخت اوښتنې، انقلابونه، تغییرات پېښېږي او دا اوښتنې تل د انسان د ژوندانه ډولونه هم اړوي، له یوه رازه یې بل راز کوي؛ خو هر کله ټوله موجودات د کمال خوا ته ځي او د بشپړتابه پر لوري درومي. ددې قدرتي او فطري بشپړتیا او تکامل سره د انسان د ژوندانه ټول ارکان او اجزاء تغییر مومي، اوړي، له یوه حاله پر بل حال کېږي، چې ژبه او ادب هم تر دغه قانون لاندې دي. د تاریخ پاڼې دا خبره په ښه ډول رابښیي، چې یو وخت د انسانانو یوې ډلې یوه ژبه ویله؛ دا ژبه د افهام او تفهیم آله وه، لومړی به ډېر ناقصه وه، وروسته به تکمیل شوه، ادبیات به یې ومومندل، کتابونه به په ولیکل شوه؛ خو تر څو پېړیو وروسته به دغه مکمله ژبه ورکه شوه، بلې به یې ځای ونیوه.

د قدرت دا تخلیق او لویونه او د بیا نشت کړنه او له منځه ایستنه پر هر شي باندې جاري دی، غونډ ملتونه ورك شوي او پر ځای یې نور اولسونه درېدلي دي، عادات، اخلاق، علوم او د انساني ژوندانه ټول لوازم او ملحقات تر دې حکم لاندې دي، ژبې او ادب هم دې اوښتلو او تحول ته غاړه ایښې ده.

د یوې ژبې د ادب تاریخ هم ټول هغه تحولات او لوړتیاوې

او احوال چې له ابتداء څخه ورپښېږي بیانوي؛ نو لکه د ادب موضوع چې ډېره ارته او پراخه ده، د ادبي تاریخ موضوع هم هغسې ده، د ژبې پخوانی حال او وروستني انقلابونه او ټول تحولات ښیي، په ژبه کې چې څه علوم او فنون موجود وي، تاریخ یې څرګندوي، د یوه ملت د فکري ارتقاء او علمي لوړتیاوو احوال او اوضاع مفصل لیکي، د ټولو پوهانو د ژوندانه پېښې او د دوی کتابونه او علمي کارنامې او آثار ښیي؛ نو داسې هم ویلای شو چې د ادبیاتو تاریخ په حقیقت کې د ملت د عقلیت او د ژوندانه د ډېرو مهمو څانګو تاریخ دی، د ملتو د لوړتیا او ځوړتیا، د ودې او پرمختګ ټول احوال بیانوي، که د یوه ملت تاریخ د ادب له ښېګړو او پلوشو څخه تش وي؛ نو هغه تاریخ به خامخا په وینو لړلی وي او بې له جګړو او ښخړو به د بل څه بیان نه کوي؛ نو د عمومي تاریخ یوه مهمه څانګه دغه د ادب تاریخ دی، چې سیاسي او اجتماعي تاریخ هم له ادبي تاریخ سره مرسته کوي او د یوه ملت تاریخ چې له ادبي څانګې څخه ځان نشي مستغني کولای، سبب یې دادی، چې تاریخ تل د ملتو د لوړتیا او ځوړتیا څرګندونه کوي او ددغو علت او اصلي سبب هم د ملتو علوم، آداب او اخلاق دي؛ نو د تاریخ مهم کار او غوره وظیفه هم دغه ده، چې د یوه ملت عقلاني لوړتیاوې او علمي او ادبي پېشرفتونه ښکاره کړي او دا ټول د ادبیاتو د تاریخ کار دی.

**اصول:**

د ادب د تاریخ د لیکنې اصول ډول ډول دي، هر څوک یې پر خپل ذوق سم لیکي؛ خو دلته به یې ځینې اساسي ډولونه،

چې د تاریخ ادبیات عناصر بلل کېږي، لاندې وښودل شي:

(۱) ژبې ته د پیدایښت له ابتداء څخه بیا تر اوسه ګوري او ټول هغه تغییرات چې ورپېښ شوي دي بیانوي، یې، مثلاً د حروفو، نومونو، افعالو او مشتقاتو پیدایښت، د تغیر اسالیب، د کلیماتو جوړېدلو لارې، د اصواتو او ږغونو شرح، د ژبې عنصري ښکرې پلټل، د ژبې ریښې معلومول او له نورو ژبو سره یې پرتله کول چې دې بحث ته (فیلالوژي) یا (د لغاتو فلسفه) وایي.

(۲) ژبې ته ګوري چې د نورو ژبو کوم اثرونه پر لوېدلي دي، معاني او الفاظ یې څنګه سره اوښتي دي؟ نوي کلیمات تر دغه اجنبي اثر لاندې څنګه پیدا شوي دي؟

(۳) په ژبه کې چې څه علمي او ادبي ذخایر شته، هغه ټول راښیي. مؤلفین او لیکوال ټول بیانوي او په دې ډول د یوه ملت عقلاني او علمي لوړتیا روښانه کوي.

(۴) د ادب تاریخ د ملت کیسې او نکلونه او روایات ټول تحلیل کوي او له دغو څخه د دوی ادبي ذوق، افکار، ملي عقاید او آراء راوباسي، د تعبیر اسالیب چې د عوامو په کیسو کې شته را اخلي او ساتي یې.

(۵) د ادب تاریخ ټول افواهي اشعار (نالیکلي آثار) او متلونه او ملي سندرې پلټي او له دغو څخه د یوه ملت د ادبي ذوق او استعداد معلومات اخلي.

(۶) د ادب تاریخ ټول مدون او لیکل شوي آثار او کتب (لرې وي که ډېر) راټولوي او له هغو څخه د ملت د ژبې، فکر او عقلاني تجلیاتو په خصوص کې معلومات اخلي.

(۷) د ادب تاریخ هغه اوښتنې او لوړتیاوې چې د علم او

ادب لــه لارې يــو ملــت تــه وړپېښېــږي ښيــي او د ادب اهميــت او غوره والی د بشر په تاريخ کې ښکاره کوي.

(۸) د ادب تــاريخ دا ښيــي چــې د يــوې ژبــې وينـا او کـلام (نظـم او نثــر) څنګــه پيــدا شــو؟ څنګــه يــې لوړتيــا ومونـدلــه؟ کــومې دورې يــې تېــرې کــړې؟ چــا خــدمت ورتــه کــړی دی؟ کــوم کــوم معــاني او مقاصــد او مضــامين پکــې شــته؟ خاصــيتونه او مزايــا يــې څــه دي؟ دا ژبــه کــومې ښېګــړې لــري، چــې هــا نــورې ژبــې يــې نه لري؟

**غايه:**

څنګــه چــې د ادبيــاتو تــاريخ د هــر ملــت د علمــي او عقلانــي لوړتيــا تــاريخ دی؛ نــو کــه ســړی د يــوې تــولنې د ادب تــاريخ ولــولي، ټــول د تــاريخ مهــم حــوادث او وقــايع يــې ورتــه څرګندېږي، اجتمــاعي او سياســي رشــد يــې ورمعلومېږي، تــاريخي مفــاخر يې ورته ښکاره کېږي.

مــوږ چــې د پښتــو ژبــې د ادب تــاريخ لولــو، خپــل مفــاخر راتــه څرګنــدوي، د ملــي ښېګــړو ســره مــو اړيکــې ټينګــوي او پــه آينــده کــې د علمــي او ملــي ارتقــاء لپــاره د يــوه نــافع او پــر ملــي اســاس د ټينګ ادب د روزنې لارې راښيي.

پــه يــوه ملــت کــې چــې ادب لــوړ نــه وي، د هغــو تهــذيبي او مــدني ســويه هــم کښتــه وي، علمــي او اجتمــاعي لوړتيــا نــه شــي ليــدلای؛ نــو مــوږ چــې د خپلــې ژبــې د ادب تــاريخ ولولــو لــوړ او ځــوږ بــه يــې راتــه ښکــاره شــي او پــه آينــده کــې بــه وکــړای شــو چــې يــو ښکلــی او مترقــي ادب خپــل قــوم او ملــت تــه ورکــړو او دا غايــه زمــوږ پــه ملــي ژونــدانــه کــې ډېــره مهمــه، لــوړه او ګټــوره ده او د ملي عمران ستنه هم پر دغه غايه باندې ټينګه ولاړه ده.

# لومړۍ برخه

# آريـــا او آرين



د ژبو وېشنه ـ هندو اروپايي ژبې ـ آرايي اقوام ـ باختري
آرين آريايي ژبه او پښتو ـ د آريانا کلمه ـ آريانا ويجه ـ آريا
ورشه ـ نتيجه:

# د ژبو وېشنه

## ژبــــه:

ژبـه هغـه ږغونـه دي، چـې ددغـو پـه وسـيله هـر اولـس د خپلـو مقاصـدو تعبيـر کـوي، يـا هغـه اصـطلاحي وينـاوې دي، چـې د يوه قوم پر ژبه جاري وي، په عربـي يـې لسـان يـا لغـت بـولي او لـه يونـاني لوغـوس څخـه بـه جـوړ شـوی وي، چـې معنـی يـې کلمـه ده[1] او په اروپايي اصطلاح يې لانګويج **Language** بولي.

ددې ږغونـو انـواع د ملتـو پـه انـدازه مختلـف او هـم ډېـر دي؛ نـو ځکـه پـر نـړۍ ډېـرې او ډول ډول ژبـې پيـدا شـوې او هـر اولـس ته خپل ږغونه اسان او نور پردي ږغونه ورته ګران دي.



## لوړې ژبې او کښتې ژبې:

هغـه ږغونـه چـې انسـاني يـې تـر خـولې راباسـي، ډول ډول دي او بيـا هـم د ږغـو مرکبـات متفـاوت دي؛ نـو چـې د ملتـو د خولـو ږغونـه او بيـا يـې هـم مرکبـات ډېـر دي؛ ځکـه ژبـې هـم پـر دنيـا ډېـرې دي، د ژبـو پوهـانو د نـړۍ ژبـې پـه ډول ډول وېشـلې دي، يـوه مشـهوره وېشـنه يـې دغـه لانـدې ده، چـې پروفيسـورا ډيلـنګ تـه يـې نسـبت کېـږي، دی وايـي، چـې ژبـې د سـموالي او تهـذيب په درجه دوه ډوله دي:

---

[1] زبدة الصحايف فی اصول المعارف، ص ۹۷.

### (۱) کښته ژبې:

چې لغات یې د بیان له امله کښته او الفاظ یې خورا لنډ او یوه یوه هجا دي، د اسم او فعل او حرف فرق یې نه کېږي، له یوه لفظه به یې د نورو مستقلو الفاظو په نښلولو سره فعل او حرف جوړېږي، د جنوبي افریقا د زنګیانو او د امریکا د هندیانو او د شمال او شرقي ایشیا او د چین ژبې له دغې ډلې څخه دي.

### (۲) لوړې ژبې:

هغه ژبې دي، چې لمنې یې ډېرې پراخې او ارتې دي او هر راز تعابیر چې انسان ورته اړ وي، لري یې او د الفاظو هجاوې یې هم ډېرې دي. د متمدن عالم ژبې له دې ډلې څخه دي او دا هم پر دوه ډوله وېشل کېږي:



### الف: اوښتونکې (متصرفه) ژبې:

چې د تصریف او اړولو او اشتقاق قابلیت لري، په کلماتو پورې یې دمخه هم ملحقات نښلي او وروسته هم، یعنې ځینې نخښې لري، چې د کلمې دمخه راځي او په عربي یې (سابقه) او په اروپايي اصطلاح یې **Prefixes** او په پښتو یې (مخنۍ) بولي.

دغسې ځینې نورې نخښې هم په دغو ژبو کې شته چې تر کلمو وروسته راځي او په پښتو یې (وروستنۍ) او په اروپايي اصطلاح یې **Suffixes** او په عربي یې (لاحقه) بولي او دغه مخنۍ او وروستنۍ ځانله بېلې معناوې هم لري. اوښتونکې ژبې دوې مشهورې څانګې لري:

لومړۍ څانګه: آریايي ژبې دي، چې زموږ د وطن آریايي

نسل خبرې په کوي، هر ځای چې زموږ له خاورو څخه آریایان تللي دي، د دوی ژبو ته آریایي وایو او اروپایان دې ژبو ته (هندو اروپایي) Indo-European هم وایي. دا ژبې شمالي او جنوبي څانګې لري، شمالي یې: د اروپا آریایي دي، لکه لاتیني Latin یوناني Greeque؛ سلتي Celtique؛ سلاوي Slave؛ تیوتونیك Teutonique جنوبي یې د ایشیا آریایي ژبې دي، لکه سنسکریت، زند، پښتو، پارسو.

دوهمه څانګه: سامي Semitique ژبې دي، چې پخوانیو متمدنو قومو، لکه بابل، اشور، فنیقه ویلې. سامي ژبې دا ډولونه لري:

آرامي: د بابل زړه ژبه ده چې سریاني او کلداني یې څانګې دي. عبراني چې تورات په دې ژبه دی او اسرایلیانو آرامي او کلداني سره ګډه کړه.



عربي: په سامي ژبو کې خورا ښه او مشهوره ژبه ده چې عربي ملتونه یې وایي او د اسلام او قرآن مقدسه ژبه بلله کېږي، حبشي ژبه هم د عربي څانګه ده.

## ب: نا اوښتونکې (غیر متصرفه) ژبې:

دا ژبې کلك او جامد اصول لري، چې په بنا کې یې کوم تغییر نه راځي او د ځینو ادواتو په نښلولو سره اشتقاق ځني کېږي چې دغه ادوات ځانله معنا هم نه لري او اصول یې بې اوښتلو پاتېږي، توراني ژبې چې یوه یې تورکي او هم مغولي ژبې چې تنقاسي، او غزالي، اوزبکي یې څانګې دي ټولې نا اوښتونکې ژبې ګڼل کېږي.[1]

[1] الفلسفة اللغویه، ص ۹ _ ۱۵؛ زبدة الصحایف، ص ۹۸.

# هندو اروپایي ژبې
# یا آریایي ژبې



د ژبو د وېشنې یو لنډ ډول مو دمخه ولوست، پوهانو دا وېشنه په ډول ډول کړې ده، بې له هغې لوړې وېشنې یوه بله داده: چې د پنځو لویو وچو ژبې جلا جلا وېشي[1]. اما ښه او معتبر تقسیم دادی چې ژبې د ریښې او اصولو او قواعدو د شباهت له امله ووېشل شي؛ نو ځکه دلته ما دغه وېشنه غوره کړه:

تاسې ولوستل چې په لوړو او اوښتونکیو ژبو کې یوه مشهوره ډله هندو اروپایي یا آریایي ژبې دي چې د دنیا یو مشهور پښت یعنې آریایي اقوام یې وایي. دا ژبې په سموالي

---

[1] بالبی دایتهنو گرافی اطلس.

او ارتـوالي کـې خـورا ښـې ژبـې دي او د بشـر مـدني اقـوام هـم پـه دغـو سـره ږغـېږي؛ څنګـه چـې زمـوږ ژبـه پښتـو هـم لـه دغـو ژبـو څخـه شـمېرل کـېږي؛ نـو لـږ څـه ډېـر د آریـایي ژبـو څېړنـه دلتـه ښایي:

آریـایي ژبـې د ږغونـو او اصـولو لـه مخـې دوې ډلـې دي چـې هـره ډلـه پـه خصوصـیاتو او الفـاظو او مخـارجو او تلفـظ او د کلمـو پـه تغییـر کـې سره ورتـه ده او لـه یـوې کورنـۍ څخـه ګڼـل کېـږي. ددې تـوپیر لپـاره د ژبـو پوهـانو ټـولې آریـایي ژبـې دوې ډلـې کـړې دي: چـې لومـړۍ ډلـه سـیتم (Satme) بـولي او دوهـم ډله کینتوم (Centum) بولي.

## د وېشنې لار:

ویشنه پر دغه علمي اساس بنا ده:

پوهـانو فقـط یـوه کلمـه (سـل، صـد ۱۰۰) معیـار کـړې ده او حـروف یـې د ژبـو د وېشـنې شاخصـه ګڼـي، پـه لاتینـي سـل تـه کینتـوم (Centum) وایـي او پـه سنسـکریت کـې یـې (سـیتم) بولي؛ نو ټولې هغه آریـایي ژبـې چـې ددې کلمـې پـه سر کـې (س) یـې (ن) وي، د (سـیتم) ډلـه یـې بـولي او کـه لکـه لاتینـي د سـل د کلمـې پـه سر کـې (ك)، یـا (هـ) وي او وروسـته نـون هـم ولـري، دغـه ډلـه د کینتـوم ډلـه بلـل کېـږي، عمومـاً آریـایي غربـي ژبـې د کینتـوم لـه ډلـې او شـرقي آریـایي ژبـې د سـیتم لـه ډلـې دي[1]، د مثـال پـه ډول: پـه اوسـتا کـې سـل تـه سـیتم او پـه سنسـکریت کـې سـل تـه (شـتم) وایـي، پـه پارسـو کـې یـې (صـد = سـد) بـولي. پـه روسـي یـې (سـتو) بـولي چـې (ن) نـه لـري؛ نـو څکـه دغـه ژبـې د

[1] د ګوردن چایلد ـ آرینز او د دوکتور شفق ـ تاریخ ادبیات ایران، ص ۴.

سیتم له ډلې څخه ګڼو، بالعکس سل ته په لاتیني کینتوم وایي، په انګلیسي او فرانسوي او ایټالوي کې هم (ن) لري؛ نو ځکه یې د کینتوم په ډله کې بولو.

لاندې یې دغه مثالونه لږ څه واضح وګورئ:

| د سیتم ډله: | د کینتوم ډله: |
|---|---|
| سنسکریت = ستم | لاتیني = کینتوم |
| پارسو = سد (صد) | یوناني = هیکاتون |
| هندي = سو | انګلیسي = هنډریډ |
| روسي = ستو | الماني = هنډریډ |
| پښتو = سل | فرانسوي = سانت |

د ستم او کینتوم پر علمي اساس ټولې آریایي یا هندو اروپایي ژبې د لاندېنۍ نقشې په ډول وېشل کېږي:





په دې انځور کې تاسې ته د نړۍ د مشهورو آرایي ژبو ویش ښکاره شو او ومو لیدل چې د سیتم له څانګې څخه یوه ژبه هم پښتو ده او دا ژبه د سنسکریت او اوستا (زند) سره ډېره نژدې خپلوي لري او درې سره د یوې مور لوڼې دي.

## د آریایي ژبو یو له بله سره نژدېوالی:

د ژبو پوهان تل د وېشنې او ډلې ډلې کولو پر وخت د ټولو ژبو اساسو ته ګوري، د قواعدو مشابهت او د لغاتو د ریښو سره نژدېوالی یې په غور ویني، که په دغو اساسونو کې ژبې سره نژدې او سره ورته وي؛ نو دوی هغه ژبې په یوه ډله کې شمېري او وایي چې له یوې کورنۍ څخه دي.

وګورئ دغه ژبې چې موږ په مخنې انځور کې آریایي ژبې وګڼلې او دوی مو د هندو اروپایي ژبو په غټه کورنۍ کې داخلې کړې، ټولې په اساسو، قواعدو او لغاتو کې ډېرې سره نژدې دي، که دغه لاندې جدول په غور وګورئ دا به درته ښکاره شي، چې په رښتیا دا ژبې له یوې کورنۍ څخه دي.

| پښتو | پارسو | سنسکریت | اوستا | لاتیني | انګلیسي | جرمني | فرانسوي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پلار | پدر | پاتري | پیتر | پتر | فادر | فاتر | پیر |
| مور | مادر | ماتري | ماتر | ماته را | مدر | موتر | میر |
| خور | خواهر | سواچر(سوس) | هوګهر | سوردر | سیستهر | شوستر | سور |
| ورور | برادر | بهراتر | براتر | براتر | برادر | برودر | فریر |



# آریایي اقوام

## د دوی ښت او خپرېدنه:

دمخه مو وویل چې پښتو ژبه د هندو اروپایي یا آریایي ژبو څخه د سنسکریت او اوستا خور ده، اکثر غربي پوهان چې د پښتو پلټنه یې کړې ده، دا خبره مني، دوی وایي چې پښتو له سامي او نورو ژبو سره اړه نه لري، له هندو اروپایي ژبو څخه ده[1].

هندو اروپایي ژبې چې انډو، ژرمانیك یې هم بللې، د آریا ښت ژبې دي، آریایان د انسانانو یوه خورا مهمه ډله ده، چې له پېړیو پېړیو څخه دوی پر مځکه د لوړ مدنیت خاوندان دي او د شرق او غرب غټې ملتونه له دې ښته څخه راوتلي او پیدا شوي دي.

آریایان تر خپرېدلو او ډېرېدلو دمخه په یوه ځای کې اوسېدل، چې دوی په خپله پخوانۍ ژبه (آریانا ویجو Aryana- vaego باله، یعنې د آریا مځکه یا د اصیلانو او نجیبانو او پاکزادانو هېواد[2].

وایي چې د دوی د هېواد هوا خورا ښه وه، مځکې یې

---

[1] راورټي انګلیسي محقق د خپل پښتو ګرامر په دیباچه، ص ۲۸ کې د پروفیسور کلپرت Klaporth او پروفیسور ډورن Dorn او الفنسټون Elphinston او نورو پوهانو افکار د پښتو په باب رانقل کړي دي، چې دوی ټول دغه خبره مني.

[2] د ګیګر الماني د خاوري ایرانیانو تمدن، ج ۱.

ډېرې ابـادې وې، دوې مياشـتې يـې پسـرلی و، نـورې مياشـتې بـه يخنـي وه. مـؤرخين پـه دې خبـره کـې ډېـر سـره مختلـف دي، چـې آيـا دغـه (آريانـا ويجـه) چېـرې وو؟ ځيـنې وايـي د بالتيـک غـاړې او ځينې وايي چې د تورسـين شمالي غـاړې دي، بلـه ډلـه هسې ګڼي، چې د خزر د ډنډ شرقي او شمالي غـاړې د آريايـانو اصلي مرکز وې.

خـو ځيـنې پوهـان دې تـه هـم تللـي دي، چـې د آريايـانو د تـوکم اصـلي ځـای د پـامير لـوړې مځکـې او د آمـو سرچينې دي. پـه هـر ډول !د آريـايي تـوکم اصـلي ځـای هـر چېرې چې و؛ خـو پـر دوی هغـه ځـای تـنګ شـو او لکـه پـه اوسـتا کـې چـې راوړي، هغـه مځکـه يـو پـه يـوه سـړه شوه چـې د خلکـو د خـوړو لپـاره څـه نـه پـه کـې مونـدل کېـدل؛ نـو ځکـه آريـايي تـوکم لـه هغـې مځکـې څخـه لېږدنـه (هجـرت او کـوچ) وکـړ، ددغـه لېـږد زمانـه څلور زره کالـه (ق م) تخمـين کېـږي[1] دوکتـور پـي، ګلس P. Giles د کېمبـرج د پوهنتـــون د مقايســـوي فيلالـــوژۍ پروفيســـور ددغـــو آريـــايي اقوامو په باب هسې معلومات راکوي:

((هنـدو آريـايي نـوم پـر آريـايي اقوامـو او ژبـو تـر ټولـو دمخـه دوکتـور تهومـاس يـنګ Dr. Thomas young ايښـی دی[2] امـا د هنـدو ژرمـن Indo- Germanic اصـطلاح تـر ټولـو دمخـه پـه ۱۸۲۳ع کـال يـوه جرمنـي ژبپوهانـد کليپـروت KLAPROTH بـاب کـړه. دې علمـاوو د ژبـو ږغونـه، قواعـد، عمـومي ريښـې او ستې او ټول خصايص وليدل او يوه ډلـه ژبې يې پـه دغـو نومـو لـه

[1] ايران قديم، ص ۹؛ تمدن ايرانيان خاوري، ص ۶۴ـ ۷۰.

[2] ده لومړی پـلا يـو مضمون پـه دې خصـوص کـې پـه ۱۸۱۳ع کـال پـه The Quarterly Review کې وکېښ.

یوې کورنۍ څخه وګڼلې، اما تر ټولو دمخه سر ولیم جونز W.jones د هند د ایشیایي ټولنې مشر په ۱۷۸۶م دغه ژبې یوه کورنۍ ګڼلې وې؛ خو دغه نومونه وروسته پر کېښودل شوه)).

دا خلک چې هندو اروپایي ژبې یې ویلې؛ د انسانانو د سپین توکم څخه وو، دوی ځینې حیوانات او بوټي پېژندل، ښایي چې ځینې لاسي صنایع یې هم درلودل، د دوی د اوسنیو ژبو سره ورته والی موږ ته دا راښیي، چې دغه خلک به یو وخت یو ځای سره اوسېدل؛ مګر چې د آمو غاړو او باختر ته راورسېدل خورا دمخه وخت یې (۲۵۰۰ق م) تخمین کېږي، دې خلکو ځانونه آرین Aryan بلل[1]. له علمي پلټنو څخه دا خبره زباده شوې ده چې دغو آریایي اقوامو تر خپرېدلو دمخه یوه ژبه او یو مذهب درلود، د آسیای صغیر په کوی بوغاز Boghaz-koi کې چې د پخوانو میتانو پایتخت (پ ت ریوم) هلته و، یو ډبرلیک (کتیبه) پیدا شوې ده، چې نېټه یې (۱۴۰۰ ق م) ده. دلته یو آریایي قوم اوسېده، چې میتاني Mitani نومېدل او دغه زړه کتیبه هم په دوی کې Tel-el-amarana ته منسوبه ده، دغه زوړ لیک چې پوهانو وکوت، دا یې ومنله چې په شمالي غربي بین النهرین یا آسیای صغیر کې هم د (۱۴۰۰ ق م) په شاوخوا کې آریایي اقوام اوسېدل، په دې کتیبه کې د دوی د شهزادګانو نومونه راغلي دي، چې سوچه آریایي نومونه دي، لکه آرتیتما Artatama، تسرتا Tusratta؛ سترنا Suttarna دغسې هم په دغه کتیبه کې د هغو ارباب انواعو نومونه اخیستل شوي دي، چې د هند د

[1] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۷۳.

آریایانو په کتابو کې هم شته، کله: ایندره Indra؛ وارونا varuna یا دوه هسک غبرګولي ورونه ناساتي Nasatysa[1].

علاوه پر دغه زاړه لیک چې د آریایي اقوامو د ژبې او مذهب یو والی (۱۴۰۰ ق م) ښکاره کوي، یو بل دلیل هم پر دغې تاریخي خبرې باندې شته، له (۱۷۴۶) تر (۱۱۸۰ ق م) پورې یوه قوم چې کاسي Kassites نومېده او د زاګرس په غرو کې اوسېدل، پر بابل او عیلام سلطنت وکړ، ددغو کاسیانو په ژبه کې هم دغسې کلمات راغلي دي، چې سوچه آریایي دي، مثلاً شوریاس Shurias او مریتاس Marytas چې د سنسکریت سوریا Surya (لمر) او مروتاس Marutas (د باد رب النوع) سره پوره ورته دي، دغسې هم سمالیا Simalia (د واورینو غرو ملکه) کټ مټ په همالیا او زیما Zima (واوره) پخوانیو آریایي کلمیاتو پورې نښلي، دغسې هم وروسته په (۷۰۰ ق م) موږ د اسور بانیپال Assur banipal اسوري لوی پاچا په کتابخانه کې د (اسرا میزاس) Assara – mazas نوم وینو، چې کټ مټ دغه د اوستا اهورا مزدا Ahura- mazda (د لوی خدای نوم) دی او دا نوم په سنسکریت کې اسورا Asura او په ستا کې اهورا Ahura و، په دې ډول موږ له دغو دلایلو څخه دا علمي نتیجه اخلو، چې د (۱۵۰۰ ق م) په حدودو کې لاآریایي اقوام په ژبه او مدنیت او دیانت کې سره یو وو او تر دغه وروسته دوی ښایي چې سره بېل شوي وي[2].



[1] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۷۲ـ ۷۶.

[2] کېمبریج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۱۶؛ ویدك انډیا، ص ۲۶.

# باخـــتري آرین

## هندي او ایراني څانګې

دمخـه مـو وویـل، چې آریـن اقـوام لـه (آریانـا ویجـه) څخـه خپـاره شـول او زمـوږ وطـن تـه لـه شـمالي خـوا راغلـه، تـر آمـو راواوښتـل او پـه بـاختر کې یې یـو ښکلی مـدنیت جـوړ کـړ او دا مرکزي ـ آریایان پر درې برخو باندې وېشلای شو:

(۱) مرکـزي او بـاختري چې دوی د هنـدوکش پـه شـمالي او جنـوبي لمنـو کې هسـتوګنه درلـوده او زمـوږ د وطـن پـه غـرو او دښتـو او درو کې سـره خپـاره شـول. د آباسـین لـه څنـډو د آمـو او د خراسـان تـر دښتـو پـورې د دوی اصـلي مرکـزي هېـوادو، بلـخ، تخارسـتان، هـرات، اراکوسـیا، کابـل، ګنـدهارا، سګسـتان، خراسـان د دوی د مرکـزي هېـواد مشـهورې بـرخې دي او جنوبـاً پـه بحیره عرب پورې د دوی د هېواد څنډې نښتې وې.

(۲) یـوه ډلـه آریـایي اقـوام لـه بلخـه د جنـوبي غربـي خـوا تـه د هریـوا (هـرات) پـر خـوا لـه خراسـانه تېـر شـول، د پـارس خـاورې یـې ونیـولې او اوسـنی ایـران یـې تشـکیل کـړ. د دوی دغـه هجـرت مؤرخینـو هسـې تعیـین کـړی دی، چـې (۱۴) قـرن (ق م) څخـه شـروع شـوی و، تـر اتمـې قبـل المـیلادي پېـړۍ پـورې جـاري و او لومړی دولت دغـو آریـایي اقوامـو پـه ایـران کې د مـاد **Medie** پـه نامـه د اوومـې قبـل المـیلادي پېـړۍ پـه ابتـداء کې تشـکیل کـړی و[1].

---

[1] تاریخ هیرو ډوت، ص ۲۱.

(۳) یوه دسته آریایي اقوام د باختر او هندوکش له شاوخوا څخه د کابل او خیبر او نورو لارو څخه ولاړل په سپتاسمندو (یعنې د اوو دریابو په مځکه) کې سره خپاره شول، دوی تر آباسین تېر شول، د اباسین او ګنګا په منځ کې یې یو ځلان مدنیت جوړ کړ او د هند په ځنګلو او بڼو کې ودان شول؛ ددغو هندي آریایانو لېږدېدنه هم له څوارلسمې قبل المیلادي پېړۍ څخه شروع کېږي[1]. د آریایي اقوامو دغه درې ډلې (باختري ـ ایراني ـ هندي) زموږ له دې کتابه سره اړه لري، د دوی په ژبو کې پلټنه کوو او د پښتو ژبې ادبي تاریخ ځنې راباسو. د دوی د مدنیت، اجتماعي احوال او روحي اوضاعو په کتنه کې څه ناڅه د پښتو تاریخ څرګندوو. مرکزي آرین چې د بخدي یا باختر (بلخ) په شاوخوا کې اوسېدل، ښه او غوره مدنیت یې درلود. دوی خپل هېواد (آریا ورته ـ یا ـ آریاورشه) باله، لومړی پلا دا نوم د منوسمهیتا Manu-samhita په کتاب (۲۲ شعر ۲ فصل) کې راغلی دی، مانو یا منو د آریا پلار ګڼل کېږي او آریایان (منوزي) هم بلل کېږي، دا پلار په دوی کې ډېر شهرت لري او دده په نامه ځینې قوانین هم شته، چې (د منو لیار) یې بولي. آریاورته هم مانونیکه په خپل کتاب ذکر کوي او مؤرخین وایي چې په دې هېواد کې آریایان ښت تر ښته پیدا شوي دي[2]. ددې نامه معنی داسې ده: د اصیلو او ښاغلو هېواد[3]. د دوی مرکز بالهیکا ـ بخدي ـ بلخ و، چې د لوړو بیرغو ښار بلل کېده او

---

(1) ریګویدي هند، ص ۵۸، د ډاس لیکنه.

(2) د آریا زاړه آثار، ص ۱۲۱.

(3) تمدن هند، ص ۱۸۴، هند قدیم، ص ۴؛ د هندیانو تاریخ د هنتر لیک.

تـل بـه دا لـوی د مـدنیت مرکـز د (رښـه ـ روښـان ـ ښکلـي) پـه صـفتو سـتایل کېـده، مـثلاً بلـخ بـامي ـ بلـخ ګـزین (د منـو او بامي کلماتو شرح وروسته په دې کتاب کې راځي).

# آریایي ژبه او پښتو

دمخـه مـو د آریـایي ژبـو وېشـنه ولوسـته او تاسـې تـه څرګنـده شـوه چـې کـومې کـومې ژبـې د آریـا لـه کورنـۍ څخـه دي، دا طبیعـي او منلې خبره ده، چـې آریـایي اقوامـو پـه خپـل لومړني ټاټوبي (آریانـا ویجـه) کـې ځانلـه یـوه ژبـه درلـوده، چـې لـه هغـې ژبـې څخـه وروسـته هنـدي، ایرانـي او بخـدي ژبـې راوتلـې دي، پـه دې لومړنـۍ آریـایي ژبـې کـې تـر اوسـه څـه معلومـات د پوهـانو لاس تـه نـه دي راغلـي او نـه چـا څـه پکـې ویلـي دي، تـش دونـې ویـل کېـږي؛ لکـه دوی چـې مـذهب، رسـوم، ملـي دودونـه درلـودل؛ نـو ښـایي چـې بېلـه ژبـه بـه یـې هـم درلـوده؛ خـو دا نـه معلومېږي، چـې اصـلي آریـایي ژبـه کومـه، څنګـه او څـه راز ژبـه وه، څومره عمر ژوندی وه؟

دوکتـور ګوسـتاولوبون وایـي: "تـر خپرېـدلو او هجـرت دمخـه آریـایي اقوامـو یـوه مخصوصـه ژبـه ویلـه، چـې نـوم یـې (آریـك) و، دا ژبـه اوس ورکـه ده؛ خـو سنسـکریت ژبـه لـه هغـې ژبـې څخـه راوتلې ده"[1]. دا اصلي آریـایي ژبـه چـې د ټولـو آریـایي ژبـو مـور یـا انـا بلـل کېـږي، لااقـل تـر مـیلاد (۲۰۰۰) کالـه دمخـه ویـل کېده او د دوی مشترکه ژبه وه.

خـو اوس یـې هېـڅ نښـه او بولګـه نـه ده پـاتې، لـه دې جهتـه

---

[1] تمدن هند، ص ۱۸۴

چې د آریایانو تاریخ او لیکنې د قبل المیلاد تر (۱۴۰۰) کاله دمخه نه رسېږي؛ نو دونې ویلای شو چې سنسکریت، اوستا او زړه پارسو درې سره له دغې اصلي آریایي ژبې څخه زېږېدلې دي[1].

میډېم راګوزن Ragozin لیکي: "تقریباً سل کاله دمخه په اروپا کې د هند د علومو پلټنه او زده کول شروع شول، هغه وخت چې چارلس ولکنس Wilknis مهابهارت ترجمه کړ او د سنسکریت ګرامر یې وکېښ؛ نو سر ولیم جونز د منو دهرم مذهبي شاستر کتاب ترجمه کړ او کولبروك Colbrovk د هند پر فلسفه، قوانینو او ادب باندې کتابونه ولیکل؛ نو د اروپا او هند د ژبو پرتله او مقایسه شروع شوه او دا فکر خلکو ومانه چې سنسکریث د ټولو ژبو مور ده؛ مګر وروسته چې پلټنې او د پوهانو کتنې ډېرې شوې؛ نو دا ښکاره شوه چې تر سنسکریت لادمخه یوه بله ژبه هم آریایي خلکو درلوده، چې په اصل کې هغه ژبه د نورو ژبو مور ده، یوه بل عالم جېکب ګرم په اریایي ژبو کې د صحیحو حرفو د تبدیل اصول وښودل او دا ثابته شوه چې د آریایي اقوامو لومړنۍ او اصلي ژبه لا بله وه، چې د هغې ژبې الفاظ او کلمات په ټولو آریایي ژبو کې مشترك دي"[2].

د اصلي آریایي ژبې عمر د ژبو پوهان (۲۵۰۰ تر ۳۰۰۰ قبل المیلاد) پورې تخمین کوي، دوی وایي، چې: آریایي اقوام تر اباسین (انډوس) پورې وتل. خپل مشهور دیني کتاب ویدا Veda یې په خپله ژبه انشاء کړ، ددې کتاب د لیکنې

---

[1] ایران قدیم، ص ۱۰۸.

[2] ویدك انډیا، ص ۳۳.

تاریخ تر ۱۴۰۰ قبل المیلاد دمخه ځي؛ لکه دمخه چې مو وویل: د ایشیای کوچک د آریایي اقوامو زاړه لیکونه هم د (۱۴۰۰ق، م) په شاوخوا کې کښل شوي دي، که د هندي آریایانو کتابو ویدا له هغه لیکنو سره پرتله شي، ژبې یې سره مخالفې دي؛ خو د نومو اشتراك یې څرګندېږي.

په دې دلیل نو ویلای شو د (۱۴۰۰ق، م) په شاوخوا کې د آریایي اقوامو ژبې سره بېلې شوې وې او اصلي آریایي ژبه په دغه وخت کې نه وه ژوندۍ، دا خبره هم د ژبو پوهان مني، خو یوه ژبه په نورو فرعي ژبو اوړي، یعنې ځانله بېلې بېلې ځانګې مومي، لږ تر لږه یو زر کاله غواړي[1].

نو په دې حساب چې موږ د ویدا او د کوی بوغاز د زاړه لیك له عصره یعنې د (۱۴۰۰ ق، م) څخه زر کاله پخوا ولاړ شو؛ نو به داووایو چې د (۲۴۰۰ ق، م) په شاوخوا کې د اریایي اقوامو ژبه لا یوه وه او لکه ځینې مؤرخین چې وایي، دا ژبه له پارس او میدیا څخه تر پنجابه ویله کېده او د آمو شمالي خواوې سغدیانه هم پکې شاملې وې[2].

نو ددې اصلي آریایي ژبې عصر له (۲۴۰۰ ق، م) څخه تر څلور زره قبل المیلاده پورې تخمین کېږي، یعنې له هغه وخته چې آریایي اقوامو لومړی پلا له (آریانا ویجه) څخه هجرت کاوه.

ددې اصلي آریایي ژبې کوم اثر او نخښه؛ لکه دمخه چې مو هم وویل اوس نه ده پاتې؛ خو زه به په راتلونکو لیکنو کې د پښتو نژدې والی له دغې ژبې سره په ځینو علمي دلایلو

---

[1] تاریخ ادبیات ایران، د جلال همایي.

[2] د ((لوی دولا واله دوپه سن)) کتاب هندو اروپایي، ص ۵۷، ج ۳.

ثابت کړم او دا خبره به زیاته کړم، چې پښتو هغې اصلي ژبې ته خورا نږدې ده او لکه سنسکریت او اوستا چې څنې زېږېدلي دي، پښتو هم د هغې ژبې لور ده.

دمخه مو وویل چې آریایي اقوام له بخدي یا باختر څخه مشرق او غرب ته سره خپاره شول، په هند او ایران کې یې مدنیتونه جوړ کړل او ځینې له دوی څخه په بخدي او د هندوکش په شمال او جنوبي لمنو کې پاتې شول او وروسته په ټول هېواد کې سره خپاره شول. دا آریایان چې د مرکزي او باختري ډلې څخه دي، ډېر قبایل او ډلې لري، چې یوه مهمه ډله یې د (بخت = پکهت = پښتون) په نامه یادېږي او پښتو ژبه هم دوی تر اوسه وایي؛ دا ژبه له قدیمه دوی ته پاتې ده او مرکزي آریایي ژبه چې له اصلي ژبې څخه دلې د آریایانو په خپل مرکز او کور کې زېږېدلې ده، همدغه پښتو ده. وروسته چې تاسې د پښتو او پښتون د نومو په خصوص کې تاریخي څېړنې وګورئ دا خبره به ښه درته لوڅه شي، اوس دلته هم د پښتو د ربط دلایل له اصلي آریایي ژبې سره لاندې راوړم.

## پښتو او اصلي آریایي ژبه (آریک):

د تاریخ او علمي څېړنو په استناد مو دمخه دا وویل، چې: پښتو د آریک ژبې لور ده، ددې خبرې د پلټنې او منلو لپاره باید موږ د آریایي توکم پخوانو کلماتو ته وګورو، چې له دوی څخه پاتې دي او هغه کلمې بیا په پښتو په کې وګورو چې تر اوسه ژوندۍ دي.

بله دا خبره هم باید دلته وشي چې آرین توکم له بخدي څخه یا د هند خوا ته ولاړل، چې ژبه یې سنسکریت شوه او د

ویدا کتاب په دغه ژبه دی، یا هغه قبایل دي چې ایران ته ولاړل؛ ژبه یې فرس قدیم بیا پهلوي، بیا اوسنۍ پارسو شوه؛ اما هغه قبایل چې په خپله په بخدي کې پاتې شول کومه ژبه یې ویله؟

زما دا عقیده ده چې دوی پښتو ویله؛ ځکه چې وروسته دغه قبایل تر هندوکش راتېر شول؛ دوی د بخدي په نامه (بخت = پکهت = پښتون) بلل کېدل او هغه تاریخي نوم دوی تر اوسه ساتلی دی او هغه پخوانۍ ژبه هم دوی تر اوسه خوندي کړې ده.

دا مطلب به وروسته زه ښه څرګنده کړم چې پښتانه یعنې د پښتو ژبې ویونکي هغه پخواني بخدي یا باختري آریایان دي چې نورو ورونو یې د ایراني یا توراني یا مغولي یا هندي اقوامو په تماس خپله اصلي ژبه هېره کړه؛ مګر فقط ښاغلو پښتنو تر اوسه ساتلې ده.

په دې کې هېڅ شك نشته چې بخدي آریایان (۱۴۰۰ ق، م) یعنې هغه وخت چې د هندي آریایانو دیني کتاب ویدا لیکل کېده، د پکهت په نامه مشهور و. په خپله په ریګویدا Rig-veda کې هم د دوی نوم ذکر کېږي؛ نو چې دغه ملت په دغه نامه موجود وي، د دوی ژبه هم باید موجوده وي.

له تاریخي اسنادو څخه ښکاره کېږي، چې آریایي بخدي یا د پکهت اقوام پس له (۱۴۰۰ ق، م) د هېواد شرقي غرو او د اباسین غاړو ته تللي او دلې مېشته وو؛ ځکه چې ریګویدا د دوی نوم د هند په یوه مشهور جنګ کې ذکر کوي او هم وروسته (۱۰۰۰ ق، م) په بخدي یا باختر کې یوه بله ژبه پیدا کېږي چې زند یې نوم دی او د اوستا مشهور دیني کتاب په

دغه ژبه دی او بیا هغه وخت چې هیروډوټ Herodote یوناني مؤرخ د پکهت او پاکتویس ذکر کوي؛ نو د(۵۲۰ ق، م) په حدودو کې هم دوی د انډوس (اباسین) پر غاړو ښیي.

له دغو تاریخي ملاحظاتو څخه موږ دې نتیجې ته رارسېږو، چې پښتانه آریایان لومړی په بخدي کې اوسېدل، له هغه لومړني ټاټوبي څخه دوی د هغه ځای په نامه (پخت = پکهت) د خپلې زړې ژبې سره د (۱۴۰۰ تر ۱۰۰۰ ق، م) پورې د اباسین غاړو او د هېواد شرقي غرو ته لاړل، دوی خپل د بخدي = پکهت نوم سره له خپلې ژبې وساته او تر اوسه هم په دغه نامه او دغه ژبه مشهور دي[1].

ددې تاریخي پلټنې په رڼا کې نو اوس تاسې ځنې لغوي دلایل هم واورئ:



## د آریا کلمه:

لومړی کلمه، چې موږ یې د پښتو ژبې د اصالت لپاره د لغوي دلیل په څېر پلټنه او څېړنه کوو، په خپله د (آریا ـ آرین) کلمې دي.

تاسې دمخه هم ولوستل: چې دا نوم ډېر قدیم دی، مؤرخین وایي: هغه اقوام چې د آمو له غاړو څخه په باختر، هند او ایران کې خپاره شول، دوی ځانونه آرین Aryan یعني اصیل، نجیب او شریف ګڼل او چې په هند کې خپاره شول، هلته د تور توکم انسانان دمخه اوسېدل، له هغو سره آریایانو جګړې وکړې او شاته یې وشړل؛ لکه دوی چې ځان ته (آرین)

[1] د پښتو او پښتنو تاریخي څېړنې به وروسته مفصلې راشي، دلته ضرورتاً لنډ لنډ ذکر وشو

یعنې شریف او نجیب وایه، هغو قبیلو ته یې د اسو یا دیسیو Dasyu ویل، دا دواړه کلمې په ریګویدا کې ذکر شوي دي[1].

د آرین د کلمې څانګې په سنسکریت کې آریا یا اریا Arya او په زند کې ایریا Airya دي، چې هغه د شریف او نجیب معنا لري او دوی له خپلو دښمنانو څخه خانو ته په دغه نامه امتیاز ورکاوه، چې د دوی له ښتې نه وو او اصیل نه ګڼل کېدل[2].

علاوه پر ریګویدا په اوستا کې هم دا نوم راغی او هسې وایي ((خدای تعالی د آرین مځکه او د آرین توکم او ښت پیدا کړ))[3].

تر دغو دوو پخوانو کتابو وروسته بیا وینو، چې هیرو ډوټ (۴۸۴_ ۴۲۵ ق، م) د آرین ذکر څو ځایه کوي، دی وایي: چې میدي Medes اقوام په پخوانیو زمانو کې آرین Arian بلل کېدل[4]؛ ځکه چې میدي اقوامو د (۶۵۵ ق، م) په حدودو کې د ایران په پای کې یو لوی سلطنت جوړ کړی دی؛ نو دا ویلای شو چې د (آرین) اصطلاح تر دغو وختو پورې هم په ټولو آریايي اقوامو کې ژوندۍ وه او هخامنشي داریوش (۴۸۶_۵۲۱ ق، م) هم په خپل ډبرلیک کې ځان افتخاراً آریايي او د آریا له ښته بللی دی[5].

د اروپا اوسنیو پوهانو ددې کلمې په شاوخوا کې ښې ښې

---

[1] د پانیکار هند قدیم، ج ۱، ص ۴؛ په خپله په ریګویدا کې هم د آرین ذکر راغلی دی، ج ۳، ص ۲۰۷.

[2] کېمبرج هیستري آف انډیا ج ۱، ص ۷۳؛ د پخوانیو سرو تاریخ.

[3] یشت، فصل ۹، فقره، ۹، فصل ۱۰؛ فقره، ۲۵، ۱۳ فصل، ۱۳ فقره ۸.

[4] هیروډوټ، ج ۷، ص ۶۲، دویلر هیروډوټ، ص ۲۸۹.

[5] دویسباخ مېخي خطوط.

پلټنې کړې دي؛ ځکه چې دا نوم آریایانو خپلې پخوانۍ او اصلي ژبې څخه ورسره راوړی و؛ نو که په نورو ژبو کې ددغه نامه ریښې پیدا شي، هغه ژبې د آرین اصلي ژبې ته نژدې بلل کېږي:

دوکتور ګیګر Geiger الماني محقق وايي، چې آرین له (آر) مشتق دی چې په سنسکریت کې د اصل او بنیاد په معنا دی او آریا وايي نجیب او شریف او پارسا ته[1].

علاوه پر دغو اقوالو چې (آر) د اصلي په معنا بولي، ځینې محققین دې ته هم تللي دي، چې آریا له (آر) مشتق دی، چې په پخوانۍ سنسکریت کې یې د کرنې یعنې کشاورزۍ او زراعت مفهوم درلود؛ نو له دې جهته آریا کرونکي او زراع ته ویل کېده، دا قول د مشهور سنسکریت پوهاند میکس مولر Mexmuller دی چې دوکتور هنتر یې هم د هند د خلکو په تاریخ کې مني او آرین د کرونکي په معنی اخلي[2].

میډیم راګوزن لیکي چې (آر) د یوې په معنی و، له لاتیني او ایتالوي (اراز) د سلاوي (اراتي) د یوناني (اروټ رون) انګرېزي ایریبل (د یوې وړ) دغسې د یوناني (اروُرا) او د لاتیني آرور (یوې سوی کښت) ټول له دغې مادې څخه دی، آریايي اقوامو ځان له دې جهته کښتکار او زارع باله، چې له وحشي تورانیو پووندوو څخه د دوی توپیر وشي او هر وخت یې په دغه نامه فخر هم کاوه[3].

ددې آریايي نامه اثر پر نورو اقوامو هم شوی دی. د بابل

---

[1] تمدن ایرانیان خاوري، ج ۱، ص ۶۵_ ۶۶.
[2] مقدمه تاریخ هند قدیم، ص ۹۲.
[3] ویدك انډیا، ص ۳۵.

اونینوا په اسوري ژبه یې هم (آري) هغې مځکې ته ویل، چې یوې او کرل شوې وې. (ارارا) ددغه هېواد په کوشي ژبه د فصل رېبل وو[1].

په دې ډول د آریا د کلمې په خصوص کې دوې نظریې د پوهانو تر منځ شته: یوه دا وه، چې آریا اصیل او شریف دی، دوهمه داده چې کرونکی او بزګر دی.

زما په عقیده د پوهانو دا دوې نظریې په تاریخي دلایلو سره نژدې او یو ځای کېږي، تاسې به وایئ ځنګه؟ په دې ډول:

## د کرهنې اهمیت په آریاانو کې:

په آریایي قومو کې کرهنې ته په خورا درنه سترګه کتل کېدل، دوی په خپل دین کې مکلف وو، چې زراعت ته توجه وکړي، په ریګویدا او اوستاکې د کرهنې او زراعت کارونه د شرافت په سترګه کتل شوي دي او کرهنه یې د شریفو او اصیلو او پوهو خلکو کار بللی دی، په ویدا کې راغلي دي: "پوه او دانشمند انسان تل په کرهنه او جوغ بوخت وي"[2].

بل ځای وایي:

"ای انسانانو! د غنمو او نورو شیانو د کرهنې لپاره په سپاره، مځکه سره خیرې کړئ، ښکلې اربې وچلوئ او ځانونه پرې وساتئ".

"ای انسانانو! یوې وتړئ مځکې د کرلو لپاره ښې یوې کړئ او پستې یې کړئ اوربشې او غنم په کې وکړئ، زیارکښ کرونکي ته بویه چې تل دغو یو جوغ ته سپاره ورواچوي او

---

[1] مقدمه تاریخ هند، ص ۹۲.

[2] یجرویدا، فصل ۱۲، فقره ۶۷، ۶۹ _ ۷۰.

مځکه ښه پرې یوې کړي"[1].

په اوستا کې هم تل کرونکي شریف ګڼل شوي او زردشت خلکو ته د کرهنې اوښاروو د پالنې تشویق کوي، زارع ته په درنه سترګه ګوري او د ګاتها په یوه سندره کې بزګران او کرونکي د انسانانو په خورا لوړه او شریفه ډله کې یادېږي[2].

په دې ډول د کرونکي او بزګر مقام په آریایانو کې ډېر لوړ و او د دوی د دیني کتابو په لارښوونه هر بزګر شریف او محترم ګڼل کېده او په دوی کې خورا لوړه او خورا شریفه اجتماعي دنده دغه زراعت او بزګري وه؛ نو ځکه هر زارع او بزګر نجیب او شریف و او هر شریف سړی به هم کرونکی او بزګر و، اصیلتوب او نجابت د زراعت سره لازم و او هر چا چې به دغه اجتماعي وظیفه ادا کوله، هغه سړی به هم شریف او هم نجیب ګڼل کېده.

## د شریف او زارع تطبیق:

دمخه مو ولوستل، چې پوهان د (آریا) کلمه یا د اصیل او شریف په معنی اخلي، یا د زارع او کرونکي په مفهوم، دا دواړه مفهومه؛ لکه تاسې چې ولوستل سره یو شی دي؛ ځکه چې په پخوانو آریایي اقوامو کې د دیني کتابو په لارښوونه هر زارع نجیب او شریف و او هر شریف هم زارع و؛ نو ښایي چې په آریایي ژبه کې دې (آر) د اصل په معنا و، وروسته ځکه چې هر کرونکی سړی شریف ګڼل کېده؛ نو هر کرونکی او زارع ته دې (آرین) یعنې اصیل ویلی شوی وي او یا دا چې (آر) اصلاً د

[1] یجر ویدا، فصل ۱۲، فقره ۷۱.
[2] ګاتها، ص ۹۸؛ یسنا ۳۳ فقره.

زراعت او کرهنې مفهوم درلود؛ ځکه چې هر کرونکی او زارع شریف او اصیل بلل کېده؛ نو په طبعاً د اصالت او نجابت معاني د آرین په کلمه کې مجازاً ګډې شوې وي.

داسې لغوي تحولات او معنوي اوښتنې د مجاز او حقیقت تر منځ په ژبو کې ډېرې دي؛ نو که د (آر) د کلمې حقیقي معنا اصل او نجابت وګڼو، زراعت به یې مجاز وي او که زراعت حقیقت وګڼو، اصالت او شرافت به یې د مجاز په ډول وروستنی لغوي تحول وي، په دې ډول د پوهانو دواړه نظریې سمې او پر ځای دي او د آرین کلمه په دوو معناوو بولو، شریف او زارع، یا زارع او شریف.

## په پښتو کې د آرین ریښه:



اوس به نو راشو پښتو ته چې په دې ژبه کې د آرین او (آر) د پخوانو کلماتو لپاره څه لرو او اوس کوم مستقل الفاظ شته چې دغه مفاهیم ولري.

هو! په پښتو کې ددغو دواړو معناوو لپاره چې پوهانو د (آر) په خصوص کې ښوولې دي، ریښې او مستعملې ژوندۍ کلمې شته په دې راز:

۱ـ تر اوس هم (آره) د اصل او بنیاد په معنا موجوده او مستعمله کلمه ده، چې اکثر قبایل یې وایي[1]. دا کلمه له پخوا څخه په پښتو ادب کې هم ځای لري او پښتنو ادیبانو په خپلو اشعارو کې د یوې مستعملې او ژوندۍ کلمې په ډول راوړې ده، زمینداوري اکبر چې د ګوډ تیمور معاصر دی (د ۸۰۰ هـ حدود) هسې وایي:

[1] د پښتو مرکې لوی قاموس (قلمي) او راورټي پښتو لغت.

د غم آره يې شوه ټينګه زما په زړه کې
د رقيب سره خندا کړي هوسېږي

وروسته يو بل اديب ملا الف هوتک چې بحرالايمان يې په (۱۰۱۹هـ) نظم کړی دی وايي:

دی له آره و ښاغلی
څه که شو په وير نتلی

پير محمد ميا جي د (۱۱۳۵هـ) په حدودو کې وايي:

شېخ متي چې خليلي و
دی له آره لوی ولي و

نو آره د اصل او بنياد په معنی د پښتو پخوانۍ کلمه ده، چې تر اوسه هم ژوندۍ ده او په دې معنا د دوکتور ګيګر الماني له قوله سره مطابقت لري، چې دی هم آره اصل او آرين اصيل ګڼي.

۲ـ که د (آر) دوهمه معنا يعنې کښت او کرهڼه د ميکس مولر په قول واخلو، دا هم کټ مټ په پښتو کې تر اوسه شته، په قندهار کې بزګران او کښتګران د لو پر وخت هسې وايي (آره آره لور پر غاړه) په دې جملې سره د بزګرانو او زارعينو حال بيانېږي چې دوی لومړی کښت کوي او بيا يې رېبي؛ نو آره په دې محاوره کې خاص د کښت او کرهنې مفهوم لري، چې د هنټر او ميکس مولر له قوله سره سم دی.

نو که آرين په لومړۍ معنا اصيل وي، هم په پښتو کې شته او که په دومه معنا کښتګر او زارع وي، هم په پښتو کې تر اوسه مستعمل دی.

عين د آرين کلمه د پښتو له ګرامر سره هم مطابقت لري. "ين" په پښتو کې خورا ډېر د نسبت د ادات په ډول راځي او د

کلماتو په پای پورې نښلي، مثلاً ژړ (برنج) ژړین (برنجی) که د کلمې په پای کې (هـ) وي غورځي؛ لکه خاوره (خاك) چې خاورین (خاکي) د (هـ) په حذف څنې جوړ شوی دی؛ نو که (آره) واخلو او د پښتو له دغو اصولو سره سم د نسبت (ین) پورې ونښلوو (هـ) غورځي او آرین څنې جوړېږي او ښایي چې وروسته ما قبل آخر زور په الف تبدیل شوی او اریان هم څنې جوړ شوی وي.

په دې ډول آرین منسوب دی د (آره) کلمې ته، چې په پښتو کې د اصل یا کرهنې په معنی تر اوسه شته او پخوانو آریایانو کې هم په دغو دوو معناوو مستعمله وه او معنا یې هم په آریایي پخوانۍ ژبه، هم په پښتو (اصل او شریف او کرونکی) ده؛ نو چې د (آریا ـ آرین) د کلماتو ریښې تر اوسه په پښتو کې شته او هم پخوا په دغه ژبه کې استعمالېدلې او دا کلمې هم له اصلي آریایي ژبې څخه دي؛ نو دا ویلای شو چې پښتو د اصالت او قدامت له پلوه هغې زړې ژبې ته ډېره نژدې ده.

د آریا کلمه په پښتو کې کټ مټ هم مستعمله وه، په پښتو کې دا نوم د علم په ډول د سړو لپاره استعمالېده. د پښتنو په قبایلو کې د یوسف نومې یو زوی (آریا) نومېده، چې دده اولاده بادي خېل بولي، افضل خان ختك په تاریخ مرصع کې لیکي:

((د یوسف پینځه زوی و، یو پکې آریا نومېده، از بس چې ډېر متکبر او مغرور و، بادي یې باله، اوس یې هم اولاد ته بادي خېل وایي))[1]. یوسفزي د پښتنو مشهوره قبیله ده، چې تر اوسه هم په دوی کې د آریا اولاد بادي خېل شته او دا څنې

---

[1] تاریخ مرصع، ص ۴، د راورتي طبع.

ښکاري، چې د (آریا) نوم په پښتو کې تر ډېره وخته معمول و.

## آریانا ویجه:

دمخه مو ولوستل، چې آریایانو تر هجرت او خپرېدلو پخوا په یوه مځکه کې ژوندون کاوه، چې پوهان یې په تعیین کې سره مختلف دي؛ مګر په دې اواخرو کې ډېرو پوهانو دا خبره منلې ده، چې دآریایانو اصلي ټاټوبی د ایشیا په منځ کې د پامیر لوړې ته نږدې و، چې د مختلفو اقوامو روایات او د آریایانو د هجرت له لارو څخه همدغه ځای زبادېږي[1]. پرسي سایکس لیکي چې دا ځای د آمو او ایګزارت په منځ کې پروت و، چې دغه پامیر او بدخشان ته نږدې دی[2]. ځینې پوهان دغه مځکه خوارزم ګڼي.

دې قدیم وطن او ټاټوبي ته دوی په خپله قدیمه ژبه (آرینه ویجه یا ویجو) (واج) ویله. په اوستا کې چې شپاړس آریایي هېوادونه ښیي، (ارینه ویجه) هم یادوي چې دوانګوهي دیتیا Vanguhi- Daitya برکتمن روده سره واقع وه[3]. ګیګر الماني او ځینې نور غربي پوهان وایي چې دا (ارینه ویجه) په غرنیو مځکو کې وه چې په سیر دریا او زر افشان او آمو اوبېده او آریایانو په دغو غرو کې ځانونه د تاتارو او نورو له حملو څخه خوندي کړي وو او د (آرینه ویجه) د کلماتو معنا داسې ده: د شریفانو او اصیلانو مځکه یا د پاکزادانو

---

[1] ویدك انډیا، ص ۴۴.

[2] تاریخ افغانستان، ج ۱، ص ۳۶.

[3] وینديداد ـ فرګرد، ۱.

ټاټوبی[1]. د آریا د کلمې په خصوص کې مو دمخه تشریحات او تاریخي او لساني پلټنې ولوستې، اوس به راشو او د ویجه (واج) کلمه به هم په پښتو کې وګورو، چې شته که یه؟ دا تاریخي کلمه تر اوسه هم په پښتو ژبه کې مستعمله ده، د قندهار خلك یې (اویجه) د الف په زور او مجهوله یا او د جیم په زورکې وایي؛ لکه احمد محمود د خدای پر اویجه نه پرېږدي، چې په دې جمله کې اویجه هم د مځکې او سرزمین معنا لري او د پښتو ژوندۍ کلمه په هغه زاړه ډول او معنا په لږ تغییر تر اوسه مستعمله ده او موږ ته راښکاره کوي، چې له آریايي پخوانۍ ژبې سره پښتو څنګه نژدې ده او ښايي چې سنسکریت او اوستا هم دونې قرابت ورسره ونه لري.

## آریاورشه:



لیکه په اوستا کې چې د آریایانو زوړ ټاټوبی او مسکن (ارینه ویجه) بلل شوی او ریښې یې هم په پښتو کې شته، دغسې هم هندي آریایانو هغه خپل پخوانی ټاټوبی (آریاورته) یا (آریاورشه) باله، چې معنا یې هغه د آریا مځکه یا ټاټوبی او د اصیلو او ښاغلو هېواد ده، تاسې دمخه ولوستل چې لومړی پلا دا نوم په (منو سمهیتا) نومې کتاب کې راغلی دی، دې آریاورته Arya- varta د همالیا او د بحیره عرب تر منځ مځکې ګڼي[2]. سر ولیم جونز وایي چې د منو قوانین تر مسیح اته سوه کاله دمخه کښل شوي؛ نو نوې پلټنې دا

---

[1] تمدن ایرانیان خاوري، ج ۱، ص ۶۶ _ ۷۴؛ ایران قدیم، ج ۱، ص ۱۱؛ د براون تاریخ ادبیات ایران، ج ۱، ص ۵۹.

[2] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۵۱.

ثابتوي چې دوې یا درې پېړۍ تر مسیح دمخه دي[1]. محققین وايي چې دا نوم هندي آریانانو له پخوا او هغه وخته ورسره راوړی و، چې دوی له بخدي څخه نه وو سره خپاره شوي؛ خو دديې کلمې ادبي عمر درې پېړۍ قبل المسيح ته (لکه دمخه چې وویل شوه) رسېږي.

آریاورته ـ آریاورشه هم بلل کېده او که لکه ولسون Wilson چې وايي معنا یې (د ښاغلیو او اصیلو ټاټوبی) ده[2].
مګر هغه وخت چې دا نوم د هند آریایانو ورسره یووړ؛ نو یې دوني خپورتیا پیدا کړه، چې په پای کې پر ټول هند اطلاق شو او تر ویدي دورې ډېر راوروسته چې د برهمنیانو مدنیت له څلورمې پېړۍ قبل المسیح څخه هم په هند کې شروع شو؛ نو دوی بیا دغه (ورته = ورشه) واخیست او د ګنګا د رود غاړې یې: (برهنما ورته) هم وبللې[3]، چې له دغه څخه هم ددغې کلمې زوړ استعمال او ادبي نفوذ ښکاره کېږي او د آریایانو یوه زړه او پخوانۍ کلمه ګڼل کېږي، علاوه پر دغو دوو زړو نومو چې (آریاورشه او برهمناورشه) دي، په آریايي قبایلو کې چې هند ته ولاړل یوه قبیله Bharata (بهارته) نومېده، چې دوی تر اباسین تېر شول او په هند کې یې مدنیت جوړ کړ او وروسته د دوی د جنګي کارنامو لپاره (مهابهارته) مشهور رزمي کتاب شو. دې قبیلې د آریایانو د پخواني نامه (آریاورشه) پر وزن او ډول د هند مځکې په خپل نامه (بهارته ورته) یا (بهارته ورشه) وبللې او وروسته دا نوم د هند ملي نوم

[1] تمدن هند، ګوستاولوبون، ص ۲۱۰.
[2] آریانا انتیکا، ص ۱۲۱.
[3] د شرق اقصی تاریخ، ج ۱، ص ۱۰، مدنیت بخښونکی هند، ص ۳۸.

شو[1] او هغه زړه اصطلاح (آریاورشه) یې ورکه کړه؛ خو په دغو درو سرو نومو کې (ورته او ورشه) راغلې ده، چې په دواړو ډولو تلفظ کېده او معنا یې هم هغه (ټاټوبی ـ او هېواد) و.

اوس به راشو او وبه ګورو چې ورشه په پښتو کې شته که یه؟

په کندهار کې تر اوسه (ورشو) (Wurshu) په آخرني مجهول و او چراګاه، مرتع او مناسب ځای ته وایي، ښه ورشو ده، یعني ښه د څر ځای دی، ورشو یې ځنې ورکه کړه، په هغه وخت کې ویل کېږي، چې له ډېره اضطرابه له سړي څخه ځای او خوا ورکه شي.

دا کلمه له پخوا څخه د پښتو په ادب کې هم ځای لري او ژوندۍ وه؛ ژوندۍ ده، مثلاً ماشوخېل حمیدمومند وایي:

هغه سر کا زماني د سپو د لوبو
چې یې نه واهه مزري پل په ورشو

(ورشو) مرتع او د څر ځای ته هم وایي او دا مفهوم د آریایي قبایلو له ژوندونه سره ښه اړخ لګوي، تاسې دمخه هم ولوستل چې زراعت او مالداري په دوی کې څونې مهم کار ګڼل کېده، دوی هر شي ته د زراعت په سترګو کتل؛ نو ځکه (ورشو) دوی ته دیناً او مادتاً ډېره مقدسه وه او دا کلمه له قدیمه په دوی کې پر ښه مرتع او چراګاه اطلاق کېده، وروسته چې دوی هرې خوا ته تلل؛ نو دا نوم ورسره ملګری و او دوی پر خپل هېواد او وطن او ټاټوبي باندې اېښوده.

دلته یوه خبره پاتې شوه، هغه داده چې (ورته او ورشه) څه

[1] مدنیت بخښونکی هند، ص ۳۸.

اړه سره لري او څنګه ورته او ورشته يو له بله سره اوښتي دي؟ لومړی بايد دا ووايو چې آريايي قبايل ټول له باختر او هم زموږ له وطنه تر اباسين اوښتي او هند ته تللي دي، ټول هغه کلمات چې اوس يا پخوا زموږ او د دوی تر منځ مشترك دي؛ ځکه چې د آريا د پښت زانګو زموږ د وطن مځکې دي او هندي آرياېان هم له دې ځايه تللي دي؛ نو دا په ټينګه ويلای شو چې د هغو زړو کلماتو اصلي اشکال هم بايد دلې پاتې وي او هر څه تغيير چې وروسته ورپېښ شوی وي، هغه به د نوي محيط اثر وي.

پر دې تاريخي اساس باندې؛ نو دا ويلای شو چې "ورته" هم اصلاً ورشه او دغه د پښتو ورشو وه. وروسته چې آريايي قبايل په هند کې خپاره شول؛ نو دوی هغه په ورته سره تبديل کړه؛ خو دواړه ډولونه يې هم رانقل شوي دي.

دا د (ورته) د (ت) تبديل د (ورشه) په "ش" هم دفعي او يو په يوه نه دی، (ت) ډېره په (س) اوړي او دا تغيير تاريخي هم دی، مثلاً پارت يوه تاريخي آريايي قبيله وه چې د دوی نوم د داريوش په ډبرليك کې (پرتو) راغلی دی[1]؛ نو د (ت) او (س) او (ث) تر منځ پخوا يوُ صوت په آريايي ژبو کې مشترك و، چې هغه (ش ـ شه) ته هم ورته دی، په پښتو کې هم (ت) ځای ځای په (س) اوړي، مثلاً (کتل = کسل) چې يوه معنا لري. وروسته د (س او ش) تبديل هم عام او په پښتو کې خورا ډېر دی مثلاً راسه = راشه = سوی = شوی = ولاړ سه = ولاړ شه او نور په دې ډول ښايي، چې دغه پښتو (ورشو) په اصلي آريايي ژبه کې ورشه يا ورشو وه. وروسته چې نوي محيط او نوي

---

[1] ايران قديم، ص ۱۲۱.

چاپېریـال تـه ولاړه او پـه نـوو خولـو کـې ولوېـده ورشـه بیـا "ورتـه" شوه.

## نتیجه:

تـر دې ځایـه د پښتـو رابطـه د اصـلي آریـایي ژبـې (آریـك) سـره ښکـاره شـوه، تاسـې دلتـه درې پخوانـۍ آریـایي کلمـې پـه اوسنۍ پښتو کې ژوندۍ او مستعملې ولیدلې.

(۱) آریا، آرین = پښتو (آره).

(۲) ویجه پښتو (اویجه).

(۳) ورته = ورشه = ورشو.

پـه دغـه مبحـث کـې فقـط دغـه درې کلمـې تحلیـل شـوې، وروسـته چـې د پښتـو تطبیـق د نـورو آریـایي ژبـو (سنسـکریت ـ زنـد + زړې پاړسـۍ) سـره کېـږي، داسـې ډېـر مثالونـه او کلمـات به راوړم، چې تر اوسه زموږ په ژبه کې شته او ژوندي دي.

## ددې برخې لنډه نتیجه داده:

پښتـو لـه هنـدو اروپـایي یعنـې آریـایي ژبـو څخـه ده؛ ځکـه چـې د آریـایي پښـت زانګـو دغـه زمـوږ د هېـواد مځکـې دي؛ نـو اصـلي آریـایي ژبـه هـم دلـې ویـل کېـده او دلـې پـه خپلـه پـاتې ده، یـا یـې لور پښتو تر اوسه په دغو غرو کې ژوندۍ ده.



# دوهمه برخه

# پښتون او پښتو

پښتو او پښتون ـ د لسو تېرو جګړه او پښتون ـ د پکهت وپشنه ـ پښتون په ویدا کې ـ پښتون په اوستا کې ـ پښتون او یوناني مؤرخین ـ بختي په اسلامي دوره کې ـ نتیجه ـ پښتو او د اوسنیو پوهانو آراء ـ ددغو افکارو نتیجه او د پښتو اصل پښتو ولې سامي یا عبري ژبه بلل شوې ده؟

یوه ضروري یادونه ـ پښتو ولې هندي یا ایراني ګڼل شوې ده؟

# پښـــتون او پښتو

آريـايي اقـوام چـې لـه خـپلې زړې آرينـه ويجـه يعـنې د (آمـو) او سـير دريـا لـه سرچشـمو څخـه خپـاره شـول اوپـه بخـدي او بـاختر كـې يـې مـدنيت جـوړ كـړ، وروسـته نـو لـه دغـه ځايـه بيـا د هنـد او ايـران خـوا تـه ولاړل، دوی ځيـنې مشـهور قبايـل درلـودل، چـې لـه هغـو څخـه يـوه مشـهوره قبيلـه پكهـت = پښتـون وه، ددې نامـه تـاريخي څېړنـه او قـدامت د پښتـو ژبـې اصـالت او قـدامت هـم څرګنـدوي؛ نـو ځكـه د كتـاب پـه دې دوهمـه برخـه كـې مفصـلاً لومړی د پښتون پر كلمه او وروسته په خپله پر پښتو ږغېږو:

**پښتـــون**: تاسـې دمخـه ولوسـتل چـې د بـاختري آريايـانو ډلـه تـر اباسـين (انډوس) پـورې وتـل او دوی يـو معـروف دينـي كتـاب

ویدا تر اوسه پاتې دی، دا کتاب د آریایي اقوامو په تاریخ کې ډېر اهمیت لري او د هغه عصر ډېر وقایع څرګندوي او ځکه چې اکثري برخې یې زموږ د وطن په غرواو دریابو او مځکو اړه لري او پکې بیان شوې دي؛ نو محققین د ویدا کتاب زموږ د هېواد یو پخوانی کتاب ګڼي.

له دې کتابه موږ د هېواد پخواني تاریخي وقایع او حوادث راباسو او هم د ژبې په تاریخ کې ښې ښې استفادې ځنې کوو. وروسته چې په دې کتاب کې د ویدي ژبې او پښتو د څېړنې وار راشي، مفصلاً به یې دروښیو، چې دا کتاب څه شی دی؟ خو دلته دغونې بس ده چې د ویدا د انشاء او لیکلو نېټه تر (۱۴۰۰ ق م) پورې رسېږي. که موږ غواړو چې د پښتو ژبې تاریخ وپلټو، ناچاره یو چې لومړی دا ځان ته څرګنده کړو، چې پښتون قوم له کومه وخته په تاریخ کې ځای نیولی دی او دا اولس زوړ او پخوانی دی که نوی؟

## د لسو ټبرو جګړه او پښتون:

هغه وخت چې آریایي اقوام زموږ د وطن په غرو او دښتو او د هند په ځنګلو او ورشوګانو کې سره خپاره شول، د دوی تر منځ خورا لوی او مشهور جنګ پېښ شو، چې د ویدا په زاړه کتاب کې یې بیان په خورا ښه ډول راغلی او کیفیت یې دادی:

((له آریایي اقوامو څخه د بهارته Bharata قبیله د کوبها یعنې کابل او ارغنداو له ورشوګانو څخه تر خیبر او بولان او نورو لارو تېر شول او د سندهو (اباسین) ورشوګانو ته کښېته شول او په هند او پنجاب کې سره خپاره شول، دلته د بهارته د ټبر پاچا (سوداس) نومېده، چې د (دیواداسا) زوی یا لمسی و.

ددې پاچا سره د کوزیکا له علمي او ادبي کورنۍ څخه یوریشي[1] او مذهبي مشاور و، چې ویسو امیترا Visvamitra نومېده؛ دې ریشي روحاني قوه او نفوذ او پوهه درلوده، د سوداس پاچا سره یې د ستردو Sturdu (ستلج) او ویپاشا Vipasha (بیاس) په نیولو او فتوحاتو کې ډېر کومکونه کړي وو؛ خو وروسته سوداس پاچا دا خپل مذهبي مشاور ویوست او په عوض کې یې بل سړی چې واسیستاس Vasistas نومېده، مقرر کړ، ددغو دوو تنوریشیانو تر منځ مخالفت او جګړه ونښته، د ویو امیترا ډېر قبایل پر خوا وو او خلکو یې په خوله کوله؛ نو ده ډېر آریایي قبایل سره راټول کړل او د سوداس سره یې جګړه وکړه؛ خو پاچا بریالی شو او دانو Anus او دروهیو Druhyu د قبیلو ملکان ووژل شوه)).

دا جګړه د پاروشني Parushni (ایراوتي = راوي) پر غاړه پېښه شوې وه او هغه لس آریایي قبیلې چې په دغه جګړه یې لاس پورې کړی و، اکثره هغه قبایل دي، چې تر اوسه یې هم بقایا زموږ په هېواد کې شته او داسې ښکاري چې تر دغې جګړې وروسته دوی د هند ورشوګانو ته لېږد او هجرت بند کړ او دلې پاتې شول، ددغو لسو ټبرو نومونه دادي:

(۱) پکته Pakthas (پکتویس = پکهت = پښتون)؛

(۲) الینا Alinas (د نورستان خلك)؛

(۳) بهالانا Bhalanas (د دره بولان خلك)؛

(۴) شیوا Shivas (د شیوکي خلك چې د اباسین پر غاړه اوسېدل)؛

(۵) ویشانن Vishanins؛

[1] ریشي: شاعر او روحاني سړی.

(۶) انو Anus چې د پنجاب د راوي رود پر غاړه اوسېدل او د بریګوس مشهوره روحاني کورنۍ د دوی ستانه وو.

(۷) دروهیو Druhyu (دا اقوام هم د انو سره اوسېدل).

(۸) توروا‌شا Turvasha.

(۹) یادو Yadus؛ دا دوې قبیلې سره ملګرې وې.

(۱۰) پورو Purus د ګندهارا د شاوخوا خلك[۱].

دا وې لس مشهورې آریایي قبیلې چې د لسو تېرونو په جګړه کې یې برخه درلوده او لکه محققین چې وایي، اوس له دغو څخه اکثرې قبیلې زموږ په هېواد کې شته او له هغو وختو څخه تر اوسه دلې پرتې دي.

## د پکهت وېښنه:

په دغو آریایي قبایلو کې موږ د ژبې له پلوه فقط له لومړۍ یعنې پکهته سره اړه لرو او له دې تفصیله مو مقصد دادی، چې د پښتون ملت لومړنۍ تاریخي وثیقه دغه ده، چې نوم یې په رېګویدا کې یاد شوی دی او دا څرګندوي چې دا اولس د میلاد (۱۴۰۰) کاله دمخه لا هم موجود و او په آریایي کورنۍ کې یې نوم او نښان درلود. د پکهت تاریخ په هغو وختو کې هم ډېر روڼ دی او هر څوك یې پېژني. دوی وروسته د پارت Parth په نامه بلل کېده او د قبل المیلاد درېمې پېړۍ په شاوخوا کې د دوی مشر ((ارساس پارتي)) د غرب پلو ته ولاړ او د هري رود غربي خوا ته یې د خزر تر څنډو پورې مدنیت جوړ کړ او هغه مځکه یې هم په خپل نامه پارتیا Parthia وبلله او هلته دوی د پارت په نامه سلطنت او روڼ مدنیت او

---

[۱] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۸۲، تاریخ افغانستان ۸۹/۱.

ببـل ثقافـت ومونـد (د ۲۵۶ ق، م حـدود) يـوه بلـه برخـه هـم لـه دغـو پښتنـو څخـه د ارمنسـتان غربـي خـوا تـه ورسـېده او هـورې هـم د پکهـت (پکتـويس) پـه نامـه مشـهوره وه او هغـه ځـاى د دوى په نامه (پکتيکا) بلل کېده[1].

## پښتو په ويداکې:

پـه ويـدا کـې مـو د پښتـون ذکـر تـه دمخـه اشـاره وکـړه؛ ځکـه چـې دا تـاريخي وثيقـه د پښتـون اهميـت او ثقافـت او سياسـي او اجتمـاعي ژونـدون د (۱۴۰۰ ق، م) پـه شـاوخوا کـې ښکـاره کوي؛ نو به دلته لږ څه دغې خبرې ته تفصيل ورکو:

پـه ويـدا کـې پکتهـا د پښتنـو د پاچـا پـه ډول او پکهـت د قـوم نـوم څـو ځايـه او مکـرر راغلـي دي. هغـه انګرېـزي ترجمـه چـې د اروپـا مشـهور هنـد پوهانـد او مستشـرق (رالـف. ټـي. ايـچ ګـريفټ) Ralph. T. H. Griffith لـه ويـدا څخـه پـه دوه ټوکـه کـې کـړې ده، د پکهت ذکر يې په دغو ځايو کې راغلی دی:

(۱) دوهم ټوك، ۱۸ مخ، اومه برخه _ ۱۷_ سندره؛

(۲) دوهم ټوك، ۱۵۳ مخ، اتمه برخه_ ۲۲ سندره؛

(۳) دوهم ټوك، ۲۶۰ مخ، اتمه برخه _ ۱ سندره؛

(۴) دوهم ټوك، ۶۵ مخ، لسمه برخه_ ۶۱ سندره.

اوس نـو لانـدې د ويـدا ځيـنې هغـه جملـې او فقـرې راوړو، چـې په هغو کې د (پښتون = پکهت) نوم ياد شوی دی:

((بهريګـــــوس Bhrigus[2] او د روهيـــــوس Druhyus ژر

---

[1] تاريخ هيروډوت، ص ۲۸۱؛ تاريخ افغانستان ۱ _ ۹.

[2] بهريګـوس د روحـاني کورنـی اوسـتانو څخـه و؛ مګـر دروهيـوس روحـاني سړی نه و.

غوړېونیوه یوه دوست بل دوست ته د دوو لیرو قبیلو په منځ کې نجات وباخښه... د پکهت او بهالا او الینا او شیوا او ویشانن خلك سره راټول شول، آریایي ملکري لاړښووني ته تریتسو Tritsus قبیلې ته راغی، دده دا د زړه ورتوب راتګ له دې سببه و، چې د جګړې سره یې مینه درلوده[1]. له دې سندرې څخه څرګندېږي چې پکهت (پښتون) او بهالانا د (بولان یا لغمان خلك) الینا (نورستانیان) په یوه جنګ کې سره ملګري وو او پښتانه په هغو وختو کې له خپلو وطني ورونو سره مله او متحد وو. بل ځای هسې وایي:

((ای اسوناو![2] پرخپلو جنګي اربو سپاره شئ، پر خپل طلایي پلاز کښېنئ، ای هغو خلکو چې تاسې بدایان یاست، هغه مرستې چې تاسې له پکته او ادریګو Adhrigu سره وکړې؛ نو بابهرو له خپلو دوستانو څخه بېل شو[3]. په دې سندره کې چې پکته راغلی دی، پاچا دی، ادریګو او بابهرو هم دده ملګري پاچاهان دي، شاعر د کوم جنګ کیسه کوي او د پښتنو د پاچا او ادریګو لپاره د سهارنیو ستورو څخه کومك غواړي، له دې څخه ښکاري چې په دغو وختو کې هم پښتنو اداري نظام او مشر درلود او په ګډه او ملګرتیا له دښمنانو سره جنګېدل، د ویدا په بل ځای کې هسې راغلي دي:

((ای اندرا! ته ډېر لوی یې، له تا څخه غواړم موږ ته پیورې

[1] ویدا، ج ۲ ص ۱۵۳_ ۲۲ سندره، اتمه برخه، ۹ بیت.
[2] ویدا، ج ۲ ص ۱۷_۱۸ سندره ۶، ۷ بیت.
[3] اسون: د سهار دوه ستوري دي، چې د پخوانو په عقیده دوه سپاره ارباب انواع وو.

غـواوې راکـړې. لکـه مدهـه پـاتې تیـا او- نـی پـاتې تیـا «د دوو شـاعرانو نومونـه دي» تـه چـې دې ورکـړې دي، هغسـې چـې د کنـوا Kanva ټبـر او د تراسادسـیو Trasadsyu شـهزاده او پکتـه «د پښتنـو پاچـا» او داسـاور اجـا Dasavraja تـه دې ورکړې دي...»[1].

پـه دې سندره کـې شـاعر لـه اندرا «د جـنګ رب النـوع» څخـه پیـورې غـواوې غـواړي، چـې د آریایـانو پـه ژونـدون کـې یـې ډېـر اهمیـت درلـود او دوه تنـه نـور شـاعران او د کنـوا قبیلـه او یـو شـهزاده او بـل پاچـا او هـم د پښتنـو پاچـا «پکتـه» د مثـال پـه ډول راوړي او لـه انـدرا څخـه د دوی پـه توګـه غـواوې او بـډایي غـواړي. لـه دې سندرې څخـه ښـه څرګندېږي، چـې انـدرا د جـنګ رب النـوع د پکهـت لـه دلاورې او جنګـړې قبـیلې سـره ډېـره مهربـاني درلـوده او دا قبیلـه پـه هغـه وخـت کـې هـم ډېـره بډایـه او باده وه، ډېرې غلې او ګورومونه یې درلودل.

دویدا په بل ځای کې د پښتنو یادونه هسې شوې ده:

«هغـه ډېـر ښـه سـندرچي د جـنګ پـه تـودوالي کـې دا دعـا وویلـه چـې پـه جـنګ کـې پـر اسـونانو Asvins بـری ومـومي، هغـه وخـت چـې خـورا سـخي رب النـوع د پکهـت پـلار او مـور وژغـورل؛ نـو یـې پـر اووهوتـاو[2] یرغـل وکـړ، شـیاوانا Chyavana «د یـوه پخـواني شـاعر زوی» د ښکلـو سـوغاتو د وړانـدې کولـو لپـاره پـه ډېـر وابیـرو هغـه مـذبح سـمبال کـړ، تـور وایانـا Turvayana چـې تـر ټولـو موجوداتـو ـ ښـه ړوغ لـري، د نـذر مشـروبات یـې د سـېل

---

[1] ویدا، ج ۲، ص ۲۶۰، لومړی سندره، اتمه برخه.

[2] هوتا: هغه علماوو چې لویې قربانۍ به د دوی په لاس کېدلې.

په ځېر راتوی کړل، چې مځکه زرغونه او اوبه کړي))[1]. لکه پيشل Pishel مشهور ويد پوهاند چې ويلي دي توروايانا د پښتنو د پاچا نوم دی د شياوانا شاعر سره چې د بريګو زوی و، د پاچا مخالفت ولوېد.

شياوانا د آسون له رب النوع سره مينه درلوده، د قربانۍ ځای يې په ډېرو ابيرو او خوشبويو شيانو سمبال کړ، چې د پکهت پر پاچا بری ومومي؛ خو اندراد جګړې رب النوع د پښتنو د ننګيالۍ قبيلې پر خوا شو. قرباني يې منع کړه، هوتاکان چې د قربانۍ د اجراء لپاره راغلي وو، سره ويې شړل؛ نو د پښتنو پاچا د اندرا د خوښۍ لپاره مشروبات، لکه بهاندرود داسې وبهول او پر دښمن بريالی شو[2].

په دې ډول پښتانه تل په جګړو کې پر دښمنانو بريالي وو، د دوی د پاچا اقتدار هم خورا ډېر و، د ريګويدا سندرې له دغو جګړو څخه ښه تفصيلات راکوي، چې اندرا هم تل د پښتنو ملګری و او په جګړو کې يې د دوی پاچا ته کومک رساوه[3].

دا خو په خپله د پکهت يعنې د پښتون ډېر پخوانی تاريخ تذکار و، چې دويدا په پاڼو کې شوی دی، بې له پکهت څخه په ويدا کې د پښتنو د ځينو قبيلو نومونه هم ذکر شوي دي او دا ځنې ښکاري، چې د پښتنو قبايل په هغو وختو کې هم موجود او مشهور وو مثلاً:

((دي وو داسا)) د ارغنداو او دهراوت پر غاړو له څو قبيلو

[1] ويدا ج ۲، ص ۴۶۵_ ۶۱ سندره، لسمه برخه.
[2] ويدا، ص ۴۶۵، ج ۲ فټ نوټ.
[3] رګويدك كلچر ۳۵۶.

سره جنګونه وکړه چې نومونه یې دادي: ډاسا Dasasa، پاني Pani، بریسایا Brisaya، پاراوتا Paravata. دا جنګونه د هیل برانټ Hillebrandt په قول د سراسوتي (Sarasvati) یا هراوتي یعنې دهراوت او ارغنداو پر غاړو وو. دی وایي چې په دغو جګړو کې داراکوزي (اوسني قندهار) خلک شامل وو او د ویدا (پاراوتا) قبیله هغه پاروییتي Parueti ګڼي چې بطلمیوس یوناني جغرافیا وال هم د ارغنداو په ورشو کې ښوولې ده[1].

څکه چې ویدا تل زموږ د هیواد مځکې، غرونه او رودونه یادوي او ددې هیواد کتاب دی؛ نو دا ویلای شو چې د هیلبرانټ نظریه رښتیا ته نژدې ده او سراسوتي چې په اوستا کې هراوتي و، اوس دغه دهراوت دی، ډاساچي ددغو مځکو یوه قبیله وه، په پښتنو کې تر اوسه هم په دغه نامه ځینې قبایل شته، مثلاً په سلیمان خېلو کې تر اوسه هم د ډاسو (Dasu) قبیله شته[2].

پاني هم اوس په پتي مشهور دي، چې په سیوي کې د ډاډر شمال ته اوسي او ځانونه کاکړ ګڼي[3]. بریسایا کټ کټ اوس هم شته، برېڅ یې بولو چې د قندهار په ښوراوك کې اوسي او د فتح خان کیسې یې تر اوسه مشهورې دي[4] او په هند کې هم د پنجاب ویریچ قبیله دغه برېڅ ته رسي او د جنوبي هند بهرایچ ښار هم له دغه نامه سره اړه لري.

---

[1] کیمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۸۷.

[2] حیات افغاني، ص ۲۵۸.

[3] حیات، ۱۵۴.

[4] حیات، ۲۴۱.

دغسې هم د ویدا "پار اوتا" چې بطلمیوس د ارغنداو پارویي تې قبیله بللې ده، تر اوسه هم په الکوزو کې پروټ (Prut) نومې پښه شته[1]؛ ځکه چې الکوزي هم د اراکوزي خلك دي؛ نو پروټ هم هغه پار اواتا قبیلې ته نژدې دي.

## پښتون په اوستا کې (پښتو، بخدي):

تروېدا وروسته زمونږ د هېواد یو مهم تاریخي سند، د اوستا کتاب دی، چې د (۱۰۰۰ ق، م) په شاوخوا کې یې نېټه ده، دا کتاب هم د (بخدي، بلخ) په ورشوګانو کې کښل شوی دی او زمونږ د هېواد تاریخي وثیقه ده، په دې کتاب کې صراحتاً د پښتون یا پکهت نوم نه دی راغلی؛ خو مونږ دا ویلای شو، چې دغه کتاب هم ددې اولس له نومه خالي نه دی، په دې ډول: دمخه مو وویل، چې د آریا د توکم مرکزي هېواد بخدي = باختر = بلخ دی، په دې ډول:

هغه وخت چې سکایي لاکس Scylax یوناني امیر البحر د داریوش (۵۲۱_۴۸۶ ق، م) له خوا د بحیره عرب د غاړو د کشف په کارمامورسو؛ نو دی د کاسپیتروس[2] Caspatyrus له خوا د پکتیکا پر لار اندوس ته ولاړ او په کښتۍ کې سپور شو او بحیره عرب ته لکه د مخه مو وویل: چې د آریا توکم مرکزي هېواد بخدي، باختر، بلخ دی، لکه چې ښکاره ده د ویدا پکهت، د هیروډوت پکتي یا پکتیس سره یو دي چې دغه نومونه بخدا و بخت او بیا هم وروسته پخت او پکت او پښت شول او د بخدي د زاړه نامه ریښه تر

[1] حیات، ۱۱۸.

[2] ځیني وايي دا ښار د کابل په حدودو کې و؛ ځیني یې د کشمیر پر خوا بولي.

اوسه هم په پښتون کې شته، دا نوم په وروستني ویدي ادب کې بلهیکا راغلی دی، چې د ویدا یوه برخه اتهروا ویدا کې کټ مټ دغسې ضبط دی او په پهلوي ادب کې هم بخلي، بخل، باخل راغلی دی[۱]. په مها بهارت کې بهلیکه Bahlika کښل شوی دی[۲] او پانیني د سنسکریت د نامه مؤسس او صرفي او نحوي عالم هم تر میلاد دمخه په څلورمه پېړۍ کې په بهیکه قبیلو کې ډېر قبایل راوړي او هغه ټول بلخیان بولي، په خپله په اوستا کې چې د آریایانو د هېوادو نومونه راغلي دي، څلورم یې بخدي دی[۳] چې په اوستا کې بخدیم سریرام (ښکلی بلخ) هم بیا ذکر شوی دی او لکه د اوستا فرهنگ (ص ۱۱۰) چې لیکي ددې نامه عصري توري (ب، ا، خ، د، ی) یا (ب، ا، خ، ت، ر، ی) چې باخدي، یا باختري ځنې جوړېږي.



پروفیسور پرزي لوسکي ددې نومونو له نژدېوالي څخه دا نتیجه اخلي، چې دغه ټول نومونه د بلخ دي[۴] اوجیکسن وایي: د اوستا هغه پهلوي نسخه کې چې له سمرقنده راوتلې ده او د اتمې پېړۍ لیک دی، بخل بامیك یې په اتم باب کې راغلی دی، چې دغه اوسنی بلخ ځنې مراد دی[۵]. اوس نو ددې نومو د اوښتلو سلسله وګورۍ!

د ویدا پکهت: (پ) په (ب) اوړي: (ك) په (خ، ښ) اوړي (ت)

---

[۱] آریانا، ص ۹۴، ۱۱۵، ۱۷۷.

[۲] اردو مها بهارت.

[۳] وندیداد لومړی فرګرد.

[۴] تاریخ افغانستان، ج ۱، ۸۳_۸۴.

[۵] د زند اوستا ترجمه ج ۱، ص ۸، زردشت ص ۲۷۱.

په (د) اوړي؛ نو پکهت = بخت = پخت = بخد = پښت.
د اوستا بخدي: اصل پکهت پایتخت یا پښت وروسته بخدي د دوی په نامه د ښار نوم شو.

## دا نوم:

د سنسکریت او اتهورا ویدا: بلهیکاسو او د: مهابهارت: بهلیکه سو، وروسته د پهلوي: باخل، پخل او د لومړنی پارسو: باختر بلخ شو.
ددې ټولو ریښه هغه پکهت او پښت دی، چې وروسته د پښتون نوم ځنې زېږېدلی دی او دا نوم تر اوسه هم ژوندی دی؛ نو هېڅ شك نه پاتېږي، چې د اوستا بخدي داسې اوړي: بختي = ښندي، پښتي چې د یونان مؤرخینو هم پاکتي، پکتي راوړی دی.



## پښتون او یوناني مؤرخین:

لکه چې تاسې ولوستل: پښتون قوم د آریا له هغو مشهورو قبیلو څخه و، چې د ویدا او اوستا د لیکلو او ډغولو په وخت کې ډېر شهرت درلود، د مدنیت خاوند و، پاچاهي او اداري نظام یې درلود، په خپل هېواد کې د نورو هموطنانو سره په اتحاد او ملکرتیا اوسېدل، دې قوم تر ویدي او اوستایي عصر وروسته هم تل خپل نوم او نښان وساته او تل مؤرخینو په ښه نامه ستایلی دی او هېڅ وخت یو نومورکی ملت نه و؛ لکه چې تر دغو زمانو وروسته د یونان مشهور مؤرخ هیرودوټ (۴۸۴_۴۲۵ ق، م) هم په خپله مشهوره جغرافیا کې د پښتنو ذکر کوي، دی د پښتنو هېواد د پکتیکا په نامه یادوي، چې د

انډوس پر غاړه واقع دی او خلک یې ډېر غښتلي او مړني دي. د دوی کالي پوستینان دي، وطني غشي او لیندۍ او چړې، په دوداوجال کې باختري خلکو ته ورته دي[1].

هغه وخت چې سکایي لاکس یوناني امیر البحر د داریوش (۵۲۱_۴۸۶ ق، م) له خوا د بحیره عرب د غاړو د کشف په کار مامور شو نو دی د کسپیتروس[2] له خوا د پکتیکا پر لار انډوس ته ولاړ او په کښتۍ کې سپور شو او بحیره عرب ته له دغې لارې انډو س ته ورسېده[3]. سکایي لاکس په خپله سیاحت ناه کې د پکتیکا ذکر هم کړی دی[4].

علاوه پر دغه هیروډوت د ارمنستان په (۱۳) ستراپي کې هم پکتیکا راوړې او دا د پښتو هغه برخه ده، چې دمخه موږ دروښوولـه او د پارتیا څخه غربي خوا تـه تللی و. او هیروډوت یې په ارمینیا Armenia کې نوم او بیان راوړی دی[5].

د یونان یوه بل جغرافیا لیکونکی بطلمیوس کلودیوس Ptolemee- Claudius هم د پښتنو هېواد (پکتین) یاد کړی دی، دی وایي: چې پکتین د پاروپا میزاد جنوب ته دی. دا ځای د پکتیانو مسکن دی[6].

بطلمیوس چې تر هیروډوت راوروسته د دوهمې میلادي

---

[1] د هنري افغاني مطالعات، ص ۲.

[2] ځینې وایي دا ښار د کابل په حدودو کې و ځینې یې د کشمیر پر خوا بولي.

[3] دویلر جغرافیای هیروډوت، ص ۱۹۸_ ۲۸۱؛ د مکالي تاریخ هیروډوت، ج ۱، ص ۲۶۰_ ۳۳۸؛ ج ۲، ص ۱۵۷_ ۱۶۲، انسکلوپیدي اسلام، ج ۱، ص ۱۵۰؛ تاریخ باختر راولنسن، ص ۳۰.

[4] راورټي د پښتو ګرامر مقدمه، ص ۳۱؛ د Melpomene ج ۴، ص ۴۴ په حواله.

[5] د هیروډوت جغرافیا، ص ۲۸۱.

[6] تاریخ افغانستان، ج ۱، ص ۹۲.

پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې ژوند دی، په لوړ ډول د پښتنو هېواد راښیي او دا څنګ ښکاري، چې په دغه وخت کې هم د پښتون شهرت په مدني دنیا کې ډېر و او دا قوم هر چا پېژانده، دویدا پکهت د یونان د جغرافیاوالو او تاریخ لیکونکیو له خوا پکتي، پکتیس او پکتویس Paktves ضبط شوی دی او داسې معلومېږي، چې دا تغییر د یوناني ژبې د لهجې او خصوصیت له پلوه دی؛ لکه د اروپا پوهان اکثراً دغه مني. پروفیسور لاسین Lassen چې د یوناني باختري پاچاهانو تاریخ یې کښلی دی، لومړی پلا د یونان پکتویس له اوسني پښتون سره تطبیق کوي.

وروسته دا نظریه نورو پوهانو، لکه ترومپ Trumpp او ګریرسن Grierson هم ومنله، دوی د جغرافي موقعیت له مخې د یونان پکتویس، پښتانه وبلل او دا علمي نظریه یې ثابته کړه او اوس ټول مؤرخین د ویدا پکهت او د یوناني مؤرخینو پکتویس دغه پښتون ملت ګڼي[1]، چې د دوی مدنیت او د نامه تاریخ، ډېر قدیم دی او تر (۱۴۰۰ ق، م) پورې رسېږي.

## بختي په اسلامي دوره کې:

دا نوم تر اسلام وروسته هم ژوندی او مستعمل و، په دې ډول: د باختر او بخدي د پښتنو اوښان پخوا مشهور وو، بارتولد مستشرق وایي چې سلمانا سار، د اشور دوهم پاچا په (۸۴۲ ق م) یو مخروطي ستون جوړ کړی دی او د بختي اوښانو تصاویر پر هغه ستون تر اوسه شته. دغه اوښان به تل له

[1] د بارتولد تاریخي جغرافیا، ص ۱۳۰.

باختره د پاچاهانو دربارو ته دججې او خراج په ډول وړاندې کېدل[1] او د پارس د تخت جمشېد په ډبرلیک کې هم بلخیان ددغه بختي اوښه سره لیدل کېږي.

اسلامي مؤرخین هم بختي اوښان ذکر کوي، چې د سیستان، کابل او بلخ څخه په تل د عربو خلفاوو دربارو ته استول کېدل[2]. په اوسنۍ پارسو او پښتو کې هم بختي اوښان مشهور دي او د افغانستان په اسلامي تاریخو کې هم (اشترهای بختی) ذکر شوي دي[3] او د بلخ اوښان یې بختي بلل؛ لکه چې په (۱۰۴۱ هـ) د بلخ والي نذرمحمد خان د شاه جهان د هند پاچا حضور ته هدایا ولېږل او محمد صالح لاهوري یې ذکر هسې کوي:

((در همان نزدیکی سی و پنج راس اسپ و سه زره وده شتر بختی نر و ماده بطریق پیشکش گذرانید))[4]. دا اوښان هم پښت او بخت یعني بخدي ته منسوب دي او د پښتون د کلمې ریښې هم په دغو نومونو کې دي.



## نتیجه:

له دغو ټولو تاریخي پلټنو څخه اوس دا نتیجه اخلو، چې الفاظ او کلمات او نومونه تل د زمانو د تېرېدلو لو تللو سره اوړي، یعني ځینې حروف زیاتېږي او ځینې کمېږي له منځه وځي او کوم توري چې په خوله کې یې مخرج سره نژدې وي،

[1] د بارتولد تاریخي جغرافیا، ص ۴۹_ ۵۰.

[2] په طبري او الکامل کې د عمر لیث حال وګورئ.

[3] تاریخ سیستان، ص ۶۶.

[4] عمل صالح یا شاه جهان نامه، ج ۱، ص ۴۹۳.

یو له بله سره اوړي، مثلاً د پکهت کلمه، (پ، ك، هـ، ت) لري.

پ په ب اوړي؛ لکه: د پارسو شب د پښتو شپه.

به = په.

سبك = سپك.

ك په خ اوړي؛ لکه: کلاه = خوله.

د هندکو مکه = مخ.

پکاول = پخول.

خ په ښ اوړي؛ لکه: د پښتو خاغلی = ښاغلی.

ښکلی = خکلی.

خار = ښار.

(هـ) چې ملفوظه وي حذفېږي؛ لکه: د هندي کهر = کور.

د پښتو ستنه = ستن.



لمنه = لمن.

د په ت اوړي؛ لکه: د پارسو اباد = ابات.

عربي زیاد = زیات.

دا د اوښتنې اصول په آریایي ژبو کې ډېر باب دي او ډېرې کلمې په هندي، پښتو او ایراني ژبو کې یو له بله سره اوښتي دي؛ نو (پکهت، بخدي، بخت، پخت، پښت) ټولې له یوې کورنۍ دي او په پای کې له دغې آریایي قدیمې ریښې څخه د (پښتون) نوم جوړ شوی دی.

## پښتو:

اوس چې تاسې د پښتون د کلمې زړې ریښې ومونډلې او په زاړه تاریخ یې هم پوه سواست؛ نو د هغو تاریخي پلټنو په رڼا کې به تاسې ته دا خبره زباده شي چې پښتون د ریګویدا تر

لیک یعنې تر (۱۴۰۰ ق، م) لادمخه یو مشهور، نوموړی او ننګیالی ملت و، وروسته هم په هره دوره کې مؤرخینو پېژاند او ذکر یې په قدیمو او نورو تاریخي کتابو کې راغلی دی.

یو اولس چې هسې روڼ تاریخ لري، مدنیت لري، ثقافت لري، له پخوانو زمانو څخه اداري نظام، حکومت او مشران لري، ددې ټولو شیانو وجود او خوندي کول په یوه قوي او ژوندۍ ژبه اړه لري؛ ځکه چې په ټولو تاریخي دورو کې پښتنو دغه ټول د ژوندانه ارکان او لوازم درلودل او هم یې ساتلي وو او تر اوسه هم ورسره دي؛ نو بې له هېڅ شکه دوی باید ژوندۍ او ښه ژبه هم ورسره ولري.

د دوی دغه ژبه چې ثقافي ژوندون او تاریخ یې ورساتلی دی ((پښتو)) ده؛ لکه د پښتون نوم چې د ویدا او اوستا همزولی دی، دغسې هم د پښتو نوم ډېر پخوانی دی، هغونې چې د پښتون تاریخ زوړ دی؛ نو طبعاً د دُوی د ژبې نښه هم بویه چې ډېره پخوانۍ ده.

د پښتو نوم هم د هغه (پکهت = پښت) څخه جوړ شوی په دې ډول: د پښتو ژبې اساسي قاعده داده، چې د هر اولس او قوم د نامه په پای کې یو مجهول (واو) وراچوي او د هغه قوم ژبه په دغه نامه بولي: مثلاً په پښتو هندکي یا اندکي هندوستاني ته وایي، چې دا نوم د یونان مؤرخینو اندیکه Indika ضبط کړی دی[1]. که ددغې قاعدې سره سم یو مجهول (و) په پای کې ورواچوو؛ ځکه چې آخر حرف علت (ی) هر وخت لوېږي؛ نو به هندکو یا اندکو Indiko څنې جوړه شي، چې پښتانه یې د هندیانو ژبې ته وایي او چې کلمه سره

[1] ایران د بارتولد، ص ۲۰.

سپکه او تخفيف شي؛ نو (انکو) يې هم بولي. يو شاعر وايي:

زه خوار پښتون يم انکو مې څه زده
راته وېږي "مـــــــارا تمهارا"

دا قـــانون عـــام دی پښتانـــه خپـــل ګاونـــډي اقـــوام دېګـــان Digan بـولي او ژبـه يې پـه هغـه قاعـده دېګـانو بـولي، دغسې د پـارس ژبې تـه پاړسـو Parso وايـي: نـو کـه دريګويـدا د پکهـت = پښت پـه پـای کې پر دغـه قاعـده برابـر يـو مجهـول (و) زيـات شي پکهتـو = پښتـو بـه څنې جـوړه شي، چې معنـا يې د پښتنـو ژبـه ده. ځکـه چې د (پکهـت = پښـت) نـوم زوړ دی؛ نـو د پښتـو نـوم هم هغونې پخوانی دی.

پښتـو خـو اصلاً د ژبې نـوم و، وروسـته دې کلمې يـو بـل ادبي مفهـوم هـم ومونـد چې پـه پښتنـو کې يې دغـه اجتمـاعي مقصـود هـم ډېـر مهـم او د غـور وړ دی، پښتـو کـه څـه هـم يـوه کوچنـوټې کلمـه ده؛ مګـر د مفهـوم لـه مخې هسـې ارتـه او پلنـه شـوه، چې د پښتنـو ټـول اجتمـاعي او حيـاتي نظـام يې پـه لمـن کې ونيـو او اوس پښتانـــه خپـــل ټـول عنعنـــات، ملـــي اخـــلاق او پښتنـــي ښېګـړې، ملـي دودونـه او جالونـه، يعـنې خپـل ټول اجتمـاعي او روحـي نظـام د "پښتـو" پـه نامـه يـادوي، د کلمې د مفهـوم دا وسـعت او ارتـوالی دی، چې پښتانـه د پښتـو لـه کلمې سـره ډېـره مينه لري او پښتو د دوی د مليت څرګنده نخښه ده.

کـه يـوه پښتانـه تـه وويـل شـي چې پښتـو نـه لـري، دا لـوی ښکنځـل دي، ګويـا د ټولـو انسـاني صـفاتو نفې يې څنې وکـړه؛ نـو د پښتنـو پـه حيـاتي قـاموس کې د پښتـو لنـډه ترجمـه داده: ((پښتـو: يعـنې د ټولـو ښـو انسـاني صـفاتو مجموعـه او د پښتنـي عنعناتو، اخلاقو او ښو دودونو بنسټ...)).

لکه پښتو چې د ژبې له نامه څخه چې محض علم و، یو ملي اجتماعي ارت مصداق موندلی دی. دغسې هم د پښتون کلمه پر خپل تش علمیت نه ده پاتې، پښتون که د صفت په ډول وویل شي، هلته نو داسې معنا ورکوي: یو سړی چې په ټولو انساني شریفو او ښو اخلاقو متصف وي، مخصوصاً رشتین او دلاور او د عزم او کلکې ارادې خاوند ته پښتون وایي. په دې اجتماعي او اخلاقي مصداق پښتو او پښتون هسې استعمالېږي:

((هوتك خان پښتو کړې ده)): یعنې یوه کار ته یې عزم او کلکه اراده کړې ده او له هغه څخه نه تېرېږي.

((پر خپله پښتو ټینګ دی)): یعنې پر خپله وینا، وعده او ننګ ولاړ دی، صادق الوعد دی.

خواجه رزق الله چې په (۱۱۵۹هـ) د چېرهار په رود کې زوکړی دی په دغه معنی پښتو هسې راوړي:

د بلا غشي مې خېژي له پوښتو
زه خواجه رزق الله نه پرېږدم پښتو[۱]

((تر پښتو اوښتل)): پر وعده نه درېدل، تر خپلې وینا تېرېدل، بې زړه توب کول، تر اخلاقي مقرراتو اوښتل.

((خپله پښتو سره کول)): یعنې خپله وعده او اراده تر پایه رسول.

((پښتون کېدل)) پر عزم او اراده په شجاعت او دلاورۍ درېدل او څرګند اعلان کول، سپېڅلي اخلاق او احساسات او ښکلي انساني عواطف درلودل. دا اجتماعي معاني او مصادیق ډېر دي، دلته ددې کتاب وظیفه نه ده، چې د پښتو

[۱] پښتانه شعراء، ج ۱، ص ۳۷۶.

او پښتنوالي زياتې څېړنه وکړي، فقط په دغه يوه اشاره بسنه کوو.

## پښتو او د اوسنيو پوهانو آراء:

تر ډېره وخته پښتو ژبې ته د چا پام نه و او لکه خوشال خان چې ويلي وو: ((بکره او پېغله وه)). په نونسم عيسوي قرن کې چې د اروپا علماء او پوهان شرق ته راشېوه شول؛ نو د شرق د ژبو او علومو او زړو نخښو په پلټنو کې دوی ژبې هم وپلټلې او زده يې کړې. دغو پوهانو يوه نوې څانگه د علم او تحقيق په دنيا کې ښېرته کړه، چې هغه استشراق Orientalism او دا ډله علماء مستشرقين Orientalist بلل کېږي او موږ په پښتو لومړنی ته ختيځ پوهنه، پوهانو ته يې، ((ختيځ پوهاند)) وايو، چې په پارسو يې ((خاور شناس)) بولي، دغو پوهانو يقيناً تاريخ او علم ته ښکاره خدمتونه کړي دي. دوی د مصر زاړه خطوط او د ايران ډېرليکونه او د هند او چين زړې ژبې زده کړې چې اوس ژوندۍ نه دي او نه ويل کېږي، دوی بېرته ژوندۍ کړې او پر دغو باندې يې غټ غټ کتابونه وکښل، اصول او قواعد او د خط او ليك لياري يې کشف کړې، په دغو پوهانو کې يوه ډله هغه خلك وو، چې دوی د آريايي مدنيت د پلټنې لپاره زيارونه وکښل. د هند آريايي ژبې يې زده کړې، زاړه کتابونه يې ولوستل او په خپلو ژبو يې ترجمه کړل. د ايران ژبې يې وپلټلې، زړه پارسو؛ پهلوي يې ولوستې او له دې ډلې څخه يو څو تنه داسې هم دي، چې دوی پښتو ژبه زده کړه او ډېر علمي تحقيقات يې په دغه ژبه کې وکړل. د پښتو قواعد او گرامر يې ضبط کړل او محاورات يې وکښل،

بدلېداو اشعار یې ټول کړل، زاړه کتابونه او آثار یې ومونדل[1].

د موسیو برتلز روسي ختیځپوهاند په قول په اروپا کې لومړی پلا ګولډن شتت الماني پر پښتو یو کتاب وکښ او ځینې لغات یې پکې راټول کړل. دا کتاب په (۱۷۹۱ع) په سینټ پتر زبورګ کې طبع او خپور شو. له دې څخه موږ ته څرګندېږي، چې یو سل و پنځوس کاله پخوا یعنې یوه نیمه پېړۍ دمخه لا د اروپا پوهانو دې خوا ته مخه کړې وه او په دغو وختو کې دوی د پښتو علمي او ادبي پلټنې په ښه ډول کړې دي.

پروفیسور کلي پورټ Kleporth لیکي: ((پښتو ژبه که څه هم بعضو پوهانو له سمیټکي Semitic یعنې سامي ژبو څخه ګڼلې ده؛ مګر زه وایم: چې دا ژبه سوچه له انډوژرمانیک Indu-Germanic (هندو آرین) ژبو څخه ده؛ ځکه نه په الفاظو او لغاتو او نه په قواعدو او ګرامر کې له سامي ژبو سره څه اړه لري[2]. پروفیسور دورن Dorn چې په پترزبورګ کې اوسېده او په (۱۸۴۷ع کال) یې یو کتاب A Chrestomathy of the Pushtu چاپ او خپور کړ، هسې وایي: پښتو نه په ترکیب، نه په لغاتو او نه په ګرامر کې له عبراني او چالدیك Chaldic سره څه مشابهت لري؛ ځکه دا ژبه له انډو تیوتن Indu- Teutonic ډلې څخه ګڼله کېږي او

[1] ددې کتاب په څلورم ټوک کې به د اروپا د ختیځپوهانو یعنې مستشرقینو د زیار او تالیفاتو مفصل تاریخ ولیکم، دلته فقط د دوی آراء راوړل کېږي.
[2] د راورټي د پښتو ګرامر مقدمه، ۲۸.

پښتانه د افغانستان اصلي او پخواني اوسېدوني دي[1].

***

مؤرخ اډلنګ Adelung لیکي: ((که څه هم زه په پښتو کې ډېر معلومات نه لرم؛ خو دا ویلای شم چې دا ژبه ډېره اصیله، ممتازه او وتلې ژبه ده))[2].

***

مستر الفنسټون Mr. Elphinstone مشهور مؤرخ هسې لیکي:

((د پښتو بنسټ او آره په اسانۍ سره نه معلومېږي؛ ځکه ډېر الفاظ چې دا ژبه ځنې جوړه شوې ده او هم خورا ډېر افعال او آدات یې داسې دي چې آره او ریښه یې نه ده معلومه او دا هغه الفاظ او کلمات دي، چې د ژبې اصلي اجزاء ګڼل کېږي؛ بیا هم ځینې له دغو الفاظو څخه له زند Zend او پهلوي ژبو سره نژدېوالی لري، مثلاً پلار، مور، خور، ورور...)) دی تر لوړو خبرو علاوه دا هم وایي چې: ((په ۲۱۸ پښتو کلماتو کې ما پلټنه وکړه، ومې کتلې یوې هم له سامي ژبې سره کوم لږ مشابهت نه درلود؛ خو په دغو الفاظو کې په سلو کې (۵) تر لسو هسې کلمات وو، چې له کردي Kurdish ژبې سره یې نژدېوالی لاره؛ ځکه چې کردي ژبه هم له هندو ژرمن ژبو څخه ده؛ نو سړی ویلای شي چې پښتو هم له دغو ژبو څخه ده...))[3].

مستر راورټي H. G. Raverty چې د پښتو ژبې لوی پوهاند او پلټونکی دی او ډېر کتابونه یې په کې لیکلي او

---

[1] راورټي، ص ۲۹ـ د دورن د مقدمې په حواله.

[2] مټریدیټس Mithridites ج ۱، ص ۲۲۵.

[3] د کابل پېښې، ج ۱، ص ۳۰۲.

خپاره کړي دي، د خپل پښتو ګرامر د (کلکتې طبع ۱۸۵۶ع) په مقدمه کې مفصلاً د پښتو پر آره او سته بحث کوي او د آریایي او سامي ژبو سره یې د ګرامر او الفاظو له پلوه پرتله کوي؛ وروسته دې نتیجې ته رسېږي چې: ((د پښتو، زند او پهلوي ژبو تر منځ ډېر شباهت شته؛ د پښتو په پخوانو کتابو کې؛ لکه زند، حروف د حرکاتو پر ځای کښل شوي دي؛ نو ځکه زه وایم چې د سنسکریت او زند سره ډېر نږدېوالی او له پهلوي سره هم ټینګه اړه لري...)) که د پښتو ژبې د ټولو سیمو ادبیاتو ته وګورو، راښکاره کېږي چې دا ژبه په ادب کې هم ډېره بډایه ده. ډېر شعراء او مؤلفین پکې تېر شوي دي، پر دغو علاوه ځینې ملي سندرې او سپرې بدلې هم په پښتو کې شته، چې د محلي سازو سره ویل کېږي؛ دا بدلې داسې له حرارته ډکې دي چې ماته خپلې بدلې او سندرې را په یادوي او ډېرې مې د پېښور په هستوګنه کې ټولې کړې دي[1].

بل اروپایي پښتو پوهاند او محقق سړی هانري والټر بیلیو Henery walter belew دی چې د (۱۸۶۷ع) په شاوخوا کې د بنګال عسکري منصبدار و، دې سړي هم د پښتو ګرامر کښلی او په تاریخ کې یې ډېر کتب لیکلي دي. دی د پښتو ژبې پر اصالت هسې وایي: ((له ټولو خپلو پلټنو څخه په لنډ ډول دا نتیجه اخلم چې: پښتو اصلاً د سنسکریت یوه خور ده او ځکه چې د هند او ایران تر منځ ویله کېږي؛ نو په پېړیو د پارسي اثرونه پرې لوېدلي او ډېر الفاظ یې سره ګډ شوي دي؛ خو سره ددغه هم دې ژبې خپل ځان او قواعد نه دي بایللي او د فیلالوژۍ له اصولو سره یې سم دغه نوي شیان په خپل قالب

[1] د راورتي پښتو ګرامر، ص ۳۷_۴۸.

کـې اچـول دي او پـه خـورا ښـه ډول يـې پـر خپـل رنـګ را اړولـي دي...[1])).

***

بـل اروپـايي لـوی عـالم او پښتـو پوهانـد جيمـز ډار مسـتېټر James Darmsteter فرانسـوی دی چـې دده يـو کتـاب د پښتنـو ملـي سـندرې Chants Papulaires des Afghan پـه (۱۸۸۹ع) نشـر شـوی دی، دا محقـق پـه خپلـه د پښتونخـوا پـه غـرو کـې ګرځېدلی او ډېر ملي اشعار يـې (د پښتونخـوا (د شعر هـار او بهـار) پـه نامـه سره راغونډ کـړي دي. د پښتـو پـه خصـوص کـې دا نظريـه لـري: ((پښتـو لـه هنـدي لهجـو څخـه نـه ده او نـه لـه پارسـو او پهلـوي څخـه پيـدا شـوې ده؛ بلکـې دا ژبـه د زنـد (اوسـتا) يـا د يـوې بلـې ژبـې سـره چـې زنـد تـه ورتـه وي، ډېـر مشـابهت لـري. پښتـو اشـعار د سپېڅلتوب او طبيعـي والـي لـه پلوه خـاص امتيـاز لـري، بـدايع او نازکخيـالي يـې ډېـره سـپېڅلې او سـوچه ده... پښتانـه اخبـار نـه لـري؛ خـو د دوی اشـعار ټـول وقـايع او روزمـره پېښـې څرګنـدوي؛ دا بـدلې د پښتنـو تـاريخ هـم دی...))[2].

خلاصه ډار مسـتېټر پـر پښتـو دا عقيـده لـري، چـې د اوسـتا لـه پـاتو برخـو څخـه يـوه ژبـه پښتـو پـاتې ده او دا ژبـه اوسـتا يـوه مخصوصـه څانګـه بلـل کېږي او د زنـد سـره ډېـره نزديکـي لـري او اړيکې يې ډېرې ورسره ټينګې دي[3].

***

د اروپـــا لـــه علمـــاوو څخـــه دوکتـــور ارنســـت ترومـــپ

(۱) د بيليو پښتو ګرامر مقدمه، ص ۱۱.

(۲) د ډار مستېټر د پښتنو ملي سندرې، مقدمه، ص ۶۲_۶۵ او لومړی فصل.

(۳) د بروان د ايراني ادب تاريخ، ج ۱، ص ۴۶.

Dr. Trump هم ډېر محقق پوهاند دی، چې په (۱۸۷۳ع) یې د پښتو ګرامر وکېښ. دی هم په دغه کتاب کې د پښتو پر اصل او ریښه هسې رایه ښکاره کوي: ((ز په ټینګه او ډېر اعتماد دا ویلای شم چې پښتو اصلاً له غربي (ایراني) ژبو څخه نه ده؛ بلکې په اصلي اندو آرین Indu- Ariyan ډله اړه لري؛ خو سره ددغه هم خالصه هندي نه بلل کېږي؛ بلکې له پخوانو زمانو څخه دا ژبه زړه مستقله ژبه ده او په لومړي سر کې هم له هندي او ایراني ژبو څخه بېله شوې ده؛ خو بیا هم له دواړو سره په خصوصیاتو کې اشتراك لري او مقتدره او برجسته ژبه ښکاري...))[1].

***

دوکتور هنري Dr. Henry چې د ـ لیل د کتابخانې کتابدار او یو فرانسوی دی، هسې لیکي: ((پښتو له یوې خوا سنسکریت او په ځینو شیانو کې اوستا ته نژدې ده، مثلاً هغه لواحق Suffixes چې د کلماتو په پای پورې نښلي او سنسکریت او اوستا دواړه په دغه خصوصیت کې سره نژدې دي، پښتو هم په دغه خاصیت کې دوی ته ښه ورته ده. د افعالو په ګردان او فاعل او مفعول کې کم ډېر شباهت زند ته لري. د کلماتو په پای کې چې سنسکریت او اوستا مخالفت سره لري، پښتو زند ته نژدې کېږي او کله کله هم سنسکریت ته ورته وي، ددې ټولو نژدېوالو او مشابهتو علت دادی چې: دغه ژبې له یوې ریښې څخه راوتلې دي او د آریایي ژبو تر انشعاب دمخه دوی سره یو وې او هم دوه درې زره کاله پښتو له دغو ژبو سره ګاوندۍ وه او متوالي اړیکې یې سره

[1] د ترومپ، پښتو ګرامر.

درلودل...))[1].

***

بل له نږدو خلکو څخه چې د پښتو پلټونکی ګڼل کېږي پوهاند پرتلز روسي معاصر مستشرق دی، دا سړی د لیننګراد په اکاډیمۍ کې د پښتو په خصوص کې داسې رایه ښکاره کوي:

((پښتو د خپل تاریخي قوت سره یوه پخوانۍ ژبه راغلې ده او په اوږدو اوږدو زمانو ځینې تغیرات هم ورپېښ شوي دي؛ خو دا تحولات داسې نه دي؛ لکه پر پارسو چې وارد شوي دي. پښتو ټول پردي لغات په ځان کې حل کړي او پر خپلو اصولو یې را اړولي دي او د ځان جزو یې ګرځولي دي. د اروپا علماوو له ډېره وخته ددې ژبې قواعد، لغات او اشعار سره ټول کړي دي. ډار مستتر او فریدریك میولر چې په پښتو کې څه پلټنې کړې دي، داسې عقیده لري چې پښتو زند یا له یوې بلې ژبې سره؛ لکه زند ډېر مشابهت لري. میولر دا خبره پر علاوه کوي: ((د پښتو قرابت له زند سره هسې دی لکه د اوسنۍ پارسو خپلوي چې د پخوانۍ هخامنشي پارسي سره ده)). ارنسټ ترومپ وايي چې: پښتو د آریایي ژبې یوه مستقله څانګه او د هندي او ایرانیو څانګو تر منځ منځګړې ده، د ترومپ دا نظریه پروفیسور فون سپیګل Von - Spiegel او دوکتور هارنل Dr. Hornale هم په ټینګه مني، ګریرسون GRierson او پال تیډسکوی یې هم تایید کوي... که څه هم د علماوو په آراوو کې ځینې کوچني اختلافات لیدل کېږي؛ خو بیا هم ټول متفق دي چې پښتو یوه زړه او قدیمه

[1] د هنري، افغاني مطالعات، ص ۵_۱۰.

ژبــه ده او د هنــدي او ایرانیــو ځــانګو ســره د خــور نســبت لري...))[1].

***

مېجــر لــوریمر Lorimer د پښتــو پــر صــرف او نحــو یــو مشــهور کتــاب کښلــی او پــه ۱۹۱۵ع پــه اکســفورډ کــې چــاپ شــوی دی. دی ددې کتــاب پــه پــای کــې پــر پښتــو هســې رایــه ښکــاره کــوي: ((پښتــو کــه څــه هــم تــر اوســه نــه ده روزلــي شــوې؛ خــو ښــه صفات لــري. کــه څــه هــم تــر اوســه ډېره ارتــه ژبــه نــه بلــل کېــږي؛ خــو د خیــالاتو دښکــاره کولــو لپــاره ډېــر قــوت لــري. الفــاظ یــې مــوثر او کلــك او څرګنــد دي، دا یــوه ژونــدی ژبــه ده؛ ځانلــه ځپلــواکي او مهــم د امتیــاز خاصــیتونه لــري، چــې لــه هنــدي او نــورو ژبــو څخــه یــې پــه دغــو خاصــیتو ســره بېلــولای شــو. کــه څــه هــم د پارســو پــه توګــه نازکخیــالي او اســتعارات پــه دې ژبــه کــې لــږ دي؛ خــو پښتــو د نرتــوب قــوه لــري او نسبت نــورو ژبــو تــه پښتــو پــه خــارجي انقلابــو او جګــړو کــې لــږه خســاره لیــدلې ده؛ پــه تلفظ کــې یــې قــوت پــروت دی. دا خبــره هغــه وخــت پــه ښــه ډول ســړي تــه معلومېــږي چــې د یــوه پښتــانــه ســره خبــرې وکــړي؛ یــا د دوی ادبیات او کیسې مطالعه کړي...))[2].

***

وروســتنی ډېــر محقــق ژبپوهانــد ســر، جــي، ای. ګریــر ســن G. A. Grierson د فلســفې او ادب دوکتــور دی چــې لنګوســتیك ســروې آف انډیــا Linguistic survey of India یــې پــه لــس جلــده کــې لیکلــی دی او ددې کتــاب لســم ټــوك د پښتــو بحــث لــري؛ دده آراء د پښتــو پــه خصــوص کــې پــه لنــډ ډول لانــدې

---

[1] د لیننګراد اکاډیمي، د لسانیاتو سلسله ج ۴.

[2] پښتو او د پښتو ګرامر او قواعد د لوریمر تالیف.

راوړو:

«آريايي اقوام د خيوا، خوکند او بدخشان تر منځ په خپله اصلي مځکه کې اوسېدل؛ له هغه ځايه يوه ډله تر هندوکش راواوښتل؛ د کابل له درو څخه هند ته تېر شول او بله ډله هم د ايران پر خواوو شېوه شوه؛ ددغو دوو ډلو ژبو ته هندو آرين يا هند او ايرانين Indu- Aryans ژبې وايو. له قديمي زمانې څخه دا آريايان پر ډېرو قبيلو وېشل شوي وو، مثلاً د داريوش Darius (۵۲۲_۴۸۴ ق، م) په ډبرليك کې دولس قبيلې ذکر شوې دي او هرې دغې قبيلې ځانته ژبه درلوده؛ خو دونې ښکاري چې ددغه ډبرليك زړه پارسو Old- Persian چې په پارس کې ويل کېده او د شرق ژبه يعنې اوستا Avesta سره بېلې دي، اوستا اصلاً شرقي ژبه وه او ډېرو پوهانو د باختر Bactria ژبه بللې ده؛ نو موږ ټينې آريايي ژبې د پاړسو له نسله ګڼو او پرسيك Persic يې بولو_ او بله ډله ناپاړسو Non- Persic ګڼو. ايراني او هندي ژبې دواړه له يوې ريښې څخه او سره نژدې دي؛ وروسته يو له بله سره بېلې شوي. که د اوستا ډېر پخواني اجزاء د ويدا او سنسکريت سره پرتله شي، دا مقصد ښه ځني ځرګندېږي؛ خو هر څونې چې وختونه ډېر تېر شول، دا دواړې ژبې ډېرې سره لېرې شوې، دلته د هندوکش په جنوب او د هند د شمال غربي سرحدونو پر خوا ځينې ژبې؛ لکه داردي Dardic او پيساچا Pisacha پر خپل زاړه حال پاتې دي او دا ژبې تر هندي او ايراني وېش دمخه ځينې آريايي ذخاير لري؛ له هغو ژبو څخه چې موږ يې ناپاړسو Non- Persic بولو او د ميډي Medic ژبې اطلاق هم پرې کېداى شي، د پامير ژبې دي؛ لکه غلچه Ghalchah او

بدخشي Badakhshi دغسې هم اورمړي Ormuri او بلوڅي Baluchi له دغو ژبو څخه پښتو هم د افغانستان د يوې مهمې برخې او ډېرو ګاونډيو قبايلو ژبه ده او تر څلورو مليونو پورې په دې ژبه خبرې کوي[1].

ددې ژبې نوم پښتو دی، چې د افغان ملت ژبه ګڼل کېږي. پښتانه يا افغانان اصلاً هغه پکهت Pakthas قوم دی، چې په ريګويدا کې يې نوم راغلی او وروسته هيرو ډوت د پکتوس Paktves په نامه ذکر کړي دي.

اما د افغان نوم هم په پخوانو آثارو کې ريښه لري، مثلاً په پورانا Puranas کتاب کې چې اسوکا Asvakas راغلی دی، يا سترابون Strabon يوناني مؤرخ چې په لومړۍ ميلادي پېړۍ کې اوتکنواي Aotaknvoi ذکر کړی دی، دا هغه اوګانا Avagana يا آوګانا Avagana دی چې د هندوستان مشهور منجم ورايه مهيره Varahamihira يې په شپږمه ميلادي پېړۍ کې ذکر کړی دی، په هر صورت خو د دوی اصلي نوم پښتون او د ژبې نوم يې پښتو ده، دا ژبه؛ لکه پخوا چې خلکو په عبراني Hebrew پورې نښلوله؛ اوس چې آريايي ژبه ثابته شوه او لکه د پامير غلچه Gualchah او بيوڅي ژبې چې د آريايي په ناپارسو Non- Persic او شرقي کورنۍ يعنې زند Zend پورې اړه لري، دغسې هم پښتو اساساً له دغې کورنۍ څخه ده، پروفيسور ميولر Pr. Muler لومړی سړی دی، چې په (۱۸۶۲ع) يې په خپل کتاب Veber Dies Pracheoer Afghanen کې دا رايه ښکاره کړه، چې پښتو د آريايي ژبو

---

[1] دا شمېر ډېر زوړ دی، اوس د پښتو ويونکو شمېر په افغانستان او پښتونستان کې ۲۰ ميليونو ته رسېږي.

په شرقي ډله اړه لري. دوکتور ترومپ Dr. Trumpp په خپل پښتو ګرامر کې په (۱۸۷۳ع) په خورا قوي ډول ذکر کوي، چې غربي (ایراني) ژبه نه ده؛ بلکې په شرقي آریایي ژبو کې داخله ده. دا نظریه دمخه پروفیسور، فوسپیګل Dr. Von. Speigel په خپل کتاب Eranische Alterthumsknde کې هم تایید کړې وه او هم دوکتور هورنل Hoernle په خپل کتاب د ګاوډي ژبو ګرامر Grammar of the Gaudian Language کې هم دغه نظریه مني؛ خو لومړی پلا ډار مستېټر د هند د فیلالوژیك وفد په راپورت کې په ښه ډول وخېړله (۱۸۸۷ع). او په بل کتاب (د پښتو ملي سندرې) کې یې وویل[1] چې پښتو په زند یا په بله داسې ژبه اړه لري، چې هغه هم زند ته ورته وي[2]. دا وو د ګریرسن نظریات چې دده د کتاب له لومړیو مخو څخه مو لنډ کړل. تر دې وروسته دی د پښتو د ادب پر تاریخ لنډ نظر کوي او بیا نو مفصلاً د پښتو ګرامر او لغات او لهجې د نمونو سره ضبط کوي، چې دلته زیاتې تر دې زموږ له بحثه سره اړه نه لري.

## ددغو افکارو نتیجه او د پښتون اصل:

په لوړو کرښو کې موږ د اورپا د پوهانو د افکارو یوه لنډه نمونه تاسې ته د پښتو په خصوص کې وړاندې کړه، له دغو نظریاتو څخه موږ کولای شو چې یوه علمي نتیجه په لاندې ډول واخلو او هغه څه چې مو دمخه د پښتو ژبې د تاریخي اصالت په خصوص کې ولیکل ښه پسې تایید کړو:

[1] ددې نظریې شرح دمخه تېره شوه.
[2] د هند ژبو راپور، ج ۱۰، ص ۱ ـ ۱۳.

د اوسنیو پوهانو له علمي پلټنو څخه خو لومړی دا مسئله ښه ښکاره شوه چې پښتو یوه آریایي ژبه ده؛ له سامي او عبري ژبو سره کومه اړه نه لري. په آریایي ژبو کې هم پښتو د میولر او ډار مستتر په قول له زند یا زند غوندې له بلې ژبې څخه راوتلې ده؛ مګر تر دغو ټولو د دوکتور ترومپ نظریه حقیقت ته نژدې ده، چې پښتو د ایراني او هندي آریایي ژبو تر منځ د اتصال حلقه ده[1] او په تاریخي دلایلو باندې دا ومنو چې پښتو ژبه له اصلي باختري ژبې یا آریک څخه مستقلاً راوتلې مستقیماً د زند او سنسکریت خور ده. په راتلونکیو مخونو او څېړنو کې به تاسې ددې تاریخي حقیقت دلایل او براهین مفصلاً ولولئ او دا خبره به یوه تاریخي مستند حقیقت په ډول درته څرګنده شي.



## پښتو ولې سامي یا عبري ژبه بلل شوې ده؟

ځینو مؤرخینو او لیکوالو پښتو له سامي او عبري څانګو څخه ګڼلې ده. ددې خبرې علت هم دادی چې د اسلام د مقدس دین سره یو ځای زموږ هېواد ته عربي ژبه راغله؛ ددې سامي ژبې کلمات او لغات د دیانت په اثر په پښتو کې ګډ شول؛ نو هر چا چې په پښتو کې عربي مفغن کلمات لیدلي دي، حکم یې کړی دی، چې دا ژبه له سامي کورنۍ څخه ده؛ مګر دا خلط او ګډون عارضي دی او د اسلام له مقدس دین سره د عربو تسلط راوړی دی. که نه وي تاسې به یې په نورو جلدو کې ووینئ چې د اسلام په ابتدا کې پر دې ژبې د عربي اثر لږ و

[1] د هنري افغاني مطالعات، ص ۵.

او کوروټ د هغې ژبې کلمات او لغات نه وو پرې راګډ شوي. د پښتو د اسلامي لومړۍ دورې ادبي آثارو او سندرو ته چې ګورو سوچه او لغړ پښتو دي.

یو بل علت هم ښايي چې دې خبرې ته وي او هغه دادی، چې عبري او یهودي توکم له پخوانو زمانو څخه د آمو پر غاړو او زمونږ د وطن په ښارو کې خپرو شوي و، مستر فرلانګ په (۱۸۹۷ع) کې لیکي چې: د سیر دریا یوه پاچا د یهودو ډېر اقوام له بیت المقدسه د خراسان خوا ته وشړل، دا یود په (۶۳۰ ق، م) په باختر او د هري رود پر خوا وهستېدل، دی وايي چې په تورات کې د (هارا) په نامه راغلي دي[1].

دا نظریه چې آریايي مدنیت له سامي ثقافت سره په ویدي زمانو کې هم ارتباط درلود، د پوهانو له خوا هم څه ناڅه ځرګنده شوې ده: مثلاً دوکتور بریډل کیته Dr. Berriedale Keith د ایډلرګ د یونیورستۍ د سنسکریت پروفیسور هسې لیکي: ((لږ لږ اشارات موجود دي چې ویدي خلکو له سامي بابلیانو Babylon Semitic سره هم اړیکې او روابط درلودل، د ریګویدا په عبارت کې چې بینکناټا Benkanata راغلی دی او هندي Bikande یې ریښه ده، د ځینو بابلي الفاظو سره ورته دی، هم د بریبو Bribu نوم چې د هند په اصطلاح مشهور ښندونکی دی مستر ویبر Weber له بابلي سره نښلولی دی[2].

دغسې هم د منا Mana کلمه په ریګویدا کې راغلې او هر ځای د "طلايي" صفت هم ورسره دی، په ټینګه د یوناني

[1] د فرلانګ ساینس آف ریلیجن، ص ۳۹.
[2] د ویبر هندي پوهنې، ج ۱۷، ص ۱۹۸.

Mina سره نښلي، چې یونانیانو هم له فینکیانو Phoenicians څخه اخیستې ده[1] دغسې هم پرسو Parecu چې د تېښې او تبر په معنا ده، سامي اصله ګڼل شوې ده؛ خو دا تول یقیني نه دي، اما سره ددغه هم سرې ویلای شي، چې سامي لوی مدنیت د آریایي خلکو سره نژدې اړیکې درلودل، که څه هم په ریګویدا کې ظاهراً نا آریایي Non- Aryan عناصر نه ښکاري؛ خو بیا هم ځینې کوچنۍ ډلې شته، چې د دوی د مدنیت اوضاع له سامي مدنیت سره نژدې کېږي[2].

دغسې هم په وروسته وختو کې نکیشترا Nakshatras یعنې قمري بروج او منازل په ټینګه له سامي مدنیت څخه اخیستل شوي دي؛ ځکه چې په ریګویدا کې هېڅ ذکر نشته؛ فقط په وروستنیو برخو کې ددغو یادونه شوې ده؛ نو له دغو اشاراتو څخه سړی د سامي او آریایي مدنیت روابط په پخوانو زمانو کې منلای شي[3].

عربو مؤرخینو هم له خورا پخوانۍ زمانې څخه د بني اسرایلو خروج د خراسان پر خواوو ذکر کړی او دا یې راوړي دي، چې د یهودو ځینې ډلې پر دې خواوو آبادې وې[4]. که موږ د جغرافیا پخواني کتب پلټو هم داسې ښکاري چې د اسلام په لومړۍ دوره کې په بلخ او هرات او نورو ښارو کې ځینې یهود اوسېدل، مثلاً حدود العالم د (۳۷۲هـ) تالیف د

---

[1] د زیمر Zimmer کتاب Altindischleben ص، ۵_۵۱ او_ ویبر هندي پوهنې، ج ۱۷ ص ۲۰۲.

[2] د اولډنبرګ د ویدا مذهب، ص ۱۹۴، بلو مفید د ویدا مذهب، ص ۱۳۳.

[3] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۸۸.

[4] معجم البلدان، ص ۳۱۹، ابوالفداد، ج ۱، ص ۷۱.

ګوزګانان مرکز او پایتخت (یهودان) بولي او وایي چې په ګوزګانان (اوسني جوزجان) کې عربو ځینې ډلې هم اوسېدلې، چې پوونده وو او د خراسان تر نورو عربو دوی سره پاشلي پراته وو[1].

له دغو تاریخي دلایلو څخه دا ویلای شو چې د امو په جنوبي ورشوګانو او د ګوزګانان او خراسان په حدودو کې د اسلام تر وختو پورې لا هم یهود او عرب یعنې سامي خلك موجود وو، دا خو طبیعي خبره ده، چې د دوو قومو ګډون او نژدېوالی د دوی پر ژبو او اخلاقو یو له بله اثر سره کوي؛ نو ښایي چې هم ددغه اثر نتیجه وي، چې په پښتو ځینې عبري یا عربي لغات ګډ شوي وي او له دغو کیفیته څخه ځینې خلك په دې فکر کې لوېدلي وي، چې پښتو هم عبري یا عربي ته ورته یعنې سامي ژبه ده.



مګر وروسته چې د اروپا محقق پوهان راغلل، دا ژبه او ددې ژبې قواعد او اصول یې په علمي معیار وکتل؛ نو دوی په ښکاره د پښتو د سامي توب نظریه افسانه وګڼله او د پښتو تعلق یې له بني اسرایلو سره خورا لېرې وباله[2] او موږ دا خبره په تېرو مخو کې د پوهانو د اقوالو په ترڅ کې تاسې ته په ښه توګه څرګنده کړه.

د اوسني تاریخ اساس پر مشاهداتو او څرګندو دلایلو ایښود کېږي او سړی نه شي کولای چې په تشو اقوالو په تاریخي پلټنو کې د ځان ویسا وکړي، البته که روایات او عنعنات د مشاهداتو سره مرستې شي؛ نو هغه تاریخي خبره

[1] حدود العالم، ص ۶۰_۶۱.

[2] ګزیتر افغانستان، ص ۲۳ د ۱۹۰۹ع طبع.

به خورا ټینګه وي. په اوسنیو علمي اساسونو کې چې د تاریخ لپاره خورا اهمیت لري، د ژبو مقایسه او پرتله کول دي. د کومو قومو ژبې چې سره ورته وي، سړی حکم کولای شي چې دوی هم سره خپل او سره نژدې دي.

لکه چې تاسې دمخه ولوستل، پښتو د نورو آریایي ژبو او زند او سنسکریت ته ورته ده، له آریایي ژبو سره عنصري او اساسي ګډون او اشتراك لري. سامي ژبو ته نه د قواعدو، نه د لغاتو او محاورو له خوا ورته ده؛ نوځکه پوهانو د پښتو د سامي توب نظریه نه ده منلې.

محمد عبدالسلام خان له اوسنیو لیکوالو څخه دی چې د پښتو د سامي توب د فکر ملګری ښکاري، ده په خپله یوه کتاب کې ځینې کلمات سره ټول کړي دي[1] چې له عبراني سره یې ورته ګڼي؛ مګر که موږ په غور او ځیر وګورو کټ مټ هغه کلمات په اوستا او سنسکریت کې هم شته؛ نو که موږ دا خبره ومنو چې د عبري ژبې ځینې کلمات له آریایي پخوانو ژبو سره ورته دي، باید چې آریایي ژبې هم له سامي کورنۍ څخه وګڼو، حال دا چې دا خبره د علم او تحقیق له مقیاسه ډېره لېرې ده. د مثال په ډول دا کلمات دی د دلیل په توګه راوړي:

غر، غور:

په پښتو (کوه) ته وایي، په عبراني ژبه (ګور) غر او جمع یې (ګورم) دی. دی وایي چې غور هم عبري نوم دی. ابوالفداد په لومړي ټوك ص ۷۵ او ابن بطوطه سیاح د خپلې سفرنامې په

(۱)؛

لومړي جلد کې دا نوم د شام لپاره ذکر کړی دی[1]. مګر اوسني اروپايي محققین وايي چې: دا دواړې کلمې پخوانۍ آريايي دي، د اوستا په هوم يشت برخه کې (ګيري) د غره په معنا راغلی[2] او هم په خورده اوستا کې کټ مټ په دغه معنا و[3]. په سنسکريت کې هم ګير او ګيري Giri د غره معنا لري[4].

د غره کلمه په پښتو نومو کې خورا ډېر اثر لري؛ غلجي (غلزي) هم غرزي و، غور؛ غرچه، غرج، غلج، خلج، ټول له دغې ريښې څخه دي، چې په منځوی اسيا کې د آريايي قبيلو او ځايو نومونه دي؛ لکه چې روسي معروف مستشرق بارټولد دې خبرې ته تفصيل ورکوي[5]. بل مستشرق توماسچك Tomaschek وايي: چې ګر Gar په پخوانۍ باختري ژبه د غره په معنا و او غرچه هم کوهستاني او غرني ته وايي[6]. دا خبره د عربو جغرافيا ليکونکو هم ذکر کړې ده: ياقوت حموي د البشاري په حواله ليکي: چې د غرجستان (اوسنی شبرغان، تالقان، دولت آباد، ترمرو او مرغاب پورې) نوم له غرج څخه جوړ شوی دی، چې د غره معنا لري[7]. منهاج سراج جوزجانی چې زموږ د وطن معروف مؤرخ دی هم دا نوم (غرستان)

[1] نسب نامه افاغنه، ص ۷۰.
[2] فرهنګ اوستا، ص ۷۲۲؛ اوستا لومړی ټوک، لسم يسنا.
[3] خورده اوستا د بمبي طبع، ص ۴۹۷.
[4] هندي او انګليسي قاموس، ص ۶۱۱ د ۱۸۰۷ع طبع.
[5] د بارټولد تاريخي جغرافيا، ص ۸۸.
[6] د پامير ژبې.
[7] معجم البلدان ج ۶، ص ۲۷۷.

لیکي[1].

ښه اوس نو سړی ویلای شي چې غر، غرچه، غلجي ټول آریایي دي. که په عبري ژبه کې (ګور) وي، وي دې، هر شی خپل نژدې اصل ته راجع کېږي، نه لېرې ته.

بل ځای دی لیکي چې: د پښتو نوم له عبري پشت او پاشت څخه جوړ شوی دی، چې متفرق کول او پاشل معنا لري[2]، حال دا چې پکهت په دغه نامه او هم دلې په دغو مځکو کې ریګویدا او یوناني موږخینو ټولو ذکر کړی دی؛ نو سړی نه شي کولای چې دغه خپل او نژدې نوم پرېږدي او له سامي مځکو څخه پاشت راواخلي او پښتو ځنې جوړه کړي.

دی بیا وایي چې: شلح پتیرې ډوډۍ ته وایي او عبري کلمه ده. په پښتو (وېشله) ځنې جوړه شوې ده[3]. حال دا چې اوسني علم د فیلالوژۍ پر اصولو کلماتو د اوښتلو او تحول ټول اصول ضبط کړي دي؛ خو دا چې له (شلح) څخه (وېشله) جوړه شي، هېڅ فیلالوژي هسې قاعده نه ده راوړې؛ بلکې دا اصلاً (وېشلې) ده؛ په قندهار کې تر اوسه هم دغسې وایي، له پښتو مصدر وېشل (تقسیم کردن ـ حصه ـ حصه کردن) څخه دا نوم جوړ شوی دی. دا ډوډۍ د دفعي احتیاج لپاره ژر ژر پخېږي او وېشله کېږي. یو خو هغه ډوډۍ وي، چې اوړه واغږي؛ یو ساعت دوه ساعته یې کښېږدي، بیا یې نو پخوي؛ دا ډېر وخت غواړي. کله چې ډوډۍ ته دستي ضرورت وي؛ نو اوړه خیشته کړي، تبخی توده کړي، ژر یې پرې واچوي چې ژر پخه

---

[1] طبقات ناصري، ج ۲ ص، ۲۱۶.

[2] نسب نامه، ص ۷۰.

[3] نسب نامه، ص ۷۰.

شي او وړو خلکو په منځ کې ووېشله شي. دې ته نو وېشلې وایي. دا کلمه هم په خپله پښتو او د پښتو پر قواعدو برابره له (وېشل) مصدر څخه راوتلې ده، د عبراني شلح څخه ډېره لېرې ده.

دا یو څو کلمې دلته د مثال په ډول ذکر شوې او سړی دا څنې فهمولای شي، چې د پښتو لغاتو او کلماتو نښلول، په سامي ژبو پورې کوم علمي اساس نه لري او فقط دا فکر د بني اسرایلو او سامي کهولو له نژدې هستوګنې او ګاونډیتوب څخه پښتو ته پیدا شوی دی.

## یوه ضروري یادونه:

دلته باید دا خبره هم په لنډ ډول ذکر شي، چې له پخوانو زمانو څخه د هند له خوا د اقوامو روابط له سامي اقوامو سره جاري وو، د سند په اوسنۍ علاقه کې د موهنجودیرو کشفیات دا ښیي، چې شپږ زره کاله دمخه یو مشترك مدنیت ددې ځایه تر بابل او اثوره موجود و. وروسته چې آریایي اقوام پرهند مسلط شول؛ نو د دوی تجارتي او د تګ راتګ روابط هم طبیعي دي، په دې تعامل او ارتباط کې ضرور ژبې هم یو پر بل باندې اثر کوي، لغات او کلمات یې هم یو له بله سره اخیستل کېږي او سره ګډېږي، مثلاً موږ ډېر سوچه او لغړ آریایي د سنسکریت لغات وینو، چې په عربي ژبه کې هم کټ مټ شته او دا لېرې نه ده چې دغه لغات په تجارتي او اجتماعي تعامل کې له هنده عربو ته تللي وي یا ځینې لغات له عربي څخه هند ته راغلي وي. د مثال په توګه دا پت Apat پښتو کلمه وګورئ! عربي آفت جمع آفات مستعمله ژوندی کلمه ده، چې په سنسکریت کې هم عیناً اپت Apat یا اپتي

Apati د فاجعې، بدبختۍ، پرېشانۍ او خفت او رسواتوب په معنی ده[1].

په پښتو کې هم دا کلمه په دغو معناوو کښې مټ ژوندۍ ده؛ لکه په دې لنډیو کې:

لکه شین کنبت زلیو زمنول کړم
رابانـدې راغله له اسمانه اپتونه

د ویـر اپت رابانـدې راغـی
په بېلتانه کې د زړه وینې تویومه

څکه چې سنسکریت ژبه پښتو ته خورا نژدې ده؛ نو دلته موږ دا ویلای شو چې اپت هم آریایي کلمه ده، پښتو او سنسکریت له عربي څخه نه ده اخیستې. دا یوه کلمه ما د مثال په توګه راوړه که نه وي، داسې کلمات ډېر دي او تر اوسه هم په پښتو کې مستعمل دي.

نوکه داسې کلمات ومومو چې اوس هم په پښتو کې وي، هم په عربي کې او په نورو آریایي ژبو، سنسکریت او زند کې هم وي، دلته نو موږ په ټینګه ویلای شو، چې هغه کلمې آریایي دي او له سامي ژبو څخه نه دي راغلې؛ بلکې ښایي چې له آریایي ژبو څخه سامي ژبو ته نقل شوي وي او دا خبره دلیل هم نه ګرځي، دې ته چې موږ دې پښتو له سامي کهوله وبولو.

## پښتو ولې هندي یا ایراني ګڼل شوې ده؟

تاسې دمخه ولوستل چې ځینې پوهان دې ته تللي دي، چې پښتو د آریایي ژبو له هندي کهوله یا د ایراني کورنۍ څخه

[1] هندي او انګلیسي قاموس: فرهنګ نظام، ج ۱، ص ۹۳.

ده، ددې رايې علت هغه دی؛ لکه د سامي توب طرفدارانو چې ويلي دي، ليدلي يې دي چې د پښتو ډېر ګرامي خاصيتونه او لغات د هندي او ايراني سره ورته دي؛ نو ځينو ايراني بللې او نورو بيا هندي ګڼلې ده؛ مګر مورږ دلته د خپلو تېرو ليکنو په رڼا کې په ټينګه وايو:

لکه ډېرو پوهانو چې دا خبره منلې ده، پښتو نه هندي ده او نه ايراني؛ بلکې له اصلي آريايي ژبې څخه مستقلاً او مستقيمه زېږېدلې ده او لکه د اروپا اوسني پوهان چې وايي د هندي او ايراني ژبو د اتصال حلقه هم ده.

د کتاب په راتلونکيو برخو کې چې پښتو د ويدا او اوستا سره پرتله شي، دا خبره به په ښه ډول څرګنده شي.





# دریمه برخه

# پښتو او د ویدا ژبه (سنسکریت)



د ویـدا ژبـه، سنسـکریت، ویـدا او د سنسـکریت نـور مشـهور کتـب، د ویـدي ژبـې او سنسـکریت ژونـدي کلمـات په پښتـو کـې، د مقایسـې اصـول، ویـدا ، ریـګ او ریشـې، سـمهیتا ، سـروتي، سـمرتي، سـیند ، سـوما ، چهنـد ، اشـلوك، د سنسـکریت نـوم، دسـیو، خلـور ډلـې، بهمـن، کشـتري، ویسـیا ، شـودر ، ورنـه، مـن، سـتهان، نمـزدك، مـزدا ، ویـاکرن، منـو، دتالـه مـن، پـیس، کـر، اجتمـاعي تشـکیلات، پتـي، کـولا، ګرامـه، ویسـه، پـور، سـمیتي، نـاچ، سـامانه، ارباب انواع، ډیوس، پربتهي وي او نور...

# پښتو او د ويدا ژبه

## يا پښتو او سنسکريت



**لومړی خبرې:**

تاسې ته دمخه د ژبو د نوي او علمي وېش پر اساس دا خبره ښکاره شوه، چې پښتو او سنسکريت نږدې نښتون او روابط لري؛ بلکې د اوستا او سنسکريت تر منځ دغه ژبه د اتصال کړۍ هم ده؛ له هغه وخته چې د دنيا ژبې د مقايسوي فيلالوژي Comparative Philology پر علمي اساس تر پلټنې او تحقيق لاندې راغلې دي؛ نو په دغه خوا کې خورا نوي او ښه معلومات هم د بشر په لاس کښېوتلي دي. آريايي ژبې که په اروپا کې دي، که په ايشيا کې، که په شرق کې دي که په غرب کې، پر دغه علمي اساس هسې سره نښتې او نږدې ثابتې شوې دي، چې پوهانو ټولې له يوې ريښې او يوې آرې څخه بللې دي[1].

[1] د لاکمنيا کتاب، په ويدا کې شمالي هېوادونه ۳۱، ص ۱_۳.

د پښتو روابط هم له سنسکریت سره او هم له اوستا سره ددغې علمي پلټنې پر اساس ښه څرګندېږي او زه د کتاب په دغو برخو کې کوشش کوم، چې په پرتله ییز (مقایسوي) ډول مفصلاً د پښتو ژبې قواعد، ګرامر، لغات او اصوات له سنسکریت سره مقابله کړم؛ تر دې څېړنې وروسته به تاسې ته دا زیاده شي، چې په رښتیا هم پښتو د سنسکریت سره د خورتوب روابط لري او دا دوې آریایي ژبې سره خوندې دي.

ددې مقصد لپاره چې تاسې د پښتو او سنسکریت مقایسوي اوضاع ښه وپېژنئ او دا دواړې ژبې چې د تاریخ او بنسټ له پلوه سره نښتې دي، په ښه ډول مطالعه کړای شئ؛ نو بویه چې تر هر څه دمخه تاسې یو وار په خپله سنسکریت ژبه هم ښه وپېژنئ او ددغې ژبې تاریخ او پخواني ادبي آثار او کتب ښه درته معلوم وي، دادی چې په لومړی زه دلته په دې خصوص کې څه معلومات درکوم، وروسته نو اصلي مقصد ته ځم.

## د ویدا ژبه:

د آریایي اصلي ژبې تفصیلات مو څه نه څه دمخه لوستلي دي، هلته مو وویل چې له (۲۵۰۰ ق، م) تر (۱۵۰۰ ق، م) پورې دغه ژبه د امو پر غاړو موجوده وه؛ وروسته له دغې ژبې څخه څېنې څانګې بېلې شوې دي، چې دمخه مو د هندي او ایراني څانګو په نامه در وښودلې او د ویدا د کتاب پخوانۍ برخې چې تر اوسه پاتې دي، ددغې اصلي آریایي ژبې تحولات او اوښتنې موږ ته راښیي.

په حقیقت کې د ویدا کتاب هم اوس بشپړ او ټول د بشر په

لاس کې نشته؛ ځکه ځینې پخوانۍ برخې یې ورکې او له لاسه وتلې دي. اکثر پوهان چې په دغه کتاب کې یې د ژبې او د لساني تحولاتو له پلوه کتنې کړې دي، دوی دا عقیده لري، چې د ویدا د کتاب ډېرې سندرې ورکې دي او دغه اوسنۍ سندرې چې زموږ په لاس کې دي، هم د یوه وخت نه دي. دا سندرې د ژبې له پلوه ډېر فرق سره لري، ځینې برخې یې زړې او پخوانۍ دي او ځینې یې هم نوې او زلمۍ دي. ددغه تاریخي مقصد د ځرګندونې لپاره باید لږ څه شرح او تفصیل هم ولیکو:

## د ویدا بخدي سندرې یا زړه او ورکه برخه:

ویدا د آریایي اقوامو زړې سندرې او اشعار دي، چې څلور برخې لري. دغو څلورو برخو ته یې معلومې سندرې وایي؛ مګر هغه وخت چې آریایان د هندوکش په شمال کې اوسېدل او کبنته لانه وو راښوه شوي، دوی ځینې نورې سندرې هم درلودې، چې تر دغو معلومو سندرو دمخه او پخوانۍ وې. د معلومو سندرو خورا زړه برخه ریګویدا ده، چې پوهانو د ریګویدا له مطالعې څخه دا خبره ځرګنده کړې ده، چې دا سندرې په یوه وخت کې نه دي ویل شوې؛ بلکې ارتهر مکډونل وایي چې: ((د ژبې، تخیل او سبك له پلوه دغه سندرې باید په څو سوه کاله کې ویل شوې وي))[1].

دوسن مارتن هم لیکي چې: ((ریګویدا زاړه او نوي سرودونه لري، چې زړې سندرې یې تر نورو (۴_۵) پېړۍ

---

[1] د سنسکریت د ادباتو تاریخ، ص ۴۵.

دمخه دي))[1].

لـه دې څخـه چې پـه خپلـه د ریګویـدا معلـومې سـندرې هـم د یـوه وخـت او یـوې زمـانې نـه دي، معلومېږي چـې د ویـدا ژبـې پـه هـره زمانـه کـې تحـولات لیـدلي دي او د هـرې زمـانې ژبـې ځانتـه بېـل شـکل او بېلـه بڼـه مونـدلې ده او تـر ریګویـدا دمخـه نـورې سندرې هم پـه آریایـانو کـې وې. پـه خپلـه ریګویـدا هـم ډېـر د هغـو پخوانـو ورکـو سـندرو او پخوانـو شـاعرانو یادونـه کـوي، پـه دې بـاب کـې ډوټ Dutt مـوّرخ پـه واضـح ډول هسـې لیکـي: ((د ریګویـدا پـه کتـاب کـې چـې کـوم اختلافـات شـته، دا ټـول د هغـو ورکـو سـندرو یادګـار ګڼـل کېږي او دا تغیـرات چـې پـه ویـدي ژبـه کـې ښکـاري، دا ربښـي چـې تـر دغـو سـندرو دمخـه هـم نـورې سـندرې وې، چـې هغـه ورکـې دي. د ریګویـدا مـتن پـه خپلـه ((پخـواني پوهـان)) یـادوي او هغـه سـندرې ذکـر کـوي چـې پخـوا ویل شوې وې))[2].

لـه دغـو ټولـو څخـه ښکـاري چـې آریایـانو د هنـدوکش پـه شـمال او بخـدي کـې ځیـنې سـندرې درلـودې چـې اوس ورکـې دي؛ دا سندرې کټ مټ؛ لکـه د پښتـو ادبیـات شـفاهي وې، یعنـې لکـه د پښتـو بـدلې د خلکـو پـه یـاد وې او یـوه لـه بـل څخـه زده کـولې. پـه دې ډول پښـت پـر پښـت نـورو تـه نقـل کېـدې او دغـه سـندرې ((د آریایـانو ورکـې بـدلې)) بـولي. وروسـته چـې آریـایي اقـوام د هنـدوکش جنـوبي ورشـوګانو تـه راشـېوه شـول؛ نـو دوی د سـپین غـره، ارغنـداو، کونـړ او سـوات پـه غـرو او درو کـې ځیـنې سـندرې درلـودې او بیـا چـې تـر آباسـین (انـډوس) پـورې وتلـه، د پنجـاب پـه

---

[1] د هند د شمال غرب جغرافیا، ص ۹.

[2] د ډوټ کتاب The Aryanisation of India، ص ۵۵.

ورشوګانو کې یې دغه بدلې بشپړې کړې، چې د ویدا کتاب هم دغه بدلې دي او اوس یې سمهیتا Samhita یعنې مجموعه بولي او پر څلورو برخو وېشل کېږي.[1]

مقصد دادی چې: تر ریګویدا دمخه هم زموږ په هېواد کې آریایي بدلې وې، چې د هغو ژبه به هم غالباً هغه آریایي اصله او پخوانۍ ژبه وه؛ مګر دې ژبې تحول وموند او ویدي ژبه ځنې جوړه شوه، چې د ویدا کتاب څلور برخې په دغه ژبه دي؛ ځکه چې په ویدا کې زموږ د وطن د غرو او درو نومونه راځي؛ نو دا ښکاري چې د پخوانو او ورکو بدلو ژبه هم دلې ویل کېده او د معلومو سندرو ژبه یعنې (ویدي ژبه) هم دلې زموږ په هېواد کې د هندوکش جنوب ته پیدا شوې ده.



# د معلومو سندرو ژبه یا ویدي ژبه

د ویدي ژبې ادبي آثار اوس شته او د پوهانو مفصلې پلټنې پکې شوې دي. موسیو وکرناګل Wacker nagle وایي چې: آریایي ستانو او روحانیونو یوه ژبه ویله چې د صوت له پلوه له ویدي ژبې سره یوه وه، فقط د شاعرانه اصطلاحاتو په نه درلودلو کې یې فرق ورسره درلود. دغه معلومې بدلې چې اوس زموږ په لاس کې دي، په اوښتلي شکل را رسېدلې دي، که نه وي ویدي ژبې ځانته پخوانۍ صرف او نحوه درلوده او پخواني اشکال پکې وو، دغه معلومې بدلې چې زموږ څخه شته، په زمانو زمانو او پېړیو یې له زاړه حالت تغییر کړی دی. له دې جهته د (BH) او (DH) حروف یوازې بې H ګڼل شوي

[1] په خپله د ویدا او سمهیتا کلمو په خصوص کې به وروسته مفصلاً بحث وکړم.

او د (ر، ل) پر ځای (ل، L) راغلي دي[1]. په دې ژبه کې چې کوم تغييرات او تحولات پېښ شوي دي، هغه ټول د ريګويدا له لسو ټوکو څخه معلومېږي. ددغه کتاب د لومړيو سندرو ژبه د ويدي ژبې لومړنی شکل دی؛ وروسته وروسته چې د کتاب لسمې برخې ته نژدې کېږو ژبه يې تغيير کوي.

او ښکاره ښکاره اختلافات پکې ليدل کېږي حتی د ريګويدا ضمايم او شروح هم په داسې ژبه دي، چې د ويدي ژبې پېړۍ په پېړۍ تغييرات راښيي او لکه پوهان چې وايي د ويدا د لومړنيو برخو او وروستنيو تر منځ بايد لږ تر لږه پينځه پېړۍ تېرې وي[2].

د ريګويدا د ځينو برخو ژبه د اوستا له زړې برخې (ګاتا) سره داسې ورته ده، چې تر ډېره وخته پورې د اروپا د پوهانو دا خيال و چې د اوستا ژبه فقط د ويدي ژبې محرفه ده او د سنسکريت اوښتلی رنګ دی؛ تر ډېره وخته ويليام جونز د اکسفورډ محقق عالم دغې خبرې ته ټينګ و، خو چې پروفيسور رسك وروسته د اوستا د ژبې استقلال او وجود ثابت کړ[3].

له دې څخه هم دا خبره په ښه ډول څرګندېږي، چې د ويدي ژبې پيدايښت په هغه ځای کې و، چې اوستا پکې پيدا شوې و او هغه نو زموږ هېواد او د آريا مرکز دی، ويدي ژبه هم تر ډېره پر خپل حال پاتې نه شوه. آريايي اقوام تر اندوس (اباسين) تېر شول؛ د پنجاب او هند په شنو او زرغونو

---

[1] تاريخ افغانستان، ج ۱، ص ۱۶۲.
[2] هندو اروپا ص ۱۹۲.
[3] فرهنګ نظام، ج ۲، ص ۳.

ورشوګانو کې سره خپاره شول. د دوی د حیات د نوي چاپېر اغېزې هم طبیعي وې؛ نو ځکه د دوی ژبه هم بل راز شوه او له ویدي ژبې څخه یوه بله مهذبه او سمه کړې ژبه پیدا شوه چې سنسکریت یې بولي.

## سنسکریت:

د سنسکریت د کلمې معنا هم مهذبه او بشپړه او سمه کړې ده[1]، د خپله نامه سره سمه دغه ژبه د ویدي ژبې له تهذیب او سمولو څخه پیدا شوه، پوهان په دې خبره کې اختلاف لري، چې ایا کوم وخت دا ژبه ویل کېده که نه؟ خو دا راښکاره ده چې سنسکریت یوه پخوانۍ علمي او ارته ژبه ده، په سوو کتابونه له پخوانو زمانو څخه په دې ژبه کې پاتې دي؛ ځکه چېددې ژبې ادبي او علمي آثار ډېر دي او د زمانې له یرغله هم ساتلي پاتې شوي دي. لغات او کلمات او قواعد یې هم ټول شوي او لیکل شوي دي؛ نو د آریایي ژبو د مقایسوي فیلالوژۍ لپاره ډېر قیمت لري، کولای شو، چې د یوې ژبې اساس د سنسکریت له مقایسې څخه معلوم کړو.

د سنسکریت نوم او ددې ژبې تهذیب او سمول نسبتاً نوی کار دی؛ پانیني Panini دا اټك د حدودو یو معروف عالم او د ویدي ژبې پوهاند و، دې سړي هغه ویدي ژبه سره سمه او مهذبه کړه، صرف او نحوه یې ترتیب کړه، نوم یې سنسکریت یعنې سمه کړې ژبه پرې کښېښو، وروسته دا نوم مشهور شو او دغې ژبې ته یې سنسکریت Sanskrit یعنې بشپړه او سمه

[1] دا کلمه هم پښتو ته نژدې ده؛ وروسته به یې شرح او تطبیق راشي.

کړي ژبه The Perfected [1] وویله.

د پاڼیني آثار تر اوسه پوري هم شته؛ پوهانو ترجمعه کړي دي. دده د ژوندانه عصر تر (۳۰۰ ق، م) دمخه نه ځي. دا د کیت Keith قول دی[2]. میکس میولر مشهور مستشرق وایي چې: د (۳۵۰ ق، م) په حدودو کې پاڼیني خپل آثار لیکلي دي[3].

د پاڼیني مشهور کتاب دده نحویات دي چې ټول په ویدي اړه لري او تاریخ یې هم هغه تر مسیح دمخه څلورمه پېړۍ ده[4]. د کتاب هر وخت ډېر مشهور و او اته برخې یې درلودې، چې هره برخه یې ادهیایا Adhyaya وینا Lecture بلله او ټول کتاب اشټ ادهیایا Asht Adhyaya یعنې اته وینا وې نومېده. دا کتاب په خپل عصر کې ډېر مهم دی او په نورو ژبو او قومو کې ساری نه لري: بلکې سړی یې د ژبې په علمي تحلیل او تجزیه کې لومړی کتاب ګڼلای شي، داسې ښکاري چې تر پاڼیني دمخه هم بعضو پوهانو د سنسکریت ګرامر کښلی و؛ ځکه دی په خپله کتاب کې تقریباً (۶۴) تنه خپل اسلاف ښیي، چې ډېر تر ده دمخه یې په دې کار ګوتې پورې کړې وې، مثلاً دی د ساکاټاینه Sakatayna او یاسکه Yaska نومونه اخلي، چې دا یاسکه د پاڼیني سلف او د نیروکته یعنې (صرف) مؤلف و او ده د سنسکریت په ګرامر کې دا اساس څرګند کړ، چې ټول نومونه (اسماء) له کړو

---

[1] بریتانیکا ج ۱۹، ص ۹۵۴.

[2] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۱۱۳.

[3] مقدمه تاریخ هند قدیم، ص ۱۰۰.

[4] ویدك انډیا، ص ۸۰، بریتانیکا، ج ۱۹، ص ۹۵۴.

(افعالو) څخه راوتلي دي.

تر پاڼیني وروسته نور پوهان هم دده د کتاب په شرح مشغول شول، مثلاً یو عالم کاتایانه Katayana نومېده، چې دده یاد داشتونه او تنقیدي شرح وارتیکه Vartika نومېږي، اوس هم دا کتاب شته بل مشهور شارح یې پاتینجلي Patinjali نومېږي چې په ۱۵۰ ق، م یې د پاڼیني لویه شرح لیکلې او مهابهاشیه Maha, Bhashya نومېږي او په دغه کې د کلاسیکي سنسکریت تاریخي او انتقادي پلټنې شته او د پاڼیني له (۴۰۰۰) قاعدو څخه یې (۱۷۱۳) قاعدې په انتقادي ډول شرح کړې دي، دی ګوناردیا Gonardiya بلل کېږي، یعنې د ګونارده Gonarda اوسېدونکي، چې دا ښار شل میله د اوده شمال غربي خوا ته واقع و.

سنسکریت د لغاتو کتابونه او قوامیس Lexicography هم لري او دغه کتب په نظم وو، لومړی مشهور کتاب امره سیمه Amarasimha نومي عالم په شپږمه میلادي پېړۍ کې د امره کوشه Amara- Kosa یعنې (نه نابودېدونکې خزانه) Imnortal- Treasury په نامه کښلی دی[1]، د سنسکریت کتب او علوم په اسلامي دوره کې هم مشهور وو، مثلاً ابو ریحان البیروني د (۴۲۰) هجري په شاوخوا کې د هند د نحویاتو په کتابو کې پانیریتي (پانیرت Panirit) لیکي، چې خپله مصنف پاڼیني ته منسوب دی[2]. په دې ډول د سنسکریت نوم د (۳۵۰ ق، م) په حدودو کې جوړ شوی او دا ژبه د زړې ویدي ژبې له سمولو او اصلاح کولو څخه پیدا

---

[1] بریتانیکا، ج ۱۹، ص ۹۷۰.

[2] کتاب الهند، ج ۱، ص ۱۷۸.

شوې ده او وروسته دا اصطلاح داسې عامه شوه، چې د ویدا ژبه او تر ویدا وروسته د نورو کتابو ژبې او په خپله دغه سمه کړې ژبه؛ دا ټولې د سنسکریت په نامه وبلل شوې او اوس چې هم دا نوم یاد شي دغه ټولې ژبې ځنې مقصد دي[1].

د سنسکریت خورا زړه کتیبه چې تر اوسه د بر لاس ته رسېدلې ده، په ۱۵۰م کال اړه لري؛ مګر په څلورمه عیسوي پېړۍ کې دا ژبه عامه شوه او په ټولو کتیبو او رسمي نوشتو کې استعمالېده او ډېرې نوشتې او ډېرلیکونه له دغه عصره پاتې دي او وروسته دا ژبه ډېره ادبي او علمي شوه؛ فلسفي، عشقي، طبي او نور ډول ډول کتب پکې ولیکل شول او ښې ښې ډرامې هم لري. د سنسکریت ادبي تاریخ پر درو برخو وېشل کېږي: لومړۍ برخه یې ویدي ده؛ دوهمه د کلاسیکي ادب دوره ده او دواړې د ځینو مهمو ممیزاتو او سبك له رویه سره بېلې دي. لومړۍ دوره له ۱۵۰۰ تر ۲۰۰۰ ق، م ده، او دوهمه دوره له (۵۰۰ ق، م) تر ۱۰۰۰م پورې رارسېږي، ویدي دوره عبارت له هغو سمهیتا (مجموعو) څخه ده؛ چې څلور ویده په کې شامل دي او نور ملحقات یې هم په دغه دوره اړه لري؛ مګر سترا Sutra شرح یې د ویدي ادب او کلاسیکي دورې د اتصال حلقه ده. وروسته په کلاسیکي دوره کې د حماسیاتو اشعار (Epics)، لکه مهابهارت او راماین شامل دي. پوران Puranas او روماني او قصصي کتب هم په دغه دوره کې شته. فلسفي، قانوني، طبي او تکنیکي کتب هم لري، چې له دغو څخه د منو Manu قوانین ډېر مشهور

---

[1] بودهست انډیا ص ۹۷.

دي[1].

سنسکریت فقط د علم ژبه وه او اکثر پوهان په دې فکر دي چې دا ژبه عموماً نه ویل کېده؛ ځکه چې د عمومي وینا ژبه باید ډېره اسانه او ساده وي؛ مګر سنسکریت هسې د علم په درنو اندېیو بار ده، چې عوام یې کوړتې، نه شي زده کولای او تاریخ هم دا نه ښکاره کوي، چې یو وخت دا ژبه د عوامو ژبه وه؛ په خپله د هند برهمنان وایي چې یو وخت دا ژبه د هند په شمالي خواوو کې ویل کېده؛ خو وروسته ددې ژبې نورې څانګې پراکریت Prakrit یعنې فرعي ژبې پرې غالبې شوې او دا فقط د علم لپاره مخصوصه شوه[2] او هم د پوهانو او دیني خلکو په منځ کې محصوره پاتې شوه او لکه چې پوهان وایي: ددې ژبې پوهانو د مقدس والي له جهته نه غوښتل چې عوام او هر څوک دا ژبه زده کړي، یا یې واوري؛ نو ځکه د کتابو او پاڼو په منځ کې ژوندۍ وه؛ خو ویل کېدله نه.



## ویدا او د سنسکریت نور مشهور ادبي او دیني کتب:

که څه هم زموږ پښتو ژبې څېړنه او مقایسه له دغو ابحاثو سره مستقماً اړه نه لري او ښایي چې ځینو ښاغلیو لوستونکو ته دغه شرح او تفصیل بې ګټې واېسي؛ مګر په دې کتاب کې به ښایي چې ډېر د ځینو سنسکریت کتابو نومونه راشي؛ نوښه داده، چې په لنډ ډول دغه کتب هم وپېژنو، وروسته به نو خپل اصلي مقصد ته چې د پښتو پرتله او مقایسه ده ولاړ شو، د ویدي ژبې د پیدا کېدو او بیا د سنسکریت لنډ تاریخ هم له

[1] بریتانیکا، ج ۱۹.
[2] فرهنګ نظام، ج ۲، ص ۸.

دغه جهته دلته وليکل شو، چې ښاغلو لوستونکو ته لږ څه ابتدايي معلومات وي:

اکثر پوهان دا عقيده لري چې د ويدا کلمه د (ود) له مصدره جوړه شوې او د پوهنې په معنا ده؛ وديا په عمومي ډول علم ته وايي[1] ماکس ميولر مشهور ويد پوهاند دغه عقيده لري او وروسته يې ګريفت او ماکډونل هم تاييد کوي، چې د ويد معنا پوهنه، علم، دانش دی او ښايي چې دغه کلمه لومړی کلمه وي، چې له آريايي ژبې څخه پاتې وي[2].

په لومړي سر کې ټولې آريايي بدلې او زړې سندرې پر دوه ډوله وېشل کېږي:

لومړی برخه يې سروتي Cruti يا شروتي بولي، چې معنا يې: ((اورېدلې شوې او الهامي)) دی[3] او دا ټول سرودونه د هغو خلکو په عقيده الهامي وو، چې ((مقدسې سندرې)) يې ګڼلې. دوهمه برخه يې سمرتي Smriti بولي. يعنې روايي او يو له بله نقل شوې، يا په ياد شوې سندرې، چې دوی به مقدس روايات او عنعنات ګڼل؛ مګر د الهام کيفيت يې نه درلود[4]. په لومړی برخه يعنې سروتي کې ټول ويدونه Vedas داخل دي او دوهمه برخه د ويدو شروح او ضميمې او تفاصيل دي چې ټول پر اصلي ويدو باندې بنا شوي دي. ويدونه څلور دي او دغو څلورو ته سمهيتا Samhita يعنې مجموعه هم

---

[1] د ويدو تعليم، ص ۱

[2] د ګريفت د ويد د ترجمې مقدسمه، ج ۱؛ د هند د ادبياتو تاريخ، ج ۱؛ د ماکډونل د سنسکريت د ادبياتو تاريخ؛ ددغې کلمې لغوي تحليل او تطبيق به وروسته بيان شي.

[3] ددغو کلماتو شرح به هم وروسته راشي.

[4] د ويدو تعليم، ص ۱، ويدك انډيا ص، ۷۷.

وايي، په دې تفصيل:

**۱_ ريګويدا** *Rig- Veda*: دا يو قسم منظومې بدلې او سندرې وې او ټولې (۱۰۲۸) سندرې کېږي[۱]، چې هره سندره بهجن بولي او دا ټولې سندرې پر لسو برخو منډلا **Mandala** شاملې دي، هره برخه يې يو منډلا (دايره) بولي. د ويد معنا مو دمخه زده کړه. ريګ له **Rich** څخه راوتلې کلمه ده، چې معنا يې تمجيد او ستاينه او ثنا ده. نو ريګ ويدا د ستانې او ثنا او صفت د علم معنی کوي، وايي چې آريايانو يوه ډله شعراء درلودل، چې دوی ته يې ريشي **Richi** ويل[۲] او دا سندرې هغو ته منسوبې دي. ځينې خلک ريګويدا پر اتو برخو **Ashtata** ويشي او هره برخه بيا پر اتو نورو ټوکو وېشي، چې هر ټوک يې ادهيا **Adhya** بولي. هره ادهيا دېرش فصله ده، چې ((درګا)) يې بولي او هر فصل پينځه ويناوې (فقرې) دي؛ د مضمون له پلوه ريګويدا ټول د ارباب انواعو ستاينې او مذهبي دعاوې دي.

د ريګويدا خورا زړه نسخه چې تر اوسه ميندل شوې ده، تر (۱۵۰۰ م) پخوانۍ نه ده؛ مګر زر کاله دمخه ددې کتاب حفظ او ساتنه ارياېانو کوله، هر لفظ او هره وينا يې بېله بېله شمېرله او يادوله يې. له پخوانو کتابو څخه ښکاري، چې ريګويدا ټول (۸۲۶، ۱۵۳) الفاظ او (۷۰۰، ۴۳۲) حروف درلودل، ټولې جملې يې په يوه حساب (۱۰۴۰۲) او په بل

---

[۱] وايي چې په دغو بدلو کې (۱۱) نوې بدلې چې **Valakhilyas** بلل کېږي، هم ګډې دي (بريتانيکا).

[۲] ددې کلمې شرح او تحليل به وروسته راشي.

حساب (۱۰۶۲۲) وي[۱].

علامه البیروني لیکي: بید (ویدا) یو ډول نظم دی چې خلك یې معجز او الهامي ګڼي او یو مشهور عالم بیاس پر ځلورو برخو وویشه، لومړۍ برخه یې (رګ بید) ده. د نظم یو مخصوص ډول دی، چې (ج Rij؛ رګ Rig) یې بولي بید یعنې د هغو شیانو پوهنه چې معلوم نه دي، په دې کتاب کې اوامر او نواهي، ترغیب او ترهیب، قرباني او د تسبیح چمونه ذکر شوي دي، لومړۍ پلار د بید لیکل منع وو؛ مګر وروسته دغه موجوده بید بیاس د پراشرزوی ترتیب کړ او موږ ته په دې نږدې زمانه کې یوه کشمیري عالم بسکر Buskar بیدو کښنې او ددغه کتاب یو تفسیر یې هم مرتب کړ[۲].

**۲_ساماویدا** *Sama - Veda*: چې د ماکډونل په قول له سامن یعنې آهنګ او نوا څخه یې نوم راوتلی او دا کتاب د ریګویدا له سندرو څخه جوړ شوی او عموماً هغه بدلې دي، چې د قربانۍ پر وختو باندې ویل کېدې او د ماکس میولر په قول د ریګویدا موید مضامین پکې دي، دا سندرې ټولې په لوړ ږغ ویل کېدې او شمېر یې (۱۵۴۹) دی، چې بېله (۷۸) سندرو نورې ټولې په ریګویدا څخه را اخیستل شوې دي[۳].

**۳_یجر ویدا** *Yajur- Veda*: درېیمه برخه ده، چې قرباني، دعاوې او مراسم پکې ذکر شوي دي. دي وید هم له ریګویدا څخه تقریباً نیمې سندرې را اخیستې دي، ماکډونل وایي چې دا نوم له یاجوس Yajus څخه جوړ شوی دی او معنا

---

[۱] ویدك انډیا، ص ۷۳؛ د ویدیو تعلیم، ص ۲_۳.

[۲] کتاب الهند، ص ۱۶۵، باب ۱۲.

[۳] د سنسکریت د ادبیاتو تاریخ، ویدك انډیا، ص ۷۱، د ویدو تعلیم، ص ۷.

یې قربانې ده، په دې کتاب کې ځینې منثورې جملې هم راغلې دي او دوې برخې لري. توریجر (کرشنا) Karishna چې، ته اتریا سمهیتایي بولي، یعنې د (ته اتریا) Taittriya ریشي مجموعه. بل سپین یجر (سکلا) چې (یاجن ولکیا) Yajanavalkya سمهیتا یې بولي یعنې د (یاجن ولکیا ریشي مجموعه)[1].

***تبصره:*** دغه درې ویدونه چې لوړ ذکر شول، ترایي ودیا Trayi- Vidya یعنې درې پوهنې او درې علمونه یې هم بولي.

***۴_ اتهروا ویدا، Atharva- Veda:*** یعنې د طلسم او جادو پوهنه، څلورم وید دی، چې د ماکډونل په قول تر ریګویدا وروسته پیدا شوی او اوسنی شکل یې هم وروستنی دی. منظومې بدلې لري، چې ریګویدا ته نږدې ورته دي، مضامین یې په طلسم او جادو او شیطان اړه لري، د بدو خلکو اوضاع بیانوي، د ریګویدا سره په سندرو کې تقریباً برابر دی او شپږمه برخه یې هغه بدلې دي چې ریګویدا څخه اخیستې شوې او بله شپږمه برخه یې هم نثر ده[2].

اتهرووا ویدا یې پر شل برخې ویشلی دی، چې هره برخه یې کانډا Kanda بولي او دغه ټول (۷۶۰) سندرې تقریباً شپږ زره سروده کېږي[3].

***سمرتي یا د ویدو ملحقات:*** په خپله د ویدو سندرې او سرودونه بېلې دي چې هغو ته منتریاګیت وایي او دغه برخې

---

[1] ویدك اندیا، ص ۷۱، د ویدو تعلیم، ص ۲.

[2] ویدك انډیا، ص ۷۲، د ویدو تعلیم، ص ۳.

[3] اتهروا ویدا د ګریفت ترجمه، ج ۱، ص ۵.

الهامي بلل شوي دي؛ مګر ځيني نور شروح او ملحقات هم لري، چې نثر دی او په دغو کې ځيني مذهبي هدايات ليکل شوي او ظاهراً تر په خپله ويدو وروسته دي، چې د ژوندانه چارې او ځيني فلسفي افکار هم په کې بيان شوي دي. دغو ملحقاتو ته برهمنا Brahmana وايي او دوې نورې برخې هم لري، چې آرانيا کا Aranyaka او اوپانيشاد Upanishad يې بولي، د لومړي معنا ده د ځنګله تفکرات او د دوهم معنا ده پټ الهامات. دغه ملحقات هم د ژبې، هم د مضمون له پلوه د ويدو په شرح او هم د آريايي اقوامو د فکر او فلسفې له پلوه ډېر اهميت لري[1].

دغو ټولو ملحقاتو ته چې په ويدو اړه لري، سمرتي وايي او دا هغه روايات دي چې تر ويدو وروسته پيدا شوي او د شرح او تفسير په ډول ليکل شوي دي. سمرتي چې د مضامينو له پلوه په غور وکتل شي، دغه لاندې مقصدونه پکې پيدا کېږي، چې اصطلاحاً يې ويدانګه Vednga بولي او دغه لاندې شپږ دي:

۱_ سکشا Siksha د صوتياتو او تلفظ او لهجې بحث Phontics چې کوچنۍ کوچنۍ څېړنې دي او معروف ګرامري عالم پانيني ته يې نسبت کېږي او د پانينيا سکشا Paniniya- Siksha په نامه يادېږي او د ويدو د صوتياتو او تلفظ لپاره ډېر اهميت لري.

۲_ چهندا: يعني د اشعارو عروض او معيار، چې پنګل Pingale نومي عالم د چهنداسترا Chhandah- Sutra په

[1] د ويدو تعليم، ص ۳؛ ويدك انډيا ۷۵؛ کېمبرج هيستري آف انډيا، ج ۱، ص ۱۱۴.

عنوان لیکلي او د عروضو Prosody ابحاث لري، په خپله د ویدا په (ساما ویدا) برخه کې هم د عروضو لړ شرح په دوو برخو کې شته.

۳ـ ویاکرن Vyakarana: یعني ګرامر او نحو، چې د پاڼیني مشهور ګرامر د ویدي ژبې اکثر قواعد بیانوي او له ګرامري تحقیقاتو ډک دی.

۴ـ نیروکته Nirukta: یعني صرف او د الفاظو علم او د لغاتو د ریښو پوهنه. په دغه علم کې یو کتاب یا سکانیروکته Yaskanirukta شته، چې د ویدي ژبې د لغاتو ریښې ښیي او درې برخې دي: (۱) مترادف کلمات؛ (۲) خالص او مخصوص وید کلمات؛ (۳) د ارباب انواعو نومونه.

۵ـ جوتشه Jyotisha: یعني هیئت او د اسمانو علم Astronomy.



۶ـ کلپه Kalpa: یعني رسوم او آیین او دودونه او جالونه Ceremonial په دغه خصوص کې ډېر ابحاث د سترا Sutra برخې لري او د قوانینو کتابونه هم ټول په دغه ډله کې دي. دغه شپږ مضمونه دي، چې د سمرتي یوه برخه ورته تاکل شوې او یو یو مضمون پکې لیکل شوی دی؛ نو که ټول د ویدا ملحقاتو ته وکتل شي، ددغو شپږو علومو بیان لري[1].

## د ویدي ادب زماني او خلاصه:

پوهان دغو ټولو آثارو ته چې دمخه ذکر کړل شول، ویدي ادب وایي اوپه‌دې لاندې ډول یې خلاصه کوي:

[1] ویدك انډیا ص ۷۷؛ بریتانیکا، ج ۹، ص ۹۵۸.

۱_ د چهند Chhandas زمانه: یعني د زاړه ریګویدا عصر، له ۱۲۰۰ ق، م تر ۱۰۰۰ ق، م؛

۲_ د منتر Mantras زمانه: یعني د نوي ریګویدا عصر له ۱۰۰۰ ق، م تر ۸۰۰ ق، م؛

۳_ د برهمنا Brahumanas زمانه: یعني د تفسیر او ملحقاتو عصر له ۸۰۰ ق، م تر ۶۰۰ ق، م؛

۴_ د سوترا Autras زمانه: یعني د کوچنیو مذهبي رسالو عصر له ۶۰۰ ق، م تر ۲۰۰ ق، م.

د ویدي ادب په دغه وېشنه کې ماکس میولر په ښه ډول ددغه ادب مختلفې دورې راښیي[۱].

مګر د کلو په تعیین کې یې اختلاف دی او لکه دمخه چې مو وښووله، د ویدي ادب عصر باید تر (۲۵۰۰ ق، م) پورې ورسېږي. اکثر پوهان، لکه ولسن، بارتهه، هاګ هم ددغې خبرې پر خوار دي او هاګ وایي چې: د ویدي ادب د خورا پخوانو سندرو عمر تر (۲۴۰۰ ق، م) پورې هم رسېږي[۲].

## نور کتب:

تر ویدو وروسته نور معروف کتب هم په سنسکریت کې شته، چې لاندې یې په لنډ ډول معرفي کوو:

(۱) مهابهارته Maha- Bharata د هند مشهوره رزمي کیسه ده، چې د کورو او باندو دوو آریایي کورنیو د جنګ احوال بیانوي، د پهلوانانو او بریالیو د دلاورۍ او ژوبلورۍ مناظر ښکاره کوي او دا کتاب (۲۱۵۰۰) بیتونه دي، وایي

---

[۱] ریګویدا، ج ۶ مقدمه.

[۲] د ویدو تعلیم ص ۱۰؛ ویدك انډیا (۷۹).

چې دا کتاب هم بیاس، نومې عالم ته منسوب دی او د هنټر په قول د (۱۲۰۰ ق، م) په حدودو کې کښل شوی او د یوه سړي تالیف هم نه دی[1].

(۲) رامایه: بله مشهوره کیسه رامایانه (Ramayana) ده، چې دا هم د سنسکریت له مشهورو ادبي کتابو څخه ګڼل کېږي؛ د هنټر په قول زر کاله تر مسیح دمخه دا کیسه واقع شوې ده او بالمیك نومې عالم ته دا کتاب منسوب دی؛ ټول (۲۴۰۰۰) شلوك او (۴۸۰۰۰) بیتونه دي[2].

علاوه پر دغه نور ډېر کتب هم شته، چې مشهور دي؛ لکه: پران شکفتلا، هتوپدیش او نور چې د لنډوني لپاره یې فقط نومونه یاد شول. اوس چې تاسې ته د ویدي ادب او سنسکریت د آثارو او کتابو لنډ لنډ معلومات وړاندې شول؛ نو څم اصلي مقصد ته چې د ویدي ژبې او سنسکریت پرتله او مقایسه ده له پښتو سره.

## د ویدي ژبې او سنسکریت لغات چې په پښتوکې اوس هم ژوندي او مستعمل دي

په دې کتاب کې زه د ویدي ژبې سره د پښتو پرتله فقط د لغاتو او کلماتو د نژدېوالي له پلوه کوم او دا ښکاره کوم چې د ریښې او بنسټ له مخې د دواړو ژبو کلمات ډېر سره ورته او نژدې دي او د ویدي ژبې هغه زاړه لغتونه تر اوسه هم په پښتو کې ژوندي او مستعمل دي، د ویدي ادبي آثار او کتب

[1] تمدن هند ص ۳۲۸؛ د قدیم هند د تاریخ مقدمه، ص ۱۲۸.

[2] تمدن هند ص ۳۳۲؛ د قدیم هند تاریخ مقدمه، ص ۱۲۸.

خوشبختانه پاتې دي او اوس موږ استفاده ځنې کولای شو؛ مګر د پښتو کوم لیك او زړه نخښه په لاس کې نه لرو؛ نو ځکه د ویدي ژبې د نژدې والي څخه د پښتو اصالت او قدامت معلوموو. دغه مقایسوي څېړنه د فیلالوژۍ او فقه اللغه تر اصولو لاندې ده؛ مګر وروسته چې پښتو او سنسکریت سره تطبیق شي. په دې ډول به له ویدي ژبې او سنسکریت سره د پښتو قرابت په ښه ډول څرګند شي.

## د پرتله کولو او مقایسې اصول:

د اصلي مقصد تر پیل دمخه باید لومړی د خپل کار اصول دروښیو، یعنې په دې ځان پوه کړو، چې زموږ پرتله او مقایسه پر کوم اصولو بنا ده.

عموماً د هرې ژبې د تشکیل لپاره دا څلور لاندېني مواد ضروري دي او که سړی وغواړي، چې د یوې ژبې آره او بنسټ ځانته معلوم کړي او یا یې له بلې ژبې سره مقابله او مقایسه وکړي؛ نو ښایي چې دغه لاندې مواد پسې وپلټي:

۱ـ ږغونه او اصوات: چې ژبه ځنې جوړه شوې ده Phonetics.

۲ـ حروف او توري: چې د هغو ږغو نمایندګي کوي او په لیك کې اشکال راښیي Letters.

۳ـ د حروفو اوښتنه او یو له بله تبدیل: چې د کلماتو تحول هم له دغو اصولو څخه زده کېږي اودا هم په اکثرو ژبو کې مثبت اساسونه لري Morphology.

۴ـ لغات او کلمات: چې څنګه جوړ شوي دي، جامد کلمات یې څنګه دي؟ مصادر او مشتقات یې څنګه دي؟

Vocabulary[۱].

پر دغو څلورو موادو برابر د ژبو پرتله او مقایسه کېږي او په دې کتاب کې زما د پلټنې او څېړنې آره دغه څلور خبرې دي، د ږغو او توریو او لغاتو او کلماتو شرح او تفصیل او پرتله به وروسته راوړم، دلته به لومړی د درېمې خبرې یعنې د حروفو د اوښتلو او یو له بله د تبدیل ځینې اساسي خبرې دروښیم، چې اوس دستي دغه مواد زموږ لپاره د ویدي ژبې په مقایسه کې په کار راځي:

## توري او د اوښتلو اصول يې:

ژبه عبارت له هغو ږغو او اوزو څخه ده، چې تر خولې راوځي، دا ږغونه راز رازدي او هر ږغ ځانته په خوله کې یو ځای لري، چې له هغو ځایه مخصوص ږغ راوځي، دغه ځای وتوځی (مخرج) بولي، ټول ږغونه چې له خولې څخه راوځي، له شونډو څخه نیولې، بیا د ستوني تر پایه یعنې سینې پورې د حروفو مخارج دي، ځینې توري په شونډو کې ویل کېږي؛ لکه (ب، م) ځینې توري د خولې له منځه راوځي؛ لکه (ج، ل) ځینې حروف حلقي دي؛ لکه (غ، خ) ځینې حروف په سینه کې ویل کېږي؛ لکه (هـ، ا).

د دنیا د ټولو ژبو ږغونه او اوازونه یعنې توري تر سلو پورې رسېږي او هره ژبه ځانته داسې ږغونه هم لري، چې په نورو ژبو کې نه وي، مثلاً د عربي ژبه نهه (۹) مخصوص حروف لري (ث، ح، ذ، ض، ط، ظ، ف، ق، ع) چې په پښتو

---

[۱] فرهنګ نظام، ج ۳.

او پاړسو کې نشته او د پښتو آریایي ژبو کې نه راځي، عموماً د ټولو ژبو توري چې له شونډو څخه دستوني تر پایه ادا کېږي، په لاندې ډول څو برخې لري:

۱_ شونډیز توري (حروف لبي یا شفوي) Labials: (ضمه U_ او O_ ب B_ بهـ BH_ پ P_ ف F_ م M_ و W_).

۲_ تالوییز توري (حروف کامي) Palatals: (ټ T_ ج J_ چ CH_ د D_ ډ D_ ر R_ ز Z_ ژ ZH_ ږ Z_ س S_ ش SH_ ښ X_ ل L_ ن N_ ڼ Ṇ_ ي Y_).

۳_ ستونیز توري (حلقي) Gutturals: (خ KH_ ع A_ غ GH_ ګ G_ ك K_ که KH_).

۴_ ټټریز توري (حروف سینه یا جوفي) زور (فتحه) زېر (کسره) آ A_ ء H_ ددغو څلورو ډلو حروفو د ابدال او اوښتلو قانون دادی:



۱_ لومړی پلا د یوه مخرج حروف سره اوړي.

۲_ دوهمه پلا ښایي چې هغه حروف سره واوړي، چې مخارج یې سره نژدې وي.

۳_ کله کله داسې هم پېښېږي، چې یو توری په داسې بل توري تبدیل شي، چې په مخرج کې ډېر له اصله لېرې وي، دا نو داسې کېږي چې یو حرف لومړی پلا په داسې بل حرف واوړي، چې په مخرج کې ورنژدې وي؛ وروسته بیا دغه مبدل صورت په بل داسې حرف ابدال شي چې دغه دوهم صورت نژدې وي. دې ته ابدال بالواسطه باید ووایو.

۴_ صحیح حروف یا صامت توري Consonants: په اوښتلو کې تر لوړو درو قاعدو لاندې دي؛ مګر حروف علت یا صایت یعنې ږغیز توري Vowels هر وخت صامتو تورویو ته

حرکـات ورکـوي او د دوی پـه کومـك د صـامتو توریـو تلفـظ کېږي، د ابـدال پر وخـت کـم قیمـت نـه لـري؛ کله لـه منځـه ځـي، کله اوړي، کله زیاتي کېږي.

ږغیـز تـوري دادي: (چې سـاکن وي) الـف A، و V ، ی Y، هـ (حرکـي) H، آی I، یـو U، او O، اي E دا حـروف ذاتـاً اصـالت نـه لـري د نـورو د حرکـت ښکـاره کولـو لپـاره دي اصلاً د دوی تشـکیل هـم د یـوه ږغ لـه درنولـو او سـپکولو څخـه دی دا لانـدې نقشه وګورئ:




یو مثال:

د ابـدال ددغـو قاعـدو د څرګنـدولو لپـاره دا یـو مثـال دلتـه راوړل کېږي (اشـو) Ashvas پـه سنسـکریت کـې آس تـه وایـي، پـه اوسـتا کـې اسپه Aspa شـو، پـه پاړسـو اسـپ Asp او پـه پښتـو نـر آس او ښځـه یـې اسـپه ده. وګـورئ! د سنسـکریت (ش) تـالوییز تـوری پـه (س) بـل تـالوییز تـوري اوړي؛ نـو (اش) طبعـاً (اس) کېږي، (واو) شونډیز تـوری دی (پ) هـم لـه شـونډو څخـه راوځـي؛ نو و VA= پ PA شو، اسپ او اسپه ځنې جوړ شول.

پـه پښتـو کـې (واو) د علـت لـه سببه حـذف شـو، آس پاتـه شـو.

تر څلورو لوړو قاعدو لاندې د حروفو د ابدال لنډه نقشه داده:

| هـ ـ ا | ح ـ هـ | ر ـ ل | ع ـ ا |
|---|---|---|---|
| س ـ خ ـ کـه | ت ـ ټ ـ ط | م ـ ن ـ ڼ | ق ـ ك |
| ب ـ پ ـ و ـ ف | د ـ ډ | ن ـ ل | ن ـ ڼ |
| ګ ـ غ | ذ ـ ز | ږ ـ ژ ـ ج ـ څ | و ـ ا |
| س ـ ش | ص ـ س | څ ـ س ـ چ ـ ش | ت ـ ث |
| هـ ـ س | ض ـ د | د ـ ل ـ ت | ی ـ ج |

## ویدا Veda:

تر ټولو دمخه باید د ویدا کلمه تر غور او تحقیق لاندې راولو؛ ځکه د اکثرو پوهانو په عقیده دا کلمه له پخوانۍ اصلي آریايي ژبې څخه ده او دوی وايي چې ددې کلمې اصل (ود) دی چې د پوهنې معنا لري[1].

په سنسکریت کې د ډېرو کلماتو ریښه هم دغه کلمه ده او ډول ډول الفاظ ځنې جوړ شوي دي، مثلاً ودت Vidit علم، فهم، ودیا، علم، زده کړه، ودیا بهیاس Vidya Bhyas زده کړه، لوستنه، ودیا پراپتي Vida Prapti د علم تحصیل، د پوهنې زده کړه، ودیادان Vidyadan د علم خپرول او اشاعت ودیا رتهي Vidya Rthi زده کوونکی، محصل. ودیالی ـ Vidyalay مکتب، ښوونځی، زده کړوځی، ودیاوان Vidya-Van پوهنوال، عالم، علمي[2].

په دې ډول د ویدا کلمه له (ود) څخه مشتقه ده او په سنسکریت کې د علم، پوهنې په معنا ده؛ مګر لکه کلمات چې د عصر او زمانو په تېرېدلو سره تغییر او تحول کوي،

[1] ددې کلمې شرح لږ څه دمخه تېره شوې ده.

[2] هندوستاني قاموس، ص ۷۶۶.

معاني يې هم دغسې دي، چې په تقريبي ډول بلې خوا تـه مېـل كـوي او لـږ لـږ لـه خپلـه اصـله لېرې كېږي، د سنسـكريت ويـدا Vida د پښتـو ژبـې د ډېـرو كلمـاتو سـره پـه ريښـه او معنـاوو كـې نـژدې والـی لـري، كـه څـه هـم كـټ مـټ دغـه كلمـات؛ لكـه سنسـكريت د پـوهنې او علـم معنـا (نـه) وركـوي؛ خـو د پـوهنې مقصـد تـه نـژدې دی؛ نـو سـړی ويـلای شـي، چې لـه اصـلي آريـايي ژبې څخـه دا كلمـه سنسـكريت تـه پـه لـږ معنـوي تحـول راغلـې ده، اصـل يـې پـه پښتـو كـې محفـوظ دی. يـا دا چـې د پښتـو معـاني يې لږ څه مغير شوي دي، په دې ډول:

پـه پښتـو كـې وده Vada د واو پـه زور او د دال پـه زور كـې تـر اوسـه د نشـو و نمـا او لويـوالي پـه معنـاوو مسـتعمله ده، پـه قنـدهار كـې وايـې: ((دا تـاك پـه دې مځكـه كـې وده نـه كـوي)) يعـنې نـه لويېـږي او نشـو و نمـا نـه كـوي. لـه دغـې ريښـې څخـه واده Vad∂ جـوړ شـوی دی چې پـه واده كـې هـم وده يعـنې نشـو ونمـا او تكـاثر پټ پـروت دی؛ انسـانان پـه واده سـره نشـو و نمـا او ډېرښـت كـوي. لـه دغـې كلمـې څخـه ودېـدل لازمـي مصـدر، ودول متعـدي مصـدر، ودون، ودونـه، ودېـده، ودېدنـه، وديـدنګ جـوړ شوي دي.

وده يعـنې لويښـت او نشـو ونمـا لـه پـوهنې سـره لازمـي شـی دی، وده بـې پـوهې نـه كېـږي او هـر ځـای چـې پوهنـه او علـم موجـود وي، هلتـه وده هـم شـته. دا معنـوي تـلازم دغـه دوې كلمـې ښـه سره نـژدې كـوي؛ نـو هغـه كلمـه چې د (ويـدا) نـوم ځنې مشـتق دی، كـټ مـټ پـه پښتـو كـې (وده) ده. ددې معنـوي تطبيـق او تـلازم د ځرګنـدونې لپـاره دا لاندېنـی لغـوي پلټنـه هـم د ويلـو وړه ده.

د ویدا کلمه چې په اصل کې (وَید) ده، د دال په زور په اسلامي دوره کې بید Beed ضبط شوې ده (واو) او (پ) دواړه شونډیز توري دي او ابدال یې هم خورا ډېر دی: مثلاً پښتو وری د پارسو بره، پښتو وان Van پارسویان؛ لکه باغوان اوباغبان؛ نو وید بید او په پخوانی اصطلاح (بیذ) هم شو[1]، چې په پښتو کې له دغې ریښې څخه تر اوسه هم (بد) شته، مثلاً پلانی ډېر بد سړی یعنې هوښیار، عاقل دانشمند دی. دا کلمه وروسته په بودایي عصر کې هم کټ مټ ددغه (بده) په نامه کې موجوده وه او علامه البیروني لیکي چې: ((د هندوانو په عقیده ماده مطلق او مجرده هیولا درې شبه بالقوه له ځانه سره لري: عقل، دین، جهل او لومړی یعنې عقل ته (بدهه) وایي، چې د راحت او خوښۍ او هوسایۍ باعث دی))[2].

د (بد) کلمه د پارس په ژبو کې هم ننوته؛ مګر د حافظ، ساتونکي، مشر او رییس معنا یې وموندله. المسعودي عربي مؤرخ لیکي چې: ((په پارس کې تر اسلام دمخه ډېر منصبونه موجود وو او تر ټولو لوړ منصب د (موبذ) و، یعنې حافظ الدین او د دوی په ژبه (موبذ) حافظ ته وایي، جمع یې (موابذه) ده، دغسې هم (اصفهبذ) له اسپه (سپه) اوبذ څخه مرکب دی یعنې سپه سالار، په دغه ډول د بیربذ (حافظ الکتاب) هوتخشه بذ (د کاسبانو او تجارو مشر) و[3]. دغسې هم الخورازمي کوهبذد صاحب الجبل او هیربذ د رییس النار

---

[1] کتاب الهند، ص ۱۶۳، ج ۱.
[2] کتاب الهند، ص ۴۱، ج ۱.
[3] التنبیه والاشراف.

په معناوو راوړی دی[1] چې له دغو ټولو څخه دا ښکاري چې (بذ) د پارسیوانانو په اصطلاح تر اسلام دمخه د رییس او حافظ، مهتر معاني درلودل چې د بودایي (بده) او د پښتو اوسني (بد) سره ډېره اړه او نژدې والی لري.

په پښتو کې یو بل مصدر هم شته، بودول Budawəl یعنې اخیستل او تحصیل او لاسته راوستل، مثلاً خپلې پیسې مې ځنې بود کړې، یعنې لاس ته مې راوستې او تحصیل مې کړې. ښايي چې دا هم یو معنوي تحول وي، له دغسې ریښې څخه، دغسې هم ویل کېږي، چې دا شی د بود دی یعنې د ګټې او نفعې دی.

له دغو لوړو تاریخي او لغوي پلټنو څخه نو دا نتیجه لاس ته راځي، چې د پښتو (وده) او بیا (بد) په هغه پخواني (ود) او (بید) اړه لري او ددغو کلماتو ریښه پخوانۍ آریایي ده او په پښتو کې هم تر اوسه له دغسې ریښې څخه ډېرې کلمې ژوندۍ دي او دا ثابتوي چې د آریایي پخوانۍ ژبې سره اوسنۍ پښتو ځنګه ټینګه رابطه او اړه لري.

## ریګ او ریشي:

د وید شرح او تطبیق مو لوړ ولوست او دا هم در معلومه ده، چې ریګوید Rigveda د وید د کتاب مهمه او لومړۍ برخه ده اوس به راشو، دې ته چې د رګ Rig کلمه څه معنی لري او په پښتو کې ریښه شته که یه؟

لکه دمخه چې هم ویل شوي دي، د رګ ماده Rich ده چې

[1] مفاتیح العلوم ص ۶۵_۶۵_۷۱.

د البیروني په قول (درج) مجموعه ده او رج یو ډول نظم و، چې د قربانیو پر وخت به درې ډوله ویل کېده او دمخه جمله بېرته ورسره تکرارېده، بیا نو بله جمله ورسره یو ځای کېده[1].

اوسني پوهان وايي چې: رګ د ستاینې او حمد و ثنا معناوې لري او دا کلمه په سنسکریت کې هم په دغه معنا ده؛ مګر که موږ دقیق شو داسې تحلیل کېږي:

ګ، ج، چ او بیاش ټول تالوییز حروف دي، یو له بله سره اوړي، هغه ریج چې البیروني راوړی دی، یقیناً د رګ Rig معرب ډول دی، په سنسکریت کې ریج سم او سیده او دغسې هم په ښو اخلاقو ستایلي او د ښو خویو څښتن ته وايي. ریچا Richa د ویدي روحانیونو یوه مخصوصه ډله وه او ریشې Rishi یا Rikhi د آریایي اقومو روحاني مشران وو، چې پر څو ډلو وېل کېده، لکه مهاریشي، راجاریشي او دغسې هم رګهـ Ragha د هند د یوه مشهور شاعر کالبداس د یوه شعر نوم دی[2].

که موږ وګورو دا ټول نومونه نژدېوالی او رابطه سره لري (رج، رچ، رش، رګ) ټول له یوې کورنۍ څخه دي او دا ټول د ریشي Rishi کلمې ته منسوبېږي. ریشي په پخوانیو آریایي اقوامو کې د مشر او بادار او رهنما او شاعر او روحاني مقام درلود او د ویدو برخې هم دغو ریشي ګانو ته منسوبې دي، مثلاً یوه برخه د یوه ریشي په نامه او بله د بل او هندوان دا عقیده لري، چې دغو ریشي ګانو ته د ویدو د مضامینو الهام کېده او دغو روحانیونو له ارباب انواعو سره ټینګه رابطه

---

(۱) کتاب الهند ج ۱، ص ۱۶۷.

(۲) هندوستاني قاموس ص ۴۲۷_ ۴۳۱_ ۴۳۴.

درلوده. په ویدو کې د ډېرو ریشي ګانو نومونه هم راغلي دي او داسې ښکاري، چې هر قوم به ځانته ریشی درلود[1] او هر ریشی د خپل قوم رهنما، روحاني، شاعر، خطیب بلل کېده او هر وخت به یې خپل قوم ته د قربانیو او عباداتو د وختو دعاوې او سندرې نظم کولې. د حمد او ثنا مضامین به یې په شعر کې ویل. دا سندرې او دعاوې چې سره ټولې شوې؛ نو د ویدا کتاب ځنې ترتیب شو او هره برخه یې د هغه ریشي په نامه وبلل شوه، چې هغه دغه سندرې او دعاوې نرم کړې وې، یا دا چې د آریایانو په عقیده ده ته یې الهام شوی و؛ نو ریشی هم هغه رج Rij یا رګ ته منسوب دی چې معنا یې ده: ستایونکی، ثناګوی، شاعر، د ښو اخلاقو څښتن...)).

نو رګ، ویدا، رج ویدا دا ګرده له یوې ریښې څخه راوتلي شیان دي او معنا یې ده ((د ستاینې د حمد او ثنا او د ښو اخلاقو او سموالي پوهنه))[2].

اوس به نو راشو پښتو ته، زموږ په ژبه کې اوز کلمې شته چې تر اوسه هم ژوندۍ دي او ددغې کلمې سره ښکاره خپلوي لري. لومړۍ کلمه ده (رشه) یعنې خلك او ارثي سَجیه، مثلاً وایي: دغه یې د پلار او نیکه رشه ده، یعنې د پلار نیکه خلق او سجیه یې دغه ده. دوهمه کلمه (رشا) ده دا د هغه چا صفت کېدای شي، چې قولاً او عملاً معتمد وي او ریشا کېدای شي، مثلاً زلمی خان ډېر ریشا سړی دی. دریمه کلمه (وراشه) ده، چې د خبرې او وینا معنا لري، ((وراشه یې نه ده زده)). د هغه چا حال بیانوي، چې نه ژبه لري نه وینا.

---

[1] د ویدو تعلیم، ص ۸ او ویدك انډیا ص ۷۰.

[2] تاریخ افغانستان، ج ۱، ص ۶۲.

حمید مومند وایي:

خنداوه به عاشقۍ راپورې خلق
چې خندل مې د پندګویو په ورشو

معلومېږي چې نامعقولې او بدې خبرې ته (وراشه) نه وایي؛ بلکې ښې وینا او د ګټې خبرې ته وراشه ویل کېږي. په دې ډول سړی ویلای شي، چې دریشي آریایي کلمه له پښتو (رشه، ریشا، وراشه) سره ډېر نژدې والی او خپلوي لري، ښايي چې کوم معنوي تحول ورپېښ شوی وي- مګر ددغه سره هم ډېر بېلتون نه سره لري- د رشې خاوند ریشا وي- او وراشه هم لري، چې د ورشې خاوند تل د رشې ښبتن او ریشا سړی دی. دا ټول سره لازم او ملزوم دي. د آریایي ((ریشي)) کلمې په طبیعت کې هم دغه ټول صفات پراته دي. هر ریشي د ښه خُلق خاوند او معتمد- او د ښې وینا خاوند و، د وید سندرې دده الهامات وو او هغه به یې لوستې؛ نو هر ریشي شاعر هم و ـ یعنې (وراشه وال) و او په دې ډول ددې پخوانۍ او تاریخي کلمې ریښې په پښتو کې تر اوسه شته ـ او رګویدا Rig-Veda چې رجوید هم ضبط شوی ـ او رج ـ رچ او رش هم کېدای شي ـ ریښه یې دغه رشي Rishi ته رارسېږي او معنا یې داسې کولای شو: ((منظوم ویدا ـ د ریشي ویدا ـ د ښو خویونو او ښې وراشې علم)).

## سمهیتا Samhita:

پوهانو ددې کلمې معنا (مجموعه) Collection راوړې ده، په خپله د ویدا څلور کتابونه چې دمخه ذکر شول، د مقدس علم څلور مجموعې ګڼل شوې دي او هره یوه سمهیتا بلل

کېږي[۱]. مثلاً ريګويدا سمهيتا، ساماويدا، سمهيتا او نور. الماني مستشرق وينترنيخ اصلاً ويدي ادب پر دوو برخو وېشي: يوه مهمه لومړنۍ برخه يې سمهيتا بولي چې ټول د ويدو متون پکې داخل دي[۲]. په پښتو کې تر اوسه دغه کلمه کټ مټ نږدې دغې معنا ته شته. سمته Samatah يعنې مجموع او ټول او کافي او په ښه اندازه. مثلاً ونې ښه سمته مېوه کړې ده، يا ډوډۍ يې وخوړه خوښه سمته ځنې پاتې شوه، پلانۍ ډېرې پيسې لري؛ خو سمته يې ځلوېښت زره کېږي.

نو دغه د پښتو سمته کټ مټ د ويدي ژبې سمهيتا ده (ی) او (الف) چې حروف علت دي، هر وخت حذفېږي يا زياتي کېږي، يا د حرکاتو کار ورکوي. په دې لنډۍ کې دا تاريخي کلمه ساتلې شوې ده:

د غم د برخو په وېش راغلم
سمت سمت غمونه زما په برخه سونه

يعنې کافي او مجموعه مجموعه غمونه د برخو په وېش کې زما حصه شوه.

## شرتي، سروتي *Cruti*:

دمخه مو وويل چې: د ويدي سندرو يوه برخه يعنې متون او څلور سمهيتا سروتي يا شرتي بولي او دا عقيده لري، چې

---

(۱) برتانيکا، ج ۱۹، ص ۹۵۷؛ کېمبرج هيستري آف انډيا، ص ۷۷، ج ۱.

(۲) د هند د ادبياتو تاريخ، ج ۱.

دغه سندرې الهامي وې[1].

دا پخوانی کلمې هم د پښتو پر اصولو تحلیل کېدای شي، د (س، ش، ښ) ابدال یو طبیعي کار دی، شرتي، سروتي د یوې کلمې انواع او مختلف شکلونه دي، په شرتي کې واو تخفیفاً حذف شوی دی، دا کلمه پښتو (ښه راوتي) ده، الف چې حرف علت دی او په فیلالوژي کې کوم قیمت نه لري، له منځه تللی دی؛ نو که باقي حروف یو ځای ولیکو، طبعاً (ښروتي) کېږي، ښروتي لومړی شروتي بیا شرتي او سروتي شوی دی، ښه راوتي یعنې په ښه ډول راغلی او الهام شوی چې هغه الهامي معنا لري.

## سمرتي Smriti:

ددې کلمې شرح هم دمخه تېره شوه، د ویدو هغه برخې چې الهامي نه دي سمرتي بولي. دا هغه د ویدو ملحقات او شروح دي، چې د روایت او تحدیث په ډول یو له بله نقل شوي او معنعن راغلي دي. ددې کلمې اصل غالباً له دغه پښتو شمېر او پارسو شمار، شمردن سره شریک دی، په پښتو وایي شمېرلی یا شمرلی چې په پارسو کې (شمرده) دی.

د س، ش ابدال عمومي دی (ت، ل) دواړه د نږدې مخرج حروف دي. ابدال یې روا دی او ښایي چې دلته بالواسطه وي، یعنې شمېلی لومړی وار سمردی او بیا دال په (ت) بدل شوی وي، سمرتي.

د مثال په ډول دا کلمې وګورئ: د لا او دال ابدال سل =

---

[1] ددې کلمې نوره څېړنه د اجتماعي تشکیلاتو په بحث کې د (سمتي) تر کلمې لاندې راځي.

سد، لس = دس (ده هندي) لېونی = دیوانه بیا نو د (د) ابدال په (ت) لکه زیاد- زیات. اباد = ابات، شهد = شات.

## Sind: سیند

دا کلمه هم ډېره تاریخي ده او ښځي زړه، په ریګویدا کې سپته سندهو Sapta Sindhu مکرراً راځي یعني اوه روده چې دغه نوم په اوستا کې کتې متې دغسې هپته هندو -Hapta Hindu ذکر کېږي. په دې علاقه کې چې اوه دوره بهېدل یوه حصه یې اوسنی پنجاب دی چې پینځه روده پکې بهېږي[1]. دغسې هم سندهو په ویدي سندرو کې صرف د رود په معنا دی، چې هر وخت د اوستا ژبه کې د ویدي ژبې (س) په (هـ) تبدیلېږي؛ نو د هند نوم هم له سندهو څخه جوړ شوی دی[2]. پخوانو آریایانو د انډوس رود هم سندهو باله او مطلق هر رود یې هم په دغه نامه باله او داسې معلومېږي چې دوی په تریخ دریاب (بحر) خبر نه وو، دا کلمه یې پر هر رود اطلاق کوله[3].

په اتهروا ویدا کې هم دا کلمه په دغو دواړو معناوو راغلې ده، کله مطلق رود ته وایي او کله انډوس Indus ته سندهو ویل شوي دي[4]. د اوستا لومړی فرګرد د هغه عصر د شپاړسو مشهورو ځکو او هېوادو نومونه بیانوي، پنځلسمه مشهوره ځکه یې هپته هندو Hapta Hindu ده چې دغه نوم په زړه پاړسو کې هندوا Hindava راغلی او هغه سندهو

[1] تاریخ افغانستان ج ۱، ص ۷۴؛ ویدك انديا، ص ۶۷.
[2] مدنیت بخش هند، ص ۳۸، ایران، ص ۲۰.
[3] کېمبرج هیستري، ص ۸۰.
[4] اتهروا ویدا، ص ۱۲_۴۰_۶۲_۱۰۷

په هندوا ابدال شوی دی.

د اوستا د لومړي فرګرد په ۱۹ فقره کې وايي: ((له ښو مځکو څخه پينځلسمه چې خالق پيدا کړې ده، هپته هندو (اووه روده) دي...))[1].

دا نوم په ويدي اصطلاح (سندهو)، په پښتو کې تر اوسه هم مستعمل او ژوندی دی، (سيند) يا يې مخفف (سين) دواړه اوس په هغو دواړو معناوو چې په ويدا کې وې، مستعمل دی، مثلاً په عمومي معنی د کابل سيند، د کونړ سيند ويل کېږي او په مخصوصه معنی (سيند) يا (اباسين) انډوس ته ويل کېږي، خوشال خان وايي:

که مې يو ځلې رسد وشي تر سينده
بيا دې نه وينم په تورو سترګو هنده

دلته مقصد انډوس دی يا لکه دا لنډۍ:

اباسين بيا په څپو راغی
په سر يې راوړه سپينې خولې ژړ پېزوانونه

يا په عمومي معنا لکه د خوشال خان دا بيت:

که يې درست په سيند کې ډوب کړې هم به سبځي
چې سبځل يې په نصيب شو له روزګاره

په دې ډول سيند او سين د پښتو مستعمل او ژوندی لغت دی، چې په ويدي ژبه کې هم و او ښايي چې له اصلي آريايي ژبې څخه دواړو ژبو ته راغلی وي.

---

[1] اوستا، ج ۱، ص ۹.

## سوما، هوما Soma Haoma:

دا د یوه بوټي نوم دی چې په ویدي ژبه یې (سوما) بولي، اما لکه په اوستا کې چې د ویدي ژبې (س) په (هـ) اوړي؛ نو په اوستا کې هوما راغلی دی. دا بوټی هغه وخت آریایانو مقدس ګاڼه چې دوی لا په بخدي کې یو ځای وو او پر هندي او ایراني څانګو نه وو وېشل شوي. دوی به په خپلو مذهبي مراسمو کې ددې بوټي شیره څښله او یو راز مشروب به یې ځنې تیاراوه چې نشه یې درلوده او ډېر مقوي او تود و.

ددې بوټي نوم له قدیمه تر اوسه ډېر مشهور دی او په عربي یې (هوم المجوس) بولي او شرح یې داسې لیکي: ((یو بوټی دی یاسمین ته ورته، لږ څه شېریني او حدت لري، هوم المجوس یې له دې جهته بولي، چې آتش پرستان یې د خپل عبادت پر وخت استعمالوي))[1]. علامه البیروني ددې بوټي شرح هسې لیکي:

((هوم المجوس)) په سغدي ژبه یې خوم او په سریاني یې عرز او مغوشي او په پارسي یې آفتاب پرست بولي، مجوسیان (د زردشت تبعه) وایي، چې دا بوټی ساق نه لري او په آزربایجان کې شین کېده ارچانسوای مونډلای ځکه چې مارانو به تل د مرغانو چیچیان خوړل ـ نو یوه پاچا ددې بوټي ښاخله راوړه او د مرغانو په ځالو کې یې کښېښووه ـ او ماران یې پرې ووېرول وروسته دا ښاخله د ځالو په ونه پورې ونښته او ډېره شوه[2] په شرقي طب کې هم دا بوټی ډېر مشهور و، حکیم محمد حسین دهلوي یې شرح داسې لیکي:

---

[1] المنجد، ص ۶۸۷.

[2] د البیروني الصیدله، ص ۱۴۱.

"هوم المجوس (د لومړي حرف په پېښ او د واو په سکون)، دا بوټی مراتبه هم بولي لاندې ساق يې يو او نری او کلك وي، ګل يې ښخي ژېړ دی، ياسمين ته ورته، بلګونه يې کوچني او ګلان يې لکه ياسمين داسې وي". د تحفې ليکونکی وايي چې: ((دا بوټی د ژېړ ارغوان له جنس څخه دی)) حکيم مير عبدالحميد وايي: ((هوم المجوس يو ګل دی چې جعفري يې بولي، ډېر اقسام لري، طبيعت يې په درېمه درجه تود او وچ دی ځينې يې ګلان د ساړه او وچ طبيعت لرونکي ګڼي، خواص يې دادي: ((جالي حاد مجوف د سنګ مثانې لپاره يې د ګلو خيسانده مفيده ده؛ ګل يې د تبې د وينو د بندولو لپاره مستعملېږي...))[1].

د اروپا نوي پلټونکي هم ددې بوټي ډېر تفاصيل ليکي، د دوی د تحقيقاتو لنډيز او نتيجه لاندې راوړل کېږي، چې د هوما په خصوص کې لړڅه د نوې دنيا د پوهانو افکار هم دلته ښکاره شي: مادام راګوزن ليکي: ((د سوما بوټی په لوړو غرو کې پيدا کېده؛ ددې بوټي پرستش (په) آريايي اقوامو کې تر بېلتون دمخه شروع شوی و دوی لومړی ددې بوټي څخه مشروب جوړاوه او وروسته په خپله د يوه رب النوع په ډول ومنل شو او هغو چې دا بوټی مقدس نه ګاڼه آريايانو په سپکه ورته کاته. د سوما سوداګران او خرڅوونکي يې مجرمان ګڼل او هغه څوك چې سوما وساتي او شيره يې ونه کاږي، دوی يې دښمنان بلل. دا خلك د غرو پوونده سوداګران وو چې سوما به يې له غرو څخه وړه او خرڅوله به يې او په يوه خاص ډول به يې د هند له آريايانو څخه قيمت اخيست.

[1] مخزن الادويه، ج ۲، ص ۲۷۴.

هغو به تل داسې غوایې چې رنګ یې تک ژیړ (فاقع) و. په ښه ډول ساتل او دغه غوایي به یې د سوما د بوټي په عوض کې ورکول داسې ښکاري، چې: د سوما بوټي شیدې یا شیره درلوده. ښاخونه یې کلک وو پر ښاخلو باندې یې بلګونه نه وو، رنګ یې سور یا طلایې وو. تارونه یې دباندې خوا لکه د نل بند بند وو، له دغو څخه تروه او ګاټه شیره په نښتېځلو وته اوله دغه سره به یې ځینې نور اجزا ګډول او د عبادت د وخت لپاره به یې مشروب ځنې جوړاوه)).

ونډش مان Windischmann وایي چې: ((دا بوټي به د سپوږمۍ په شپو کې پېغلو او نجونو ټولول، په یوه ګاډۍ کې چې دوو مږو به چلوله، د قربانۍ تر ځایه ورل کېدل، وروسته به روحانیونو اوستانو یوه شاخه لاندې او بله ډبره (با)ندې کړه، دغه بوټي به یې کوټل او په لاسي اونګ کې یې میده کول، بیا به یې تر پشمي ټوکر صافول. په دغه شیره کې به یې وروسته شیدې یا اوړه ورسره اچول او تخمیر کول به یې. دا مشروب دوی په ډېر شوق څښه او د ژوندانه ساتونکی او جاوداني عمر بخښونکی یې ګاڼه)).

د ریګویدا شاعران یې ډېر صفت کوي: مثلاً په ریګویدا کې راځي: موږ سوما وڅښل، نه مړه کېږو، په رڼا کې ننوتو، دښمن په موږ څه کولای شي د فاني انسان رخه به په موږ څه وکړي.

د سوما مشروب دوی د اسمایي سوما (سپوږمۍ) یو څاڅکی یا شبنم ګاڼه، چې د تل ژوندانه (امرت) حامل وي او ټول قوت او طاقت هم پکې پروت دی[1].

[1] ویدك انډیا، ص ١١٥.

د سوما اهمیت او منزلت له دې څخه ښکاره کېږي، چې (اندرا) د جنګ رب النوع له دې مشروبه سره ډېره علاقه لري او د قوت او غښتلوالي لپاره یې ډېر خوري او د اندرا ټول جنګي قوت هم له دې څخه دی او بل دا چې د ریګویدا نهمه برخه ټوله د سوما په ستاینه ډکه ده او د اوستا یوه برخه هم ((هوم یشت)) نومېږي او ددغو دوو پخوانو کتابونو مهمې برخې د ((سوما، هوما)) ستاینه کوي.

وایي چې لومړی پلا یوه اسماني ګریت (عقاب) چې سینا Cyena یې نوم و، د هریتي بري زا Haratibraeza له غره څخه دا بوټی راووړ او د یو پایي ري سینا U. paricyena (هندوکش) ستیرا Staera (تیرا) کوسرادا Kusarada (د غور کوراسون غر) پورانا Paurrana (پروان) سپي تا ګورا ناګیري Spita- Gaona- Gairi (سپین غر) پر غرو یې خپور کړ[1].

د هوم یشت له دغه بیانه ښکاري، چې ددې بوټي د شنه کېدو او د ودې ځای د افغانستان مشهور غرونه وو، تر اوستا دمخه په اترهو اویدا کې هم د سوما بوټي د شین کېدو ځای د منجوان MANGOAVAN غر ښوول شوی دی او دا هغه غر دی چې اوس یې (منجان) بولي. د نورستان او بدخشان تر منځ واقع دی او د جرم دره په کې ده د اتهروا ویدا (منجوان) او اوسني منجان تر منځ فقط د واو د حذف فرق دی؛ واو خو حرف علت دی او هېڅ قیمت نه لري.

یا موجاوانت Mujavants نومېږي، دا قبیله د بهلیکا سره یو ځای ذکر شوې ده، چې مقصد یې هغه د بلخ خلک دي. ګریفت وایي: چې موجاوان یوه قبیله ده، چې د هند په شمالي

[1] هوم یشت ۱۰_۱۱؛ د افغانستان تاریخ، ص ۱۵۲، ج ۱.

غربي خوا کې اوسېده[1].

ماکډونل وايي چې: دا قبيله د ګنداري قبيلې سره ګاونډۍ وه؛ ځکه چې ګنداريان د کابل او پېښور تر منځ مېشته وو؛ نو په شمالي خوا يعنې د لغمان او نورستان په شاوخوا کې منجوان اوسېدل[2]. چې د اتهرو ويدا په قول د بلخ له خلکو سره هم دا قبيله نژدې ده.

مورګن ستيرن G. Morgensterne ناروېژي مستشرق هم دغه منجان هغه تاريخي منجوزان بولي او د (شرقي پوهنو) په کتاب کې يې مفصلاً شرح ليکي[3]. له دغو ټولو توضيحاتو څخه ښه څرګندېږي چې د هوما ياسوما اصلي ځای زموږ د هېواد جګ جګ غرونه وو او دا بوټي ددغه ځای و. د سوما د بوټي په تشخيص کې هم نورو پوهانو راز راز نظريې ښکاره کړې دي، مثلاً ګريفت د يوې محلي په حواله چې Quarterly Review[4] نومېږي هسې ليکي:

دوکتور ای چي شن Aitchison وايي: ((ښايي چې سوما د افدراپاچيکلاد Ephedrapachycalade بوټی وي چې د هريرود په ورشوګانو کې يې تر اوسه هم Hum يا هومه Huma يا ايهمه Yahme بولي)). دوکتور جوزف برنمولر Dr. Bornmuller چې په کرمان کې ډېر عمر اوسېده، سوما د انررا يوه نوع ګڼي ـ او وايي چې له سايبريا څخه بيا د

---

[1] اتهرو اويدا_ ج ۱، ص ۲۲۴.
[2] تاريخ افغانستان، ص ۱۵۴، ج ۱.
[3] ۳۵۴ ګڼه، ۱۸۹۴ع، ص ۴۵۵.
[4] د اتهروا ويدا حواشي، ص ۲۵۲، ج ۱.

ايشيا تر غربه د افدړ ډېر انواع موندل کېږي[1].

سر اورل استين انګليسي مؤرخ او مستشرق هم دغه شرحه منې؛ دی ليکي، چې: دوکتور ای چې شن د افغانستان د سرحداتو د تحديد د ډلې عضو و، ده له بلوچستانه تر هري روده په ډېرينو ځمکو کې دا بوټی موندلی دی، چې (هوم بندك) Hombandak يې هم باله. په خپله اورل استين وايي، چې: په ۱۹۱۵ع کال ما هم د ايران او افغانستان په سرحداتو کې دغه بوټی وليد، چې خلکو هوم Hum باله او افدړا هغه تاريخي هوما دی چې په ويدا او اوستا کې يې ذکر راغلی دی[2].

په دې ډول هوما يا سوما دغه بوټی دی چې په علمي ژبه يې افدړا بولي او اريايانو به شيدې او شات ورسره ګډول او مشروب به يې ځني جوړاوه، اوس به وګورو چې په پښتو کې ددې تاريخي بوټي نوم څه دی؟



دمخه مو وويل چې د سنسکريت (س) تل په اوستا کې په (هـ) اوړي؛ نو سوما هوما شو؛ تر ميم وروسته الف فقط د ميم د زور ښکاره کولو لپاره ليکل کېږي، چې په پښتو کې د زور کار (هـ) هم ورکوي؛ نو بايد په پښتو رسم الخط دا کلمه (هومه) وليکو (هـ) هر وخت پښتانه په همزه اړوي، مثلاً هګۍ، اګۍ بولي، هلك ته الك وايي. د هومه لومړی حرف که په همزه واړول شي (اومه) به شي.

پښتانه يوه بوټي ته اومه (په مجهول واو) وايي، چې په غرو او ډېرينو ځمکو کې شين کېږي، دا بوټی نر او ښځه اقسام لري.

---

[1] تاريخ افغانستان، ج ۱، ص ۱۵۵.

[2] تاريخ افغانستان ج ۱، ص ۱۴۵.

په هندوکش او سپین غره او د تیرا او د مهمندو په غرو کې دا بوټی ډېر دی، په قندهار کې (اومان) بولي، پختیاوال او د کونړ او شینوارو خلک یې هم (اومه) یا (ماوه) بولي، د پاړسو په اصطلاح (بندك) دی. په نورستان کې هم دا بوټی تر اوسه (سوم) بولي[1] او د خوست تني یې مېوه، موه بولي.

ددې بوټي ایرې خلک د خولې په نسوارو او باروتو ګډوي، ښاخلي یې بلګونه نه لري. نیم ګز قدر لوېږي، بند بند وي چې مات یې کړې شیدې څنې راوځي. ځینې خلک یې ایرې د کشتي په نسخو کې هم استعمالوي، وګورئ: هغه پخوانی آریایي نوم کټ مټ په پښتو کې ژوندی دی او اوس هم ویل کېږي او له دې څخه د پښتو ربط له ویدي ژبې سره په ښه ډول ثابتېږي. هغه د (هوم) نوم چې خارجي پوهانو د ایران او افغانستان په سرحداتو کې اورېدلی دی، کټ مټ دغه پښتو نوم دی، چې عوام یې (اومه) تلفظ کوي.

## چهند :Chhandas

دا کلمه په ویدي ادب او ویدي ژبه کې ډېر اهمیت او شهرت لري، په پښتو کې خو اوس مستعمله نه ده؛ مګر په زاړه ادب کې ژوندۍ وه او په غزنوي او غوري دورو کې لا هم مستعمله وه.

دلته به لومړی ددې لغت تاریخ اهمیت ښکاره کوو، بیا به یې په پښتو کې دروښیو: دمخه مو د ویدو د ملحقاتو او زمانو په بحث کې ولوستل، چې چهند په ویدي اصطلاح عروضي

[1] د یعقوب حسن خان فقه اللغه ص، ۲۷۰.

اصولو ته وايي او د ماکس میولر په قول د ویدي ادب خورا زړه برخه چې په (۱۲۹۰ تر ۱۰۰۰ ق، م) اړه لري، چهندس بلل کېږي، یعنې عروضیات. د ویدا په ملحقاتو کې هم څو کتابونه په دغه علم اړه لري؛ هغه وخت چې پانیني نومې مشهور ویدي عالم او ژب پوهاند د سنسکریت ژبه ترتیب کړه، د ریګویدا ژبه یې چهندس بك، یعنې د نظم او عروضو ژبه یا د شعر ژبه. تي. ډبلیو. آر. ډاویدس T.W.R. Davids د بودايي ادب پروفیسور وايي، چې: «چهندس اصطلاح په بودايي دوره کې هم وه. اکثره بودايي ادبي کتب او آثار په چهندس ډول لیکل شوي دي، هغه ډول ژبه چې برهمنا ـ او ـ او پنشدا د ویدا ملحقات پرې لیکل شوي وو، د ګرامر پوهانو چهندسه CHHANDASA بلل یعنې د چهندس ژبه یا د ویدي شعر ژبه. بودا هم خپله وینا WORD په دغه چهندس لیکلې وه؛ څو هر چا په خپله ژبه ویله[1].

په حقیقت کې چهندس د اداء او تلفظ او وینا هغه اصول وو، چې د ویدا کتابونه پې لیکل شوي وو، دا یو راز نظم و، چې وروسته داسې منظومه وینا د ویدا په تعقیب او پیروۍ رواج شوه او دغه ډول وینا یې چهندس وبلله؛ ځکه چې اصل او اساس یې پر نظم اېښود شوی و؛ نو د هر نظم او شعر عروضو ته یې هم چهندس وویل، دا اصطلاح وروسته پر هر عروضي شاعر باندې اطلاق کېده؛ لکه دمخه چې مو ولوستل په ویدي شپږو علومو کې چهندس ډېر مهم علم و، د ویدو د نظم او تلفیق ټول اصول په کې بیانېدل. دا علم د وینا او فصاحت معیار و، هغه وخت چې پنګل PINGEL خپل کتاب چهنده سترا CHHANDA SUTRAL وکېښ، د عروضو اصول یې په کې څرګند کړل،

[1] کېمبرج هیستري آف انډیا، ج ۱، ص ۱۸۶.

وروسته د ویدا په ډېرو شروحو کې ددې علم بیان وشو، پنګل د کتاب شرح هلابودهه HALABUDHA نومې عالم د مریتاسنجي وني MARITA- SANJIVANI په نامه وکښله او په سنسکریت کې هم دغه اصول وروسته تعقیب کړل شوه[1].

علامه ابو ریحان البیروني په خپل (کتاب الهند) کې ددې علم شرح مفصلاً لیکلې ده، چې دلته یې لنډیز راوړم، له دې ځخه به په اسلامي دوره کې هم د چهند اهمیت درمعلوم شي:

تر نحو وروسته چند (چهند) مهم علم دی چې د شعر د وزن او نظم اصول (عروض) بیانوي، هندوان دا علم خورا ضروري ګڼي؛ ځکه چې د دوی اکثر کتابونه نظم دي او دوی د خپلو منظوماتو ډېره ستاینه کوي او خورا ډېرې یې لولي. په لوست یې لولي او چکچکې کوي. که څه هم تر نظم نثر ډېر اسان دی خو بیا هم دوی کوربه نثر نه خوښوي.

د هندوانو کتب اکثر نظم دي او هم له دغه جهته د علومو زده کړه ګرانه ده، ما د اقلیدوس او مجسطي کتب دوی ته ترجمه کړل او د اصطرلاب فن مې د دوی په ژبه ورته ولیکه، دوی له هغو نوشتو څخه نظم جوړ کړ او ځکه چې په نظم کې توضیح نه وي؛ نو یې دا کار ډېر ځانته ګران کړ!

د چهند فن لومړی پلا پنګل او چلت نومو پوهانو ایجاد کړ او کتابونه یې پرې وکښل. تر ټولو مشهور کتاب یې ګیست دی، چې د خپل مصنف په نامه مشهور شوی دی؛ د مرګلانچن او پنګل او اولیاند کتابونه هم معروف دي[2].

دا و د چهند د کلمې تاریخ چې وروسته په سنسکریت کې

---

[1] برتانیکا، ج ۹، ۱ ص ۹۷۰.

[2] کتاب الهند ج ۱، ص ۱۸۰ـ ۱۸۱.

عموماً د اشعارو معیار او علم العروض ته هم چهند ویل کېده او دا کلمه ددغې ژبې معروف لغت شو[1]. په پښتو کې اوس دا کلمه مستعمله نه ده؛ خو په زاړه ادب کې موجود وه، ښکارندوی غوري د سلطان شهاب الدین غوري (۵۶۹_۶۰۲ هـ) معاصر په خپله یوه قصیده کې هسې وایي:

په بربڼ چې زېغ د چونیو نغوړېده شي
ته وا چندي سره پیودي اشلکونه[2]

چندي دلته د شاعرانو او ناظم معنا لري؛ د پټې خزانې په قلمي نسخه کې هم دې کلمې ته د شاعر معنا کښلې ده او له دې څخه ثرګندېږي، چې هغه پخواني چهند ته منسوب نوم دی (هـ) چې په دې کلمه کې وه، وروسته هیسته شوې ده او داسې ډول (هـ) له اکثرو کلماتو څخه لوېږي؛ ځکه چې صوتي حرف دی او د پښتو په صایتو حروفو (علتو) کې هم شامل دی.

ددې کلمې دا معنا له موقع څخه هم معلومېږي، پیودل په پښتو نظم کولو ته وایي؛ اشلوك هم قدیمه آریایي کلمه ده، شرح به یې وروسته راشي.

## اشلوك یا Ashlok Ishlok:

دا کلمه په سنسکریت کې د شعر او نظم Verse په معنا ده[3] او داسې معلومېږي چې اشلوك غوندې اشعار په هندي آریایانو کې ډېر وو، علامه البیروني لیکي چې اکثر هندي کتب اشلوك دي او دا یو راز نظم دی چې (چارید) یې بولي او هر

---

[1] هندوستانی قاموس ص ۳۴۴.
[2] پټه خزانه، ص ۵۱.
[3] هندوستانی قاموس، ص ۴۲.

پد یې اتـه حرفـه وي؛ مگـر پـه څلـورو سـرو ویـدو کـې دا اتـه حـروف یـو راز نـه دي. د څلـور پـدو اخـر حـرف لـه یـوه جنسـه یعنـې درونـد (ثقیـل) وي. د اشـلوك دا شـرط دی، چـې د هـر پـد پیـنځم حـرف بـه تـل سـپك (خفیـف) او شـپږم بـه یـې درونـد (ثقیـل) وي او د (م) حـرف بـه هـم پـه هـر دوهـم او څلـرم پـد کـې سـپك او پـه نـورو دوو یعنـې لومـړي او دریـم پـد کـې بـه ثقیـل وي؛ نـور حـروف چـې هـر راز وي پروا نه لري، اشلوك د هندي کتابونو بنیاد دی[1].

پـه دې ډول داسـې ښکـاري، چـې د اشـلوك پـه معنـا کـې تخصـیص تـر تعمیم وروسته راغلـی دی، لومـړی یـې مطلـق نظم او پیـودلي کـلام تـه (اشـلوك) وایـه، وروسـته د نظـم یـو مخصـوص ډول شـو او د سنسـکریت پـه عروضـو کـې تـر مخصـوص قالـب لاندې شو.

تاسـې دمخـه د چهنـد پـه بحـث کـې ولوسـتل، چـې دا کلمـه د ښکارنـدوی پـه یـوه قصـیده کـې راغلـې ده. هلتـه پـه قلمـي نسـخه کـې دې کلمـې تـه د (اشـعار) معنـا کښـل شـوې ده، چـې کـټ مـټ هغـه قدیمـه معنـا ده. داسـې معلومېږي چـې دا کلمـه تـر (۶۰۰ هـ) پـورې پـه پښتـو کـې هـم مسـتعمله او ژونـدۍ وه او لـه دې څخـه دا ثابتېږي چـې پخوانـۍ آریـایي کلمـه ده او (پـه) خپـل اصـلي ټـاټ او هېواد کې ژوندۍ وه.

## د سنسکریت نوم SANSKRIT:

تاسـې دمخـه هـم ولوسـتل، چـې سنسـکریت د تهـذیب شـوې، بشـپړې شـوې او سـمې شـوې معنـا لـري او پـه لنډ ډول مـو ددغـې

[1] کتاب الهند، ج ۱، ص ۱۱۴.

ژبې تاريخي وده او نشو و نما هم دمخه زده کړه. اوس يې لغوي تحليل وګورئ:

اصلاً دا نوم مرکب دی، لومړی جز يې (سم يا سن) دی؛ دا لغت په دوه ډوله قديم آريايي لفظ دی. په پښتو کې اوس هم (سم) د (راست، مستقيم؛ درَست) په معنا شته. مثلاً سم لرګی؛ سمه لکړه؛ سمه لار، سم کار او نور... دې کلمې پخوا نور مشتقات هم درلودل، چې اوس لږ مستعمل دي، مثلاً سمې د اصلاح او بهبود او ښېګړې په معنا؛ لکه شېخ متي چې وايي:

په غرو کې ستا د عشق شپېلکی دی
ددې نــــــرۍ په عشق سمی دی[1]

يا سما SAMA د نظم او انصاف او عدل په معنا؛ لکه شېخ اسعد سوري چې وايي:

له ســـــــماويې ودان آهنګران و
په تکنه و په درست جهان اوځار[2]



دغسې هم اوس سمون او سمول او سمونګ او نور مواد له دغې ريښې څخه په پښتو کې مستعمل دي. سنسکريت کې هم سم SAM او سن SAN دواړه؛ لکه د لاتين CON د پريفکس (يعنې سوابقو) په ډول راځي، معنا يې ده، يو له بله سره موافقت، نژدېوالی، لکه سم بنده SAMBANDH يعنې CON-NECTION سره نښتل، اتصال له دغسې ريښې څخه ډېرې کلمې راوتلې دي؛ لکه سما SAMA د موافقت او برابرې، وضعيت، سمتوب په معنا او سماپټ SAMAPT تکميل،

---

[1] پټه خزانه، ص ۲۷.
[2] پټه خزانه، ص ۴۳.

تامول، ترتیب او تهذیب کول[۱].

د سنسکریت لومړی جزو هم دغه (سم یاسن) دی چې ریښه یې قدیمه آریایي ده او ښایي چې له اصلي آریایي ژبې څخه په پښتو کې تر اوسه پاتې وي او سنسکریت ته هم تللی وي. د میم او نون سره اوښتل په پښتو کې اوس هم ډېر دي، مثلاً مښتل، نښتل، مښلی، نښلی یا لکه لاڼده، لامده، لنده، لمده.

دوهم جز ویی (سه) یا (زه) دی چې کټ مټ د پښتو (ښه) اوس موجود دی، په سنسکریت کې وایي: سوډول SU-DAUL یعني ښه ډول او ښه څېره[۲]، چې عیناً اوسنی پښتو ده، تاسې دمخه ولوستل چې (س، ش، ښ) د یوه مخرج او سره نژدې حرف دی، ابدال یې هر وخت روا دی (واو) او (هـ) هم دواړه صوتي اود علت حروف دي، په اوښتو کې کم قیمت نه لري؛ څکه چې د سنسکریت (س) هر وخت د اوستا په (هـ) اوړي؛ نو په اوستا کې دا کلمه (هو) ده. ددې نامه دریم جزو (کریت) دی چې معنا یې (کرده شده) ده او دا هم د پښتو (کې) ته ډېر نژدې دی. په سنسکریت کې کرن KARAN کټ مټ د پښتو کړن، یا کړل، یعنې کول (کردن) دی[۳]؛ نو د سنسکریت کلمه له (سم زه کرته) یعنې (اصلاح کرده شده) څخه محرفه ده[۴] او دا کټ مټ د پښتو سم ښه کړی (یعنې ښه سم کړی) عبارت دی چې د ژبې د تانیث له جهته باید (ښه سمه کړې) وویله شي[۵] یعنې په ښه

---

[۱] هندوستانی قاموس، ص ۴۸۲.
[۲] هندوستانی قاموس، ص ۴۸۳.
[۳] هندوستانی قاموس، ص ۵۶۸.
[۴] فرهنگ نظام ج ۲، ص ۸ دیباچه.
[۵] پښتو فقه اللغه ص ۲۶۱.

ډول او ښکلي توب سمه کړې ژبه چې کټ مټ په دغو معناوو (ښه آراسته کړې ښه ترتيب او تنظيم کړې بشپړه کړې) د ژبو پوهانو هم ضبط کړې ده[1].

او د کلمې له تحليل څخه په خپله د سنسکريت په نامه کې د پښتو ژبې اغېزه ښه ښکاري.

## دسيو DASYU:

هغه وخت چې آريايي اقوام د افغانستان له غرو او وروشوو څخه د هند خواوو ته شېوه شول او تر آباسين ورتېر شول، دوی د هندوستان له اصلي بومي خلکو سره مخامخ شول او له دغه خلکو سره يې جګړې او مقابلې وشوې. څو ورو ورو يې هغه خلك مات کړل او مځکې يې څنې ونيوې.

د هند بومي وګړي چې تور لينګي يې بولو، د تور پوست او پلنو پزو خاوندان وو، دغه خلك پخوانو آريايانو دسيو DASYU بلل، چې معنا يې دښمن، ميرڅمن بې دين ده.

دا کلمه په هند کې د آرين يعنې نجيب او شريف په مقابل کې استعمالېده، آرين چې غنم رنګي انسانان وو، د (شريف) په نامه يې ځانونه ستايل او د هند تور لېنګيان يې (دسيو) يعنې دښمنان او بد خلك او بې شرفه ګڼل. د ويدي عصر شاعرانو پيت پزي او تور پوستي بللي دي او دغه اقوام اوس په هند کې (دراوېډي) بولي.

په ريګويدا کې د آريايانو او دسيو د جګړو ډېر تفصيلات راغي او هر کله دوی له خپلو ارباب انواعو څخه خپل بری پردسيو باندې غوارې. اندراچي د جنګ رب النوع دی، هر کله

[1] هندوستانی قاموس ص ۴۸۰.

د دسیو سره جګړې کوي[1]. تر ویدا وروسته، د ایران د داریوش په ډبرلیك کې هم د آریایي اقوامو په مقال کې د دوی د مستملکاتو خلك په دې نامه بلل شوي دي او وروسته په هند کې ددې کلمې معنا لږ تغییر خوړلی (داس) تش د غلام او مریي او جوړې په معناوو پاتې شوی دی[2].

ګیګر الماني وايي چې په اوستا کې دانو هغه داسه یا د ریك ویدا (دسو) او وروستني (داس) دی چې د آریایانو دښمنانو او رقباوو، انوچي په ۱۳ یشت، ۳۷_۳۸ فقره او په (۵) یشت ۷۳_۷۴ فقره کې راغلي دي. د ارباب انواعو دښمن او اندرايي سخت مخالف دی، د ګراسمن په ډکشنرۍ کې هم (دانو) او (داسه) دواړه له یوې ریښې څخه راوتلي نومونه دي[3].

د اوستا په ځینو برخو کې (دژ) یا (دش) DUSH عموماً د بد او بابېز په معناوو، چې د ډېرو کلماتو په سر پورې دا کلمه نښته؛ د خورده اوستا په اورمزدیشت کې (دوش مینو) لیدل کېږي[4]، چې دغه اوسنۍ د پارسي ژبې (دشمن) هم له هغې زړې کلمې څخه جوړ شوي دي. تر پهلوي ژبې دمخه چې کمه ژبه ویل کېده په هغې کې (د شمې) (د) دشمن او معاند او ضد په معناوو[5] دغه (دش) د ډېرو پارسو کلماتو په سر کې راځي؛ لکه دشمن، دشنام، دشوار، دژخیم، دوزخ او دزد.

له دغو ټولو مطالعاتو څخه ښکاره شوه، چې د ویدا دسیو،

---

[1] کېمبرج هیستري آف انډیا ج ۱، ص ۸۵؛ تاریخ افغانستان ج ۱، ص ۱۶۸.

[2] ویدك انډیا ص ۲۱۸.

[3] د خاوري ایرانیانو تمدن ص ۱۰۳ ح.

[4] د خورده اوستا فرهنګ ص ۴۹۰.

[5] دساتیر اسماني، ص ۲۴۵.

داس د اوستا (دانو) او (دش، مينو) او بيا د پهلوي د شمېر له يوې ريښې څخه دي او په سنسکريت کې (دش) کټ مټ هغه (داس) دی چې د مريي او غلام او کښته په معناوو او (داش) هم دغسې دی[1].

اوس چې سړی ګوري د سنسکريت (دش) يا (دس) هغه د اوستا (دش) ګرد سره يو شی دي او په پښتو کې هم دا ټول موجود دي داسې: د سين ابدال په شين خو په خپله دغو کلمو کې شته او (ش) هم هر کله په (ښ) اوښتلای شي؛ نو په پښتو کې طبعاً (دښ) کېږي. يو (ن) د پښتو د نسبت له اداتو څخه پورې ونښلوي، (دښن) به شي؛ لکه: پم او پمن، خيره، خيرن، پخه او پخن او نور. نو چې (دښ) د بد او يا بېز او ضد په معناوو (دشمن) هم دغو صفاتو ته منسوب کېږي او د (ن) د ادات له خواصو څخه داده چې اکثر د عيوبو لپاره راځي.

د (دښن) کلمه په پښتو کې خورا عامه ده او په پخواني ادب کې ښه ځای لري، جمع يې (دښنه) او (دښنې) هم د دشمنو په معنا مستعملې کلمې دي.

مثلاً سليمان ماکو وايي:

پر دشـــن يې يرغل وکاوه
سره ومــــرورل يې دښنه[2].

ملکيار وايي:

تورې تــــېرې کړۀ
دښـــــن مو پرې کړۀ

---

[1] هندوستانی ډکشنري ص ۳۷۰_۳۸۸.
[2] پښتانه شعراء ج ۱.

بابا هوتك وايي:

زلمو پر ننګ ځانونه مړه کړئ
دښـــن په غیشو مو پښیه کړئ[1]

امیر نصرلودي د پښتو خورا پخوانی شاعر وايي:

زما دښنه هسې تورا کړي
یا توراني دښن چې وايي[2]

عبدالقادر خان خټك وايي:

خو عارف د چا په ښو شکر ګزار دی
نه په بدو د دښـــــــــنه لري ګیله

## څلور ډلې CASTE:



هغـه وخـت چـې آریـایي اقـوام پـه افغانسـتان کـې اوسېدل او د بـاختر او هنـدوکش پـه ورشـوګانو کـې پراتـه وو، دوی ځانتـه ځیـنې اداري او ملـي تشـکیلات درلـودل، پـه مسـاوات یـې ژونـدون کـاوه؛ مګـر چـې دوی تـر انـدوس (اباسـین) ورواوښتـل او پـه هنـد کـې خپـاره شـول، هنـد تـر دوی پخـوا د تـور لېنګـي اقوامـو او تـور پوسـتانو تـك و، لـه هغـو سـره د دوی جګـړې وې او پـه خپلـه آریایـانو ځانونـه سـپین پوسـتي بلـل. پـه ریګویـدا کـې دا فـرق او امتیـاز ذکـر شـوی او لـه تـورو دسـیو سـره د سـپینو آریایـانو مقابلـه داسې شوې ده:

((د بـاد رب النـوع، (مـاروت) پـر دسـیوګانو بانـدې حملـه وکـړه،

[1] پټه خزانه ص ۱۱.
[2] پټه خزانه ص ۷۱.

دوی یې د تالندې په غړو غړو تباه کړل، د دوی ورشوګانې او پټي یې سپین پوستو دوستانو ته ورووېشل[1].

د دسیو او آرین ددغه تصادم او جګړو نتیجه وه، چې د هند خلك په رنګ او پوست او کړو وړو کې سره بېل شول او پخواني نا آرین اقوام د تور لېنګي او پیت پزي (یا پسه پزي) او بې پزې په صفاتو په ویدو کې ذکر شول او آریایانو دوی نجس او مردار خواره ګڼل[2].

هغه وخت چې آریایان د هند په مځکو کې خپاره او غالب او بریالي شول؛ نو دوی د هند خلك پر څلورو ډلو ووېشل؛ په خپله آرین درې ډلې وو، څلورمه ډله دسیوګان او تور لېنګیان وو، چې دمخه ذکر شول.

دې وېش ته په انګرېزي کست CASTE وایي، چې له پرتګالي کاستا یعنې نژاد او نسل څخه یې اخیستی دی؛ مګر په سنسکریت کې یې ورڼه VARNA یعنې رنګ COLOUR بولي؛ ځکه چې دا تقسیم هم پر تور او سپین رنګ باندې شوی و[3] او دا کلمه اوس په پښتو کې (بڼه) ده، (ب) زورکی او (ڼ) زور لري.

د رنګ او نسل وېش لومړی په آریایانو کې نه و، د ویدا د دورې په اواخرو کې پیدا شوی دی؛ ځکه چې په لومړیو ویدو کې ددې وېش کوم ذکر نشته او نه یې نومونه راغلي دي؛ فقط د لسم وید په (۹۰) برخه کې چې پوروش PURUSH یې بولي، په افسانوي خبر ددغو څلورو ډلو د پیدا کېدو ډول ښودل شوی

[1] ویدك اندیا ص ۲۱۷.
[2] وید ـ پوروش سکته ۱۰ـ۹۰.
[3] ریګویدا، ج ۱ ص ۲۲.

دی، مثلاً: ((چې د پوروش بدن یې تقسیم کړ، برهمن یې له خولې څخه؛ راجنیه یې له متهو څخه، ویش یې له ورنو څخه او شودر یې له پښو څخه پیدا شول))[1].

په ویدا کې فقط دغونې د څلورو طبقو ذکر راغلی دی. زیاتي څه نشته؛ خو د هند آریایان ددغو څلور ډلو امتیاز هسې وایي چې: خوله پر ټولو اعضاوو باندې شرف او لوړتیا لري؛ نو برهمن چې له خولې څخه پیدا شوی دی، کار یې ښوونه او پرمان روایي ده. هغه څوك چې له بازو او متهه پیدا شوي دي کار یې جګړه او ساتنه او قوت دی، کم خلك چې له ورنو څخه راوتلي دي، د دوی کار دادی، چې د تمدن نظام ټینګ کړي او ودانې او کښت او زراعت د دوی وظیفه ده؛ مګر هغه چې له پښو څخه پیدا شوي، کار یې فقط چوپړ وهل او خدمت کول دي[2].



د څلورو فرقو د پیدا کېدو دغه افسانوي رنګ تر اوسه هم په هند کې موجود دی: لومړی دله ځانونه ډېر شریف ګڼي او دا درې ډلې له شودر (دسیو) سره کورټ مخالطت نه کوي اچهوت یعنې نامملوس یې بولي.

ددغو څلورو فرقو له نورو خصوصیاتو سره دلته زموږ کار نشته، فقط دلته دا څلور نومونه چې د آریایانو له زاړه ژوندون سره اړه لري، د پښتو له پلوه تحلیل کوو: ځکه چې ځینې پوهان وایي، چې دا څلور سره کلمې پښتو دي او ریښې یې په دغه ژبه کې شته لاندې یې شرح راځي:

---

[1] ویدك انډیا ص ۲۲.

[2] کېمبرج هیسټري ص ۹۲؛ د ویدو تعلیم ص ۱۲۲.

## (ا) برهمن BRAHMANA:

لومړی ډله ده، چې روحاني او مقدسه ګڼل کېږي او تر ټولو ډلو لوړه او پاکه ده. د دوی وظایف په جامعه کې مقدس او روحاني دي. د هند مشهور مقنن منو MANU د برهمنانو وظایف هسې ټاکي: خدای برهمنانو ته دغه وظایف مقرر کړي دي: د ویدو ویل او په نورو لوستل، ځان او نورو ته قرباني کول، خیرات ټولول او ورکول... برهمن چې وزېږي، د ټولو مخلوقاتو خاوند وي او په دنیا کې تر ټولو معزز وي. د دین د خزانو ساتونکي هم دی وي، برهمن د خپل حسب او نسب په لوړتیا د هر څه مستحق دی، که دی د لسو کالو وي او کشتري د سلو کالو، بیا هم پر کشتري دده درناوی او عزت لازم دی[1].

پوهان د برهمن ترجمه په (دعا کوونکي یا نمانځونکي کوي[2] PRIEST) او دا کلمه له (برمهه) څخه جوړه شوې ګڼي. (برمهه) د دعا او مقدسو سندرو په معناوو، چې وروسته یې تحول وکړ او یو مجرد جوهر او اصلي موجود شو، چې هر ځای او په هر شي کې شته او بیا نو د یوه بېل رب النوع په مفهوم وپېژاند شو[3].

په اوسنۍ پښتو کې کټ مټ دغه تاریخي آریایي کلمه شته برم BRAM عظمت جلال، لوړتیا، حشمت ته وایي. د برم خاوند یعنې د عظمت او لوړتیا خاوند له برمه لوېږي، یعنې له جلاله او عظمته پرېوځي، پلانی په برم کې دی، یعنې د حشمت او جلال په حالت کې دی، خوشال خان وایي:

[1] منو شاستر (۱) برخه، ۸۸_ ۹۱ فقره، ص ۴۶_ ۴۷.
[2] کېمبرج هیستري، ص ۹۲.
[3] ویدك انډیا ص ۹۹_ ۲۵۵.

که هندو که مسلمان د پټ په کار کې
چې مې وليدل د هـــــېچا نشته برم

دلته برم BRAM د آرزم او نرم او چرم په قافيه کې راغلی دی داسې معلومېږي چې د ختکو محاوره دغسې وي.

د برم اوسنی معاني هغه تاريخي مفهوم ته نږدې دي، لغات او کلمات د خپل تحول په دوره کې دغسې تغييرونه کوي، مثلاً (برمه) ډېر پخوا په ويدي عصر کې د نمانځنې، دعا او ستاينې معاني درلودل، وروسته يو مجرد د تخليق جوهر او بيا د لوی رب النوع نوم شو، په دغو ټولو معناوو کې د جلال، عظمت، قوت او قدرت معاني پراته دي چې په پښتو کې هم په دغو معناوو مستعمل وو.

له (برمه) څخه برهمن داسې جوړ شو: يو د نسبت ادات (من) چې اوس هم په پښتو کې شته پای ته ور زيات شو، (برمهمن) شو، يعنې جلال او عظمت او لوړتيا خاوند. په کثرت استعمال (هـ) تر (ميم) دمخه شوه، دوه ميمه سره يو ځای شوه، په ټولو ژبو کې چې دوه حرفه يو ځای شي، که يې تلفظ درونډ وي، يو غورځوي؛ لکه هـ ډېره چې هـ ډېره شوې ده. دلته هم يو ميم ولاړ. برهمن پاتې شو، اما د (من) د نسبتي ادات نور مثالونه زموږ په ژبه کې دادي خوږ ـ خوږمن، کړ ـ کړمن، درد ـ دردمن.

د برهمن معنا که دغه د پښتو (برم من) يعنې د جلال او عظمت خاوند واخلو، ددغې آريايي ډلې له مقامه سره هم مطابقت لري؛ ځکه چې دوی يقيناً د لوړتيا خاوند وو او تر ټولو مخلوقاتو غوره او لوړ بلل کېده. د بشر خورا ممتازه طبقه هم دوی وو او نور ټول طبقات يې هم خادمان ګڼل کېدل[1].

---

[1] تمدن هند ص ۶۱۵.

## ۲) کشتري KSHATRI:

دوهمه طبقه ده، چې په ویدا کې راجنیه RAJANYA او په وروستو کتابو کې کشتري او بیا چهتري ذکر شوې ده، په خپله لومړی کلمه د شهزاده او سرباز او جنګي معنا لري[۱].

په منو شاستر کې د شکتري KSHATRI په نامه یاده شوې ده او دغه لوی مقنن یې وظایف هم تعیین کړي دي. کشتري ته حکم وشو چې د خلکو حفاظت وکړي، انعام او بخشش ورکړي، قرباني وکړي، وید ولولي، له شهرت پرستی ځخه ځان وساتي. دا طبقه تر برهمن وروسته، دوهمه مقتدره ډله ده، چې پاچاهان او مشران له دوی ځخه وو. اهل اداره او د سیاست خاوندان هم دوی وو، عسکري امورو، جنګي چارو په دوی اړه درلوده. دوی د برهمنانو د برم او عزت وسیله وو او تر هغو وروسته یې غټ غټ امتیازات درلودل. کشتري باید تل په جنګ کې ونه تښتي او خپل رعایا وساتي او د برهمنانو احترام وکړي، دغه درې خبرې د کشتري لپاره ضروري وې[۲].

علامه البیروني وایي، چې: د کشتر لپاره برم او بړبست ضروري دی، خلك باید له ده ځخه وویرېږي، ده ته ښایي بهادر، غښتلی، حوصله لرونکی، متین، ژبور، ښندونکی وي او لوړ لوړ کارونه په سواني اجرا کړي[۳].

په دې ډول د کشتري وظایف اداري او عسکر وو او نوم یې هم کټ مټ دغه مقصد ښه راښیي او په پښتو کې تینګې ریښې لري؛ بلکې سوچه پښتو دی: کشتري په پښتو کې له دوو کلمو

---

[۱] تمدن هند ص ۲۱۵؛ ویدك انډیا، ص ۲۰۲.

[۲] دغه کتابونه.

[۳] کتاب الهند، ص ۱۳۰، ج ۱.

ځنې جوړېږي، لومړی جز يې کش دی، چې په پښتو (کښ) ورته وايو، کښل يعنې (کشيدن، آختن) هم له دغې ريښې ځنې متداول ژوندی مصدر دی. د (کښ) په الحاق پښتو ډېرې کلمې لري؛ لکه زيارکښ، امبارکښ، ګورکښ او کښل د آختن په معنا له تورې او تېغ سره راځي، مثلاً توره کښل، چاړه کښل.

خوشال وايي:

په درست جهان به نه وي يو دما غوندې رسوا بل
ورځــــــم توره وکښلی چې مين واورم په تا بل

دوهم جز يې (تري) دی چې مفرد يې (تره) ده؛ د لومړي حرف په ضمه. اوس موږ د (ت) د ضمې د ښکاره کولو لپاره مفرد (توره) او جمع يې (تورې) ليکو؛ خو تلفظ يې فقط د (ت) په ضمه دی او پخوانی املا يې هم (تره او ترې) ده. پخوا پښتو د عسکر د نامه لپاره له دغو دوو کلمو ځنې کار اخيست، او لښکر او سپاهيان يې د (کښتري) په اوسنی املا (کښتوري) بلل، يعنې تورې کښلي (شمشېر اختګان). دا کلمه د الفاظو په اړولو او مقلوب کولو (تورکښ) د عسکريت په معنا هم مستعمله وه او کټ مټ د هغه (کښتوري) مقلوبه ده.

د پښتو يو ډېر پخوانی ادبي اثر (خير البيان) دی چې د زرم هجري کال په حدودو کې د پښتنانه د فکر او فلسفې يو نابغه بايزيد روښان ليکلی دی او قلمي نسخه يې مشهور مستشرق (سر دينس راس) پيدا کړې او ناروېژي خاورشناس مارګن ستيرن يوه مقاله ددغه کتاب په باب کې کښلې وه، په دغه مقاله کې له خيرالبيان ځنې څو مخه په لاتيني حروفو چاپ شوي دي، چې په يوه جمله کې دغه د (تورکښ) کلمه هم راغلې او

هغه داده: مشغول دي ډېر ادمیان په کرلو، په بازرګانۍ باندې یا په پوند ګلی یا په تورکښ باندې ځینې په نور نور چارې مشغولي کا ادمیان[1].

دلته د خیرالبیان لیکوال د انسانانو چارې او وظیفې (زراعت؛ تجارت او عسکریت) ښیي او عسکریت (تورکښ) بولي او داسې ښکاري چې دا کلمه تر زرم هجري کاله هم مستعمله وه او زوړ شکل يې هغه تاریخي کشتري) دی.

## (۳) ویسیا *VAICYA*:

دا نوم په ویدا کې ویسیا او په سنسکریت کې ویس VAIS ویسه VYASY ویشیا VAISHYA راغلی دی او پس له کشتري دریمه طبقه ده[2].

منو مقنن وایي: ویسیا باید غلې وساتي، انعام ورکړي، قرباني ورکړي، ویدا ولولي، تجارت وکړي، پور ورکړي، کرهڼه او زراعت هم دده کار دی[3].

ددې طبقې وظیفه په آریایانو کې تجارت او زراعت او نور مدني او عمراني کارونه وو، غلې او ګلې به دوی ساتلې، د کرهڼې اصول او د تخمو پېژندنه د ښې مځکې او بدې بېلونه د اجرت او مزد اندازه، د رانیولو او خرڅولو دودونه، اوزان او اکیال پېژندل دا ټول د ویسیا کار و. پر ده لازمه وه چې د جواهراتو او غلو او فلزاتو او کالو او عطریاتو او نورو مسالو

---

[1] د هند د آثار عتیقه مجله، ج ۱۱ ص/ ۵۷. خیرالبیان په ۱۹۶۷م کال په پېښور کې چاپ شو او اوس د ادبیاتو پوهنځي په عکس توګه چاپ کړ.

[2] هندوستانی قاموس، ص ۷۷۹.

[3] منو شاستر.

قيمت به ښه ورمعلوم و. دغسې د ويسيا بايد څو ژبې زده وي او په خورا ايمانداری او ويسا او اعتماد او زيار خپل کار وکړي، دا طبقه له محصولاتو او جنګي خدماتو څخه بلکل معاف وه، ټول عمراني خدمات دوی ته سپارل شوي وو[1].

علامه البيروني دا نوم (بېش) راوړی، چې د (وېش) معرب دی او وظايف يې هم کټ مټ دغسې ښيي؛ لکه لوړ چې ذکر شول[2]. او له دغو ټولو څخه سړي ته ښه معلومېږي چې د ويسيا وظيفې او کارونه ټول داسې وو، چې په اعتماد او اعتبار او رښتيا يې اړه درلوده. په خپله منو مقنن د دوی په اجتماعي وظايفو کې اعتماد او باور او ويسا لوی او مهم شرط ګڼي[3] او که سړی ورته ځير شي هم دغه مهم وظايف، يعنې تجارت او زراعت او مالداري بې له (ويسا) نه کېږي او د ټولو اقتصادي کار و آره او سته هم پر اعتماد او ويسا ولاړه ده.

وګورئ کټ مټ ددغې طبقې نوم هم (ويسا) دی او هېڅ لېرې نه ده، چې د پښتو (ويسا) او دغه (ويسيا) له يوې ريښې څخه وي.

(ويسَا) په پښتو کې ډېره مشهوره کلمه ده، معنا يې اعتماد، باور، اعتبار ده.

خوشال خان وايي:

په دا ساه نشته ويسا
هر دم ته وايه الله

يعنې په نفس اعتبار او اعتماد نشته.

---

[1] تمدن هند، ص ۲۳۴_۲۳۲.
[2] کتاب الهند، ص ۱۳۰، ج ۶.
[3] منو شاستر، ۹ باب ص ۳۲۶_۳۳۳.

بل ځای وایي:

هر چې کتګان دي په صوبه کې کــــــد خدا
ځوك په بند بندي دي ځوك لاګرځي ناویسا

یعنې بې اعتبار او بې اعتماد ګرځي.

ښایي چې اصلي ویدي نوم لـه ویسا سره مشترك (ویسیا) و، وروسته په دې نامـه کې تغیر راغلی. ویشي، ویش شو، په عبري (بیش) البیرونـي راوړی دی (ویش او بیش) د عوامـو پـه معنـا هـم پـه پښتـو کې مسـتعمل و؛ ځکـه چـې دا دریمـه طبقـه عـوام وو او د برهمن او کشتري له خواصو څخه ګڼل کېده[1].

خوشال خان وایي:

زه خـــوشال دې د بدۍ نېکۍ ګواهي لم
د ښایست مخی دې نشته په خوی ویښې

د بیت اخرۍ کلمـه داسې ده، (ویښ یې) یعنې پـه ښایست کې لـه خواصـو او پـه خـوی لـه عوامـو څخـه یـې. لـه دې څخـه معلومېـږي؛ لکـه ویسـا چـې پـه پښتـو ادب کـې مسـتعمله او ژوندۍ کلمه وه، وروستی (ویش) هم مستعمل و!

## ۴) شودر *SHUDRA*:

څلرمـه ډلـه او تـر ټولـو کښتـه او ناملموسـه ګڼلـه کېـږي؛ لکـه چـې دمخـه وویـل شـول دا ډلـه د هنـد بـومي تـور لېنګیـان وو چـې

---

[1] پـه خپلـه ویسـا او ویـش هـم ځینـو پوهـانو د عـامي او معمـولي سـړي پـه معنـا راوړی دی. کیـت دا ډنبـره یونیورسـتۍ پروفیسـور یـې معنـا Commoner یعنې معمـولي او د عوامـو ډلـې سـړی لیکـي (کېمبرج هیستري، ص ۹۲) لـه دغـه څخـه هـم د پښتـو ژبـې د ادبـي اسـتعمال ورنـژدې والـی ښکـاره کېـږي، چې د خوشحال خان په بیت کې کټ مټ دغه معنا ورکوي.

دسیو (دښمن) بلل کېدل.

منو مقنن وایي چې: شودر بل هېڅ کار نه لري، بې له دې چې د نورو خدمت وکړي او دوی راضي ولري[1]. شودر غیر آریایي خلك وو؛ نو ځکه یې دوی ذلیل او نا نجیب ګڼل او ټولې کښتې پېشې او کارونه دوی ته محول وو، مثلاً دوبي ګري، موچي ګري، بازي ګري، مانو توب، ماهي ګیري، د وحشي مرغانو ښکار، ټوکرۍ جوړول، چنډالي، ډمتوب او نور[2]. شودر، سودر او شدر ټول ددې کلمې مختلف اقسام او اشکال دي او د شودر معنا هم (کښته، ذلیل نانجیب) ده[3]، چې درو نورو ډلو دغه خلك له ځانو سره نه ګډول او دوی یې بې شرفه او ډېر کښته خلك ګڼل.

دا کلمه د پښتو (سوډر) سره هم په معنا، هم په لفظ کې نژدې والی لري، په پښتو سوډر (نالایق، کښته بېعقل، بې تهذیب، ناپوه) ته وایي، مثلاً پلانی خوشې سوډر سړی دی، یعني ناپوه او نالایق دی.

دا کلمه تر اوسه هم ژوندۍ ده او کله یې خلك د سرکوزي او خنزیر په معنا مستعملوي؛ مګر نه ده معلومه چې حقیقت کوم دی او مجاز کوم.

ځینې پوهان وایي: (شودر) اصلاً د یوې سیمې نوم و، چې اباسین ته نژدې وه او په (وشنو پران) نومې هندي زاړه کتاب کې شودر او ابهیر یو ځای ګڼل شوي دي، یوناني مؤرخ مګستهینز دا خلك (تور مخي) بولي او تر سکندر دمخه د هخامنشیانو

[1] منو شاستر ۱ برخه، ۹۱ فقره.
[2] کتاب الهند، ج ۱، ص ۱۲۸.
[3] ویدو تعلیم، ص ۱۲۸.

کومکیان وو[۱].

ښایي چې شودر لومړی د دغه ځای نوم و؛ ځکه چې آریایي اقوام تر اباسین پورې خوا لومړی له دغو اقوامو سره مخامخ شول؛ نو یې دوی (داسیو) او کښته او ناپاك وګڼل او دا نوم یې د هند پر ټولو بومي تورو اقوامو باندې کښېښو.

په پښتو کې چې د (سوډر) لپاره کوم بد مفهوم پاتې دی، دا هم د هغه زاړه آریایي فکر نتیجه ده او دا دوې کلمې؛ لکه لفظاً چې سره نښتې او نژدې دي، معنا یې هم سره نښلوي.

## ورنه او د وظیفو وېش:

د مخه مو ولوستل چې د څلورو ډلو د امتیاز لوی عامل د رنګ سپین والی او تور والی و، (شودر) تور مخي او تور لېنګي خلك وو، اما درې نورې ډلې سپین پوستي آریایي وو، ریګویدا هم د سیوګان په تور مخو سره ستایي[۲].

دغه امتیاز او په انګلیسي اصطلاح کست CASTE ته په ویدي ژبه ورنه ویل شوي دي، یعنې رنګ او جوله او بڼه.

بڼه تر اوسه په پښتو کې د مخ او څېرې رنګ ته وایي: مثلاً بڼه یې الوتې ده، یعنې د مخ رنګ یې الوتی دی. یا پلانی په بله بڼه راغی، یعنې په بل رنګ راغی.

د (و) او (ب) ابدال عمومي دی، مثلاً کابل، زابل، زاول، شوربا، ښوروا؛ نو په دغه قاعده (ورڼه) لومړی پلا (برڼه) شو؛ ځکه چې د (ر، ڼ) تلفظ مشکل و؛ نو (ر) حذف شوه (بڼه) پاتې شوه.

---

[۱] د ویدو تعلیم، ص ۱۲۸.

[۲] ریګویدا لومړی برخه، ۱ باب، ۱۸ فقره، دوهمه برخه ۲۰ باب، ۷ فقره.

له دغې مطالعې څخه تاسې ته ښه ښکاره کېږي، چې لکه د څلورو ډلو نومونه، چې پښتو دي، دغسې هم د ډلو د جوړېدلو اساسي نوم هم پښتو دی او هغه ویدي کلمه او هم په پښتو کې شته، چې شکل یې (ېنه) دی یعنې رنګ COLOUR. بل اکثر محققین دې خبرې ته ټینګ دي چې دغه د څلورو ډلو وېش د آریایانو د هند تر هجرت دمخه نه و، دوی په خپل اصلي هېواد کې د مخنۍ درې ډلې درلودې، څلورمه ډله چې (شودر) ده، په هند کې پیدا شوه.

ددې خبرې بل ټینګ دلیل دا هم دی چې د باختر (بخدي آریایانو هم درې ډلې دي) او په اوستا کې یې نومونه داسې ذکر شوي دي. خوتو KHVAETAV ورزن VEREZENA؛ آییریامن AIRYAMAN[1] ددغو درو اوستایي ډلو په مقابل کې د هند (برهمن کشتري، ویسا) موجود دي[2] او دا خبره څنې ښکاري، چې آریایانو درې ډلې درلودې، روحاني ډله، عسکري ډله او اقتصادي ډله.

دا عنعنه په پښتنو کې کټ مټ موجوده ده، دوی هم د خپلو اقوامو وظایف دغسې وېشلي دي، د پښتنو یوه خورا قدیمه عنعنه داده: ((وایي چې د مېړني باد دروالوت، د غرغښت پر ژبه ونښت؛ نو تلقین او روحاني چارې او وینا او علم او ادب د غرغښت کار دی، دا باد د (بېټني) پر مټ (بازو) ونښت، توره او عسکریت دده کار دی؛ مګر د (ځړبن) پر لمن ونښت، دوی تل د لوی لمنې خاوندان دي، سیاسي کارونه او اداره او مدنیت پالنه او ودانې او زراعت اوتجارت دا ټول د ځړبنو وظایف دي)).

---

[1] ۳۲ یسنا ۱ بند؛ ۳۳ یسنا ۳ بند، ۴۶ یسنا ۱ بند.

[2] ګاتهـ، ص ۸۷.

دا عنعنه کټ مټ هغه زړه آریایي ریښه او اساس لري او سړي ویلای شي چې له ویدا او اوستا دواړو سره مشترکه ده؛ نو لکه نمونه او کلمات چې پښتو ول دغسې اصلي وېش هم دغسې عنعنې ته ورته دی.

## من MAN:

دا کلمه په سنسکریت کې زړه، ارادې، روح ته وایي[1] او علامه ابو ریحان البیروني د عقلي او حسي موجوداتو په شرح کې هسې بیان کوي چې: ((تر پینځو حواسو وروسته من (اراده) ده ـ چې له حواسو څخه ډول ډول کارونه اخلي؛ په حیوان کې د ارادې محل زړه دی او په دغه مناسبت خلك اراده (من) بولي چې اصلاً من زړه ته وایي))[2] دا کلمه په پخوانی پښتو کې کټ مټ په دغه معنا موجوده وه او داسې معلومېږي چې زموږ له هېواده هند ته تللې ده، یا به د زړه په معنا حقیقت وي ـ مجاز به یې اراده وي ـ یا به اراده مجازاً مشهوره شوې وي.

د پښتو یو خورا پخوانی شعر چې امیر کروړ د جهان پهلوان د غور پاچا د (۱۳۹هـ) په شاوخوا کې ویلی دی، دا کلمه لري دا امیر وایي:

غشي د من مې خي برېښنا پو میرخه منو باندې[3]

دلته هم ښکاري چې (من) د ارادې په معنا دی، یعنې د ارادې غشی مې؛ لکه برېښنا پر دښمنانو باندې خي.

[1] هندوستانی قاموس، ص ۷۰۳.
[2] کتاب الهند، ص ۴۵، ج ۱.
[3] پټه خزانه، ص ۳۳.

## ستهان STHAN:

ستهان په سنسکریت کې د ظرف او ځای، مرکز، موقف، سرزمین په معناوو دی[1] او دا کلمه په نورو آریایي ژبو کې؛ لکه پارسو د (ستان) په ډول تر اوسه هم مستعمله ده: مثلاً شارستان ـ گلستان ـ دبستان. داسې معلومېږي چې د (ستهان) کلمه پخوانۍ آریایي کلمه وي ـ ځکه چې آریایان په هند کې تیت شول؛ دا کلمه یې په دغو معناوو درلوده. دوی (دیوستهان) DEVA- STHAN د عبادت ځای ته ویل[2] او خپل گرد مملکت یې هم لومړی دیوستهان باله ـ یعنې د عبادت او نېکیو ځای چې وروسته یې ((هندوستان)) وباله، یعنې د هندوانو ځای او هېواد[3] دا کلمه کټ مټ په پارسو کې هم پخوا مستعمله وه او مفهوم یې هم تقریباً دغه و، مثلاً فخر مدبر مبارك شاه د غزنوي عصر مؤرخ لیکي: ((به ستهان لوهور درمیان شدند))[4]. دا کلمه په پخوانۍ پښتو کې هم مستعمله وه او هم له دغه جهته ویلای شو چې یوه آریایي کلمه ده چې هم دلې په خپله هېواد کې پاته او هم شاوخوا به په سنسکریت او پارسو کې رواج شوې وه. ښکارندوی د پښتو د غوري دورې یو شاعر وایي:

د اسلام د دین شهاب د نړۍ لمر دی
تورستهان یې کړ رڼا په جهادونه[5]




[1] هندوستانی قاموس ـ ص ۴۵۸.
[2] هندوستانی قاموس، ص ۴۱۰.
[3] کتاب العلم ـ ج ۱، ص ۵۴.
[4] اداب الحرب ص، ۳۹.
[5] پټه خزانه ـ ص ۵۳.

دغه بیت له یوې قصیدې څخه دی چې ښکارندوی د سلطان شهاب الدین غوري په مدح کې ویلی ده ـ دی وایي چې سلطان شهاب الدین تورستهان یعنې ـ تور ـ مملکت (هند) په جهادو روښانه کړ. له دې بیته د کلمې پخوانی ژوند په پښتو کې ښکاري.

## تمزدک، مزدک، نمست، مزدا:

دا کلمات ټول آریایي دي، د هند او ایران په ژبو کې یې پخوانۍ ریښې شته او په پښتو کې هم دېرې کلمې شته، چې په دغه ریښه اړه لري.

لومړی به سنسکریت ته وګورو، نمست NAMASIT محترم، ستایل شو معزز، نمسیت NAMASYIT نمسیه NAMASYA د عزت او احترام خاوند، مجلل، مکرم[1] دا مواد چې په سنسکریت کې موجود دي، ریښه یې (ن، م، س، ت) ده، چې (ن) یې په نورو ژبو کې کله کله حذفېږي او (س) په (ز) بدلېږي او (ت) په (د)؛ خو په اصل کې (یې) د احترام، نیایش، لمانځلو او تکریم معاني پراته دي، په اوستا کې هم دا کلمه موقع لري.
مزدا MAZDAH په اوستا کې د لوی خدای نوم دی چې (اهورا مزدا) یا (اورمزد) یې هم باله. دا خدای دوی یو مبدا واحد و مجرد ګاڼه، چې ټول مخلوقات یې پیدا کړي دي، دلته یې زموږ (مزدا یا مزد) یعنې دوهم جزو، ددې بحث لپاره په کار دی چې هغه (م، ز، د) حروف لري او سنسکریت (م، س، ت) سره د یوه جنسه دي او له یوه مخرجه.

[1] هندوستاني قاموس، ص ۷۴۹.

په (مزدا) کې هم د تجليل او تکريم معاني پراته دي؛ ځکه چې خدای تعالی جليل دی، لوی دی او د تجليل او پرستش وړ هم فقط دی دی!

په پښتو او پاړسو کې له دغې مادې څخه نماز او نمونځ، نمنځل او نزدك او مزګت جوړ شوي دي، چې شرح يې لاندې راځي:

## د پاړسو نماز او مزګت:

نماز اوس فقط د عربي صلواة په معنی دی. چې يو مخصوص عبادت دی؛ مګر په پخوانی پاړسو کې دا کلمه د نيايش، خضوع، تکريم، تجليل په معناوو هم وه. عبدالحی ګرديزی ليکي: ((چون امير را بديدند، همه نماز بردند، و خلافت کردند))[1].

فردوسي وايي:

زمين را ببوسيد و بردش نماز
همی بود پيشش زمانی دراز !

اما مزګت په پاړسو کې د مسجد په معنا و، چې دغه هم د تجليل او نيايش ځای دی، زموږ دوطن يو جغرافيا ليکونکی جوزجانی په (۳۷۲هـ) کې مسجد جامع ((دګت ادينه)) ليکي مثلاً د هرات د لوی مسجد په خصوص کې وايي:

((و مزګت جامع اين شهر آبادان ترمزګتها است))[2].

ابو علی محمد بلعمي د سامانيو مشهور وزير متوفي (۳۶۳هـ) د تاريخ طبري په ترجمه کې د هر ځله د مسجد پر ځای

[1] زين الاخبار، ص ۷۵.
[2] حدود العالم، ص ۵۷.

مزګټ لیکلي مثلاً: ((و مریم همچنان اندر آن حجرهٔ مزګت بدست زکریا علیه السلام بوده)) یا: ((روز ادینه به مزګت جامع نماز کرد))[1].

په دې ډول د پارسو نماز او مزګت هم د هغې ریښې څخه دي، چې سنسکریت (نمست) او د اوستا (مزد) څنې جوړ شوي وو او ددغو کلماتو معنوي ارتباط هم د تجلیل او نیایش او نمځنې په مفهوم کې ښکاره دي، د پښتو ژبې مونځ، نمونځ، لمونځ، (نماز) مزدك، نمزدك، (مسجد) لمانځل، نمانځل، لمانځنه، نمنځنه، (نیایش، عبادت، تکریم) او نمنځن (با ناز و نیایش و مهر) نمنځلی (ستوده، نیایش شده) ټول له هغې ریښې څخه دی او (ن، م، ځ) یې هغه پخواني حروف دي چې هم په سنسکریت او هم په اوستا کې وو او هم په پارسو کې شته. (ځ، ز، س) درې سره د یوې کورنۍ او د یوه مخرج حروف دي، ادبي اسناد یې دادي:

دوست محمد کاکړ وایي:

شپې یې روڼې په لمانځو وې
په ژړا او پــــــه نارو وې
چې به کښېووت په لمانځنه
یا به کښېووت په ستاینه

یا:

یوه ورځ جـــــهاد افضل
تر کلو کلو لـــــمانځل[2]

---

[1] تاریخ طبري، ص ۲۲۸_۷۲۸.
[2] پټه خزانه، ص ۷۹.

خوشال خان وایي:

پېرزوینه ښه سلوك نمنځنه عدل
که دې دا خویونه شته څه غواړې نور؟

عبدالقادر خان وایي:

سر و مال ښندل زینت د عاشقانو
عنایت، مهر، نمنځنه، زینت، ستاسې

دلته د (عبادت، مهر، نوازس) معاني لري.

بل ځای خوشال خان نمنځلي اونمونځ دواړه له یوې ریښې څخه په نژدو معناوو سره راوړي:

خدای هغه په دواړو کونو دي نمنځلي
چې په ورځ يې عدل و داد، په شپه نمنځونه

نمنځن هم له دغې ریښې څخه د (بامهر او با لطف او ښو) په معناوو دی.



عبدالقادر خان وایي:

که نمنځن ویل دې نه کېږي و ماته
کله کله راته کړه خبرې سپورې

په پښتوکې له دغې قدیمې ریښې څخه مزدك او نمزدك د مسجد او نیایش ګاه په معناوو هم شته تر اوسه شیراني او بابړ او د ناصرو کوچي قبایل مسجد (مزدك) بولي.

په زړو ادبیاتو کې دا کلمه نمزدك NMAZDAK ضبط شوې ده. ښکارندوی د غوري سلطان شهاب الدین په دعا کې وایي:

نوم دې تل وه پر دریځ په نمزدکونه[1].

یعنې نوم دې تل د مسجدو پر منابرو یادېږه. دا نمزدك او اوسنی مزدك هغه د پارسو پخواني (مزګت) ته ډېر نژدې دي او

[1] پټه خزانه، ص ۵۷.

لکه چې وویل شول ریښه یې هغه پخوانۍ آریایي ده، چې هم په سنسکریت، هم په اوستا کې او هم په پاړسو کې شته.

## ویاکرنه *VYAKARANA*:

دمخه تاسې ته د ویدا د ملحقاتو په بحث کې په شپږو ویدانګو کې ویاکرنه یعنې ګرامر او نحوه هم دروښودل شوه، دې علم په آریایانو کې ډېر اهمیت درلود د (۶۰۰م) په حدودو کې دا علم ښه تکمیل شو او د پاڼیني پر ویاکرنه باندې نورو پوهانو هم شروح ولیکل، مثلاً "پاتنجلي" خپل "بارتک" او "مهابهاشیه" کتب وکښل. شوپورما نومې عالم هم ((کانترو یا کرنه)) وکېښ چې د مبتدیانو لپاره و، تر ډېره عمره دا علم په هند کې مخ په لوړتیا و؛ بلکې چې پر دې اخر کتاب باندې اووه شرحې کښل شوې دي. هر څوک چې به پنډت کېده؛ نو ددې علم زده کړه ورته ضرور وه، پنډت، جیادتیه او بامن په (۶۶۲ع) د پاڼیني د کتاب شرحې لیکلې دي، چې ((کاشکا برتي)) نومېږي او وروسته هم ډېر کتب پر دغه علم منځ ته راغلي دي[1].

البیروني وايي، چې: (( بیا کرن د صحیح کلام او سمې وینا علم دی)). د اشتقاق ابحاث لري، د بلاغت اصول هم پکې بیانېږي. ددې علم مشهور کتابونه اته دي[2].

د سنسکریت په قاموس کې ویاکرن VYAKARAN د ګرامر په معنا او ویاکرني VYAKARANI د ګرامرست او د ګرامر پوهاند په مفهوم راغلی دی[3] دا کلمه دوه جزوه معلومېږي:

---

[1] د هندوستان تهذیب، ص ۹۸.

[2] کتاب الهند، ص ۷۸، ج ۱.

[3] هندوستانی قاموس ص ۷۷۷

لومړی جزو يې (و ـ ي) دی چې دا حروف عموماً په ټولو آريايي ژبو کې د (ګفتن) په مفهوم کې ريښه لري مثلاً د پښتو (ويي) چې کلمې او لفظ ته وايي او په پخواني ادب کې مستعمل و.

خوشال خان وايي:

دا ويی زمـــا د راز دی
دا مـــنزل دور او دراز دی

نور محمد غلجی وايي:

زه و تاته يو ويـــی کړم زما وروره
په سهار بېداري کړه اخر وګوره[1]

د پښتو نور کلمات هم له دغې ريښې څخه راوتلي دي: وينا (نطق) ويل (ګفتن) وَينه (ګفتار) وی (ګفت) د فرانسوي وايل VOYELLE او د انګليسي واول VOWEL (د حرف علت په معنا) د لاتيني ووکس VOX يا VOCARE ووکاري (د ږغ کولو په معنا) د انګليسي وايس VOICE (د ږغ په معنا) دا ټول دغه د (و ـ ي) ريښې لري[2].

نو د سنسکريت د (وياکرن) لومړی جزو هم له دغو ريښو څخه مرکب دی. (ويا) يعنې ويل ګفتن، کلام، وينا. دوهم جزو خو کټ مټ په پښتو کې اوس هم مستعمل دی کړن، کړنه.

يعنې کول نو (وياکرن) جمعاً وينا کول، ويل کول يا (ويي کړن) يا (ويي کړنه) ده چې کټ مټ هغه زړه معنا او زوړ شکل لري. ښايي چې دا کلمه هم زموږ له هېواده او له پښتو څخه تللې او په ويديَ ژبه او سنسکريت کې د ګرامر او نحوي لپاره مصطلحه شوې وي.

---

[1] پټه خزانه، ص ۱۳۵.
[2] فقه اللغه، ص ۲۶۸.

## منو MANU:

ويدا وايي چې د اوسنو انسانانو لومړی سړی منو MANU نومېده، چې لومړی پلا اور د ارباب انواعو له خوا ده ته سپارل شوی دی، ويدا وايي چې د، وي، وس، وت، دوه زامن وو، لومړی ياما YAMA دوهم منو، مګر ياما دمخه مړ شو؛ نو ځکه دی لومړی فاني کېدونکی (مرتيا) بلل شوی دی[1] په خپله وی وسوت په ريګويدا کې د ځلان او درخشان معاني لري، کله لمر او اسمان ته هم وايي، مثلاً: يوه رب النوع، ماترسيون MATARICVAN ګڼي (اور) له خورا لېرې ځايه، چې وی وسوت يې نوم و، (يعني له اسمانه) راووړ[2]. په حقيقت کې د (وی وسوت) دوه زامن وو، يو له يوې موره چې ياما نومېده د بلې مايني زوی يې (منو) دی، چې د انسانو اعلی مورث ګڼل شي، کله د (منو) نوم يوازې د سړي او انسان لپاره هم راځي او لغوي معنا يې پوهېدونکی ده[3].

د هندي آريايانو له کتابو څخه داسې ښکاري چې په پخوانو زمانو کې يو لوی طوفان راغلی و ددې طوفان ذکر تورات او قرآن عظيم هم کوي، له هندي کتابو څخه په متسياپران او اګني پران او مهابهارت کې دا کيسه راځي؛ مګر (شت پته پران) يې خورا مفصله راوړې. ميکس ميولر مستشرق لومړی پلا دا کتاب ترجمه بيا په (۱۲) ټوکه کې خپور کړه، له دې کتابه ښکاري، چې منو تر طوفان وروسته لومړی انسان دی، چې په قرآني او توراتي ژبه يې (نوح) بولي، منو د کيسې لنډيز دادی:

---

[1] ويدك انډيا، ص ۱۰۶_۱۲۳.

[2] ريګويدا، ۶ برخه، ۸_۱۴ فقره، لسمه برخه. ۳۹ فقره.

[3] ويدك انډيا، ص ۱۹۲.

سهار و د لاس پرېولو لپاره (یې) اوبه راوړې ـ یو کب یې لاس ته ورغی، دې کب منو ته ویل: چې ته ما وساته، یو لوی طوفان راځي ـ زه به تا ځني وژغورم ـ دا کب ده وروزه چې لوی شو؛ نو یې وویل: په پلانې کال طوفان راځي ـ یوه بېړۍ جوړه که چې طوفان راشي ته پکې سپور شه؛ منو دغسې وکړل چې په هغه کال طوفان راغی؛ نو دی په بېړۍ کې کښیناست او هغه ماهی راغی، دده کښتۍ یې تر شمالي غره (همالیا) پورې ورسوله ـ نور ټول خلك په طوفان کې مړه شوه؛ فقط منو پاتې شو، ده د اولاد خواهش درلود؛ عبادت یې کاوه او په ریاضت بوخت و، وروسته خدای تعالی ده ته یوه ښکلې ښځه راولېږله او د دوی له اولاده ځخه د (منو قوم) پیدا شو، آریایي هندوان ځانونه دده له پښته بولي[1].

دا خو ددې پخواني کتاب د منو کیسه وه، اما په مهابهارت کې هم دا افسانه راغلې ده او منو د یاما ورو بولي. په ګوت پران کې هم د منو دغه کیسه راځي[2] او داسې ښکاري چې په هندي روایاتو او میتولوژي (علم الاساطیر) کې منو د انسانانو پلار دی چې تر طوفان وروسته انسان له ده ځخه پیدا شوی دی؛ مګر وروسته منو او دده پلار د رب النوع په ډول هم منل شوي دي.

د منو پلار، وي وسوت هغه (وی ون ګهت VIVANGHAT) دی چې په اوستا کې هم د یاما پلار بلل شوی او وروسته د اسمان درخشان رب النوع و[3].

---

[1] شت پته پران ـ د ویدك انډیا له اقتباسه سره سم.
[2] ویدك انډیا، ص ۲۵۲ ـ ۲۶۰.
[3] ویدك انډیا ص ۱۹.

وي ونګهت چې په اوستا کې د یاما پلار بلل کېږي[1]. هغه د عربو ونجهان یا ویون جهان دی[2] چې د (ویونګهان) معرب دی او یاما هم هغه د اوستا یما YIMA دی چې وروسته جم او جمشېد بلل شوی دی!

خلاصه: د یاما او منو افسانو وروسته ډول ډول رنګونه موندلي دي؛ خو دلته زموږ کار د دوی تاریخي پلټنې نه دي؛ بلکې فقط د منو د کلمې لغوي تطبیق دی، چې د لوړو تاریخي پلټنو په رڼا کې به لاندې لږ څه شرح شي:

لکه چې وویل شول، په خپله ویدا (منو) د مطلق انسان او پوهېدونکي او منونکي په معنا راوړي، او منو شیا (پوهېدونکی او فکر کوونکی) هم انسان بولي[3]، ګویا د (م، ن) په طبیعت کې د انسان د پوهنې او منښې لپاره مفاهیم پټ پراته دي. دغه د (منو) افسانې هر راز چې وې خو صحت یا غلطي یې دلته په موږ اړه نه لري. فقط پر لغت یې دونې ویلای شو، چې (منو) د آریایانو په اصطلاح د لومړي انسان نوم و، وروسته لکه د عربي (آدم) انسان مطلق او عام نوم شو. په سنسکریت کې هم مانو MANAV د سړي او سړي ګي او کوچني په معناوو دی[4]، چې په پښتو کې هم کټ مټ هغه پخوانۍ معنا لري، پښتانه (برمانو) د غره سړي او ځنګلي سړي ته وایي او په خپله (مانو) د سمې او مدني سړی بولي، ښکاره ده چې (برمانو) د لوړې مځکې د سړي معنا لري یوه ملي لنډۍ ده:

---

[1] اوستا، ص ۱۱_۲۱۷_۲۹۵.
[2] اثار الباقیه ص ۱۰۳.
[3] ویدك انډیا _ ص ۱۳۳.
[4] هندوستانی قاموس ۶۶۱.

د برمـــــــانو په شان ترهېږي

د روغ مانو په شاني کښېنه دید دې کړمه

یعـنې د وحشــي او ځنګلـي پـه شــان ولـې لـه مـا ځخـه ترهـه او نفـرت کـوې، د روغ انســان پـه ډول کښېنـه، چـې پـه لیـدو دې ځـان مور کړم!

ددغـه (م ـ ن) لـه ریښـې څخـه کـټ مـټ اوس (منـل ـ مننـه) لـروـ چې پـه هغـې پخوانـۍ معنـا دي، د منـونکي معنـا کـټ مـټ د (منـو) لـه ریښـې څخـه (منـو او مـانو) جـوړ شـوي دي او لکـه دمخـه چـې ذکـر شـول (مـن) د ارادې پـه معنـا هـم لـه دغـې ریښـې څخـه دی، چې منـل او اراده کـول ټـول ـ انسـاني خاصـیتونه دي ـ او پـه معنـا کـې نژدیکت هم سره لري.

پـه هـر صـورت د (منـو) د زړې کلمـې ولـې د پښتـو پـه (مـانو) او (منلـو) کـې شـته او دا پخوانـۍ کلمـه هـم لـه دې ځایـه تللـې دهـ او تـر اوسـه هـم پـه پښتـو علامـو کـې (منـو) شـته، چـې پـر سـړو دا نـوم ږدي.

## من، MAN:

پـه دې ځـای کـې (مـن) د مخصـوص وزنـي معیـار، پـه معنـا هـم بایـد راشـي، دمخـه مـو (مـن) د ارادې پـه مفهـوم تطبیـق کـړ؛ مګـر (مـن) چـې د تالـه کـانې دی، هـم یـوه خـورا پخوانـۍ کلمـه ده، چـې پـه ریګویدا کې داسې ذکر شوې ده:

((موږ له جواهر او څاروي او اسان او یو من سره زر راوړه))[1]

دا کلمـه لـه آریـایي خلکـو څخـه کلـدان او سـامي بابـل تـه هـم تللـې وه؛ ځکـه چـې هغـو د هنـد سـره پخـواني تجـارتي روابـط

[1] ریګویدا، ۸۱ برخه، ۲۷ـ۷۸ فقره.

درلودل؛ نو ډېر داسې آریایي او هندي نومونه یې وړي دي، وروسته د (من) کلمه په روما او یونان کې هم رواج وه[1]. دا وزني معیار تر اوسه هم په پښتو کې شته او داسې مشهور دی چې دلیل او سند ته احتیاج نه لري. حتی په پښتو کې د (من) کلمې څخه یوه مخصوصه اصطلاح جوړه شوې او تقریباً یو رنګ اشتقاق څنې شوی دی، مثلاً مخصوصه اصطلاح ده (من په منیا کول) یعنې خپل زیار کښل او امتحان په یوه شي کول، چې د من د کلمې څخه منیا جوړه شوې ده.

## پیسې پاسو *PASU*:

دمخه د (سوما) په بحث کې وویل شوه، چې د سوما سوداګرانو به دا بوټی زمونږ د هېواد له غرو څخه وړل او آریایانو به د هغه په مقابل کې تک زېړ یا طلایي رنګه غويي ورته ورکول، له دې څخه معلومېږي، چې د اجناسو د مبادلې واحد په آریایي خلکو کې غويي وه، داسې غويي دوی پاسو PASU باله او وروسته هر دولت او ثروت او دارایي په دغه نامه بلل کېده؛ لکه چې پخوانو د رومن خلکو هم (پیسو) یا (پکوس) PECUS ثروت ته ویل، بیا چې مسکوکات په دوی کې رواج شول، هغه یې هم پیکوس یا پیکو PECU بلل[2].

ډنکن فوربس لیکي چې: پیسه PAISA د ټوټې مسي سکې نوم دی چې نیم پنس ته نژدې ده عموماً د MONEY معنا هم لري[3].

[1] ویدك انډیا، ص ۲۳۱.
[2] تاریخ افغانستان ص ۱۳۹.
[3] هندوستاني قاموس ص ۲۲۵.

دا پخوانی ویدي کلمه اوس په پښتو کې ژوندی او خورا مستعمله ده توره او مسې ایکی ده چې پارسو یې پول بولي، جمع یې (پیسې) د عمومي ثروت او هم نقد مال په معنا راځي.

مثلاً احمد ډېرې پیسې لري، دلته یې معنا دا نه ده چې ډېرې تورې ایکې لري؛ بلکې مقصد ډېر نقود او حتی عمومي ثروت دی.

دا کلمه له ویدي عصره تر اوسه په دغو معناوو ژوندۍ ده په هند او افغانستان کې ډېره مشهوره وه، څو چې اوس یې یوه بله نوې کلمه په ناوړه ډول په عوض کې ودرېده (پول) چې نه تاریخي حیثیت لري او نه ملي او قومي؛ بلکې په پښتو کې یې استعمال هم په جمله او جمع کې په ښه ډول نه کېږي او د پښتو او پارسو د (ل) له کلمې سره په جمع او جمله کې التباس هم مومي. مثلاً پُل (په لومړي پېښ) پَل (په لومړي زور) او پول که یې جمع کړو، د لومړي او آخر جمع پولونه راځي چې التباس سره لري؛ نو ښایي چې پښتو (ایکي) یا پیسه د پول لپاره واخلو او پیسې ثروت او نقد مال ته ووایو.

## کر، کریش :KRISH

د سودیار کولو او زراعت مهم کارونه (له) آریایانو سره له خورا پخوا څخه وو؛ لکه چې تاسې دمخه ولوستل، په خپله د (آریا) کلمه هم له دغې ریښې څخه راوتلې ده. (ك، ر) اساساً په آریایي ژبو کې عنصري توري دي، چې په معنا کې یې قلبه، شودیاره (او) کرنه پراته دي. په خپله (کرش) په اوستا او ویدا کې راغلي او شودیاره کول افاده کوي.

ګیګر وایي: (کریش) یوه کلمه ده، چې ډېر ویدي، اوستایي الفاظ څنې جوړ شوي دي. کرشتینه، یا چرشتیه د آریایي قبیلو

نومونه وو، چې دوی خپل ځانونه په افتخار په دغو نومو بلل، په اوستا کې کرشپوت د دهقان او بزګر معنا لري[1]. په سنسکریت کې هم دغه ریښه په اکثرو کلماتو کې ښه ښکاري، کرشي KRISHI د کرلو او زراعت معنا لري، کرشان KRISHAN کرونکي ته وايي، کرشن KRASHAN شودیار کوونکي او یوې کوونکي دي[2].

د پارسو کاشتن، کاریدن او د پښتو کر، کرنه، کرښت، کرونکی له دغې ریښې سره ډېر نژدېوالی لري.

# د آریایانو اجتماعي تشکیلات

له ویدا او نورو پخوانو کتابو څخه ښکاري چې پخوانو آریایانو ځانته اجتماعي تشکیلات او د ژوندانه دودونه او د تولنې لپاره مخصوص سیستم درلود.

اوس چې موږ ګورو د پښتنو ژوندون هم کټ مټ هغه ډول او هغه پخواني رنګ لري او د پښتون والي په لیارو او قوانینو کې هم دغه زاړه رسوم په ښه ډول پالل کېږي، پښتانه د ملي ژوندانه لپاره تل خپل اولسي تشکیلات محترم ګڼي، کورنی، عشیره، کلی، هېواد تر اوسه هم خاص مراتب لري.

څنګه چې دغه دودونه آریایانو له پښتونخوا څخه وړي وو؛ نو ښايي چې زاړه نومونه یې هم پښتو وي، چې لاندې هر یو جلا

[1] د شرقي ایرانیانو تمدن ص ۶۴۵.
[2] هندوستاني قاموس، ص ۵۶۷.

جلا ليکل کېږي او پښتو والې يې هم ښوول کېږي.

## پتي *PATI*:

په ويدي ژبه کې دا کلمه ډېره مشهوره ده، د بادار، مالك، رئيس، مشر معناوې لري، مثلاً په هغه وخت کې ويس پتي VICPATI د کلي د مشر نوم و[1] چې وروسته دا لقب (ميرويس) شوی دی. معلومېږي چې آريايانو له پخوا زمانې څخه په خپلو اجتماعي تشکيلاتو کې دا نوم درلود، ګوپت GOPAT يعنې شپانه پاچا يو نوم و، چې دا نوم او دغه اصطلاح آريايانو تر بخدي او ويدي مدنيت دمخه هم درلوده، په ۱۹۳۹ع د آمو شمالي خوا ته اوسني سمرقند ته نژدې په (تل نبرو) کې ددې پاچا تصاوير پيدا شوي دي او ډار مستتر وايي چې په آريانا ويجه کې د آريايانو پاچا دغه و، د اوستا په ګويشت او بنداهش کې هم د ګوپت ذکر کېږي[2].

مقصد دادی چې (پت) کلمه خورا قديمه او د آريايانو د بخدي تر راتګ دمخه د دوی په اصلي ټاټوبي (آريانا ويجه) کې هم وه. ګوتراپتي GOTRAPATI يعنې د غوجل مشر، وراجه پتي VRAJA- PATI يعنې دورشو[3] او چراګاه مشر، ګرامه پتي GRAMA- PATI يعنې د کام مشر، دا ټول اصطلاحات د ويدي آريايانو دي[4].

په سنسکريت کې هم (پت او پتي) مستعمل دي او ډېر

---

[1] کېمبرج هيستري، ج ۱، ص ۹۴.

[2] تاريخ افغانستان، ج ۱، ص ۱۱۲_۱۱۳.

[3] وراجه او ورشو ډېر سره نژدې دي، د ورشو بحث دمخه تېر شو.

[4] تاريخ افغانستان، ج ۱.

کلمات د (پ، ت) د ريښې څخه راوتلي دي، مثلاً پيت PIT مينه، عاطفه، پيتا PITA پلار، پيتم PITAM ډېر مينه ور، ډېر ګران او خوږ، پت PAT مينه، عزت، اخلاق، پت يا پتي مالك بادار، څښتن، مېړه، پتا PATA پلار[1].

دا مفاهيم او معاني چې د (پ، ت) په مشتقاتو کې پراته دي، ټول سره نږدې دي او ښايي چې ځينې حقايق وي او ځينې مجازونه. په پښتو کې هم دا کلمې پت PAT او پتي PATI دواړې مستعملې دي، پت د عزت او غيرت او ناموس او ننګ معناوې لري، مثلاً حميد وايي:

پروت په وينو کې لت پت ښه يم پت کې
نه د سرو زرو په تخت باندې بې پته

دغسې پتي يعنې د پت خاوند هم په پښتو کې شته، مثلاً ډېر پتي سړی دی، يعنې د پت خاوند دی، بې پتي يعنې پت نه درلودل او بې غيرتي او بې ننګي.

پير محمد مياجي وايي:

داسې ووې شېخ متي
د مولا په عشق، پتي[2]

نو قديم پتي هم دغه اوسنی پښتو پتي او پت ته ډېر نږدې دی، ښايي چې مشر او بادار او پاچا يې له دې جهته پتي باله، چې په دوی د اولس پت خوندي و او دوی ننګيالي وو او عزت او ناموس او ننګ يې ساته او وروستنۍ معناوې چې د مالك، بادار، څښتن، مېړه په ډولو راغلې دي، د زمانو له تېرېدو سره به مجازاً خپرې شوې وي، مثلاً هر مالك او بادار او څښتن د

---

[1] هندوستاني قاموس.
[2] پټه خزانه، ص ۱۳۳.

خپل مملوك او مادون پتي دي؛ څکه عزت او ناموس یې ساتي، ننګه یې پر ځای کوي، دغسې هم مېره تل د ماینې ناموس ساتي، نو یې څکه پتي دي.

## کولا KULA:

د آریایانو د ژوندانه اساس؛ لکه د نورو انسانانو دا چې دي، پر کورنی ایښو شوی و. دوی کورنی ته ډېره په درنه سترګه کاته. کورنی هر وخت د خیر او برکت ځای و، د کورنی مشر او مدیر پلار و او له څو کورنیو څخه یوه عشیره جوړېده. د کورنی اهمیت او د توکم ډېرېدل؛ لکه اوس چې لیدل کېږي، چې په پخوانو آریایانو کې هم کټ مټ دغسې دي؛ لکه مرحوم ببټ نیکه چې په خپل شعر کې د خپلو وګړیو ډېرېدل غواړي: ((دا وګړي ډېر کړې خدایه)) دغسې هم په ویدا کې د پخوانو ریشیانو ډېر اشعار او سرودونه شته، مثلاً ((خدای د ژوندانه څښتن دی، دی د دولت خاوند دی، دی قوي او غښتلې کورنی ورکوي، ای څښتنه! موږ داسې مه کوې چې بې کورنی او اولاده پاتې شو))[1]. په ویدي ژبه کورنی او خاندان ته کولا KULA وایي، چې د هغه عصر په اجتماعي تشکیلاتو کې ډېر اهمیت لري او له کورنی څخه نور لوړ تشکیلات شروع کېږي.

دا کلمه یقیناً د آریا له زانګو او اصلي ټکه یعنې زموږ له هېواده تللې ده او تر اوسه هم زموږ په ژبه کې ژوندی او مستعمله ده.

په پښتو اوس موږ کورنی اوخاندان ته (کهول) وایو؛ د

---

[1] ریګویدا ـ ۷ برخه، ۶ فقره.

قندهار د مشهورو مشرانو کهولونه تر اوسه مشهور دي؛ محمدزي د (پاینده کهول) بولي، یعنې د سردار پاینده خان خاندان، دغسې دی، د اڅک کهول، د بارك کهول. موږ په محاوره کې وایو: کاله ته ځم؛ له کاله راغلم. دلته یې (هـ) خذفېږي، شیخ رضي لودي چې د (۴۰۰ هـ) په حدودو کې ژوندی و هسې وایي:

نصره نه مو یې له کاله
لودي نه یې په کاوه

دده تربور نصر لودي وایي:

د لودي زوی سنتي یم[1]
دحمید له لوړ کاله یم

د پښتو د خورا پخواني شاعر امیر کروړ په یوه شعر کې دا کلمه (کول) راغلې ده، (په یاداري مې لوړاوی د کول د سور وکړه) یعنې د سور د کورنۍ، چې دغه کلمه کټ مټ د سلیمان ماکو په تذکره کې هم (کول) کښل شوې او ویدي رنګ لري[2]. له دې څخه ښکاري چې خورا په قدیمو زمانو او بیا د اسلامي دورې په اوایلو کې هم دا کلمه؛ لکه چې اوس ژوندۍ ده مستعمله وه.

•

## ګرامه GRAMA:

د ویدي دورې په اجتماعي تشکیلاتو کې ګرامه هم وه. چې غالباً د کلي معنا لري او له څو تېرو څخه به یوه ګرامه جوړېده

[1] پټه خزانه، ص ۷۱.

[2] وګورئ پښتانه شعراء ص ۱۴، ج ۱.

او مشر ي ګرامني GRAMANI بلل کېږي[1] دا ويدي کلمه په سنسکريت کې هم خورا مشهوره وه؛ ډېر کلمات نور ځني وزېږېده، مثلاً ګرامواسي GRAMA- VASI يعني د ګرام اوسېدونکی، کليوال، ګرام ادهي پتي GRAM- ADHIPATI د کلي پتي او د کلي مشر، ګرامني GRAMANI د کلي يوه کورنۍ، ګرامياسوه GRAMYASVA د کلي اس يعني خر، ګرامين GRAMIN کليوال[2] او نور چې دغه ټول اشکال اوس هم پښتو ته نژدې دي، مثلاً ګرامواسي (ګرام اوسي) ګرم ادهي پتي (ګرام ادې پتي)، ګرامياسوه، د ګرام اسپه او ګرامين، لکه خاورين اوس هم په پښتو هغه معاني لري. د ګرام کلمه تر اوسه هم کټ مټ په دغه ډول په پښتو کې مستعمله ده. په مشرقي خوا او په نورستان کې هم اکثره کلمې په دغه نامه دي، مثلاً وډيګرام، لوی ګرام، شګرام، کولي ګرام، اشتر ګرام او نور... د بګرام نوم هم دغه ريښه لري، يو بګرام د کابل په شمالي خوا کې دی، بل پېښور د بګرام په نامه يادېده.

شيدا وايي:

تر هغه پورې بګرامه[3]
په جهان مه شي بې نامه

بګرامي د کابل او جلال آباد په منځ کې يو موقف دی، چې په نامه کې دغه ريښه شته. په خپله دا کلمه د (ګرام) په ډول هم

---

[1] کېمبرج هيستري ص ۹۱، ج ۱.
[2] هندوستانی قاموس، ص ۱۱۶.
[3] پښتانه شعراء، ج ۱، ص ۲۶۲.

په پښتو کې وه او داسې معلومېږي چې زموږ له هېواده تللې او په ویدي ژبه کې یې ځای نیولی دی.

یوه پښتو لنډۍ ده:

د بېلتانه سندرې اورم

جانان له ګرامه سهار کډې باروینه

## ویه، ویس VISA, VIC:

دا کلمه بېله هغه (ویسیا یا ویش) چې دمخه په آریایي څلورو ډلو کې ذکر شوه، ځانته مستقله کلمه ده، تر ګرام لوړه په اجتماعي تشکیلاتو کې (ویسه) وه، چې د څو ګرامو وګړي به یوه ویسه بلل کېدل او مشر یې ویس پتي VISPATI یا راجن RAJAN باله[1].



ګیګر الماني لیکي: (ویس) په اوستایي دوره کې هم کلي ته ویل کېدل، هم یوې قبیلې ته، چې څو کورنۍ یې درلودې. د اوستا VIS د سنسکریت VIC سره یو دي، چې په ریګویدا کې د (کور، کورنۍ، ټبر) معاني لري[2].

داسې معلومېږي چې د (و ـ ی ـ س) په طبیعت کې د سکونت او هستېدلو معاني پراته دي، مثلاً د ویدا او اوستا (ویس) د انګلیسي هاوس HOUSE د پښتو (وسېدل، وسېده، هستېده، اوسي) تول دغه مواد لري؛ لکه محققین چې وایي:

---

(۱) کېمبرج هیسټري، ج ۱، ۹۱_۹۴.

(۲) د شرقي ایرانیانو تمدن، ج ۱، ص ۲۶۶.

ویسه هم د اوسېدونکي او مستقر او ساکن په معناوو دی[1] او له دې جهته چې ویس هم د اوسېدلو او استقرار ځای و؛ نو د پښتو د (وسېدل) له مصدره سره یې رابطه ډېره نژدې ده.

## پور PUR:

دوکتور کیته KEITH د دې کلمې شرح داسې لیکي، چې د پخوانو هندي بومي اقوامو له مدنیت څخه موږ څه معلومات نه لرو، فقط دونه ښکاري چې دوی د غویو لویې ګلې درلودې او په داسې سنګرو او محکمو ځایو کې یې ژوند کاوه، چې له ډېرو څخه یې جوړ کړي وو، ریګوېدا دغه ځایونه (پور PUR) بولي، چې وروسته دا کلمه د ښار TOWN په مفهوم هم مستعمله شوه[2].



یو بل محقق وایي، چې: په سنسکریت کې هم پور د ښار او کلي، کامپ COMP یعنې د پاچا د ناستې د ځای KING-STON په معنا و[3].

لکه دمخه چې وویل شول، د ډېرو ګرامو او کلو کوړه (ویسه) بلل کېده، د ویسې مشر ویسپتي و، ده به یو ټینګ او محکم ځای درلود، چې په اوسنی اصطلاح یې موږ (ارګ) بولو او دوی (پور) باله.

دا کلمه په پښتونخوا کې دونې مشهوره ده، چې ډېر ځایونه

---

[1] تاریخ افغانستان.
[2] کیمبرج هیستري، ص ۸۶.
[3] هندوستانی قاموس، ص ۲۱۰.

اوس هم پور بولي، مثلاً بته پور[1]، سلطان پور، فتح پور او محمدپور چې په ننګرهار کې دي. په هند کې هم ډېر ښارونه په دې نامه دي، مثلاً بهاول پور، بيجاپور، رام پور او نور.

امير شېرعلي خان چې د کابل شمالي خوا ته نوی عسکري ځای بنا کړ (شېرپور) يې وباله، چې تر اوسه هم په دغه نامه مشهور دی، په پښتو کې په مفرد ډول دا کلمه د (پوړ) په شکل پاتې ده پوړ طبقې ته وايي، مثلاً درې پوړه ودانۍ، يا پوړ پر پوړ يعنې طبقه پر طبقه.

دا موجوده معنا هم هغې پخوانۍ ته نژدې ده؛ ځکه چې هر پوړ محکم او ټينګ وي او پخوانو کلاوو او ارګو پوړونه هم درلودل، چې آثار يې تر اوسه شته.



## سميتي SAMITI:

دمخه تاسې د سمهيتا په بحث کې ولوستل، چې معنی يې مجموعه ده او د پښتو (سمت) هم نژدې دغه معنا لري.

په آريايي اجتماعي تشکيلاتو کې يو مهم شی (سميتي) و چې دغه کلمه هم له هغې ريښې څخه ده، دلته به لومړی د سميتي اجتماعي مفهوم دروښيو، وروسته به يې پر لغوي او تطبيقي خوا وږغېږو.

لکه اوسني پښتانه چې په خپلو قبيلو کې جرګې لري او دا جرګې له پخوانيو زمانو څخه د اجتماعي چارو د فيصلې کامل اختيارات لري او ځانته ليارې او اصول هم لري، دغسې پخوانو آريايانو هم ملي

[1] دا نوم اوس کته پور بولي.

جرګې درلودې، چې یوه مهمه جرګه یې سمیتي SAMITI بلله.

په ریګویدا کې ددې جرګې بحث راغلی دی[1] او علما وایي چې دوی دوې جرګې درلودې یوه یې سبها SABHA او بله سمیتي کې سپین ږیري او د قبیلې مشران سره غونډېدل او دا عمومي جرګه وه، اما سبها د کلي وړه جرګه وه او مقامي رنګ یې درلود؛ په سمیتي کې پاچا هم شاملېده او د پاچا او مشر د ټاکلو حق هم د دوکتور زیمر ZIMMER په قول دې جرګې درلود.[2] په ویدي ژبه د سمهیتا او سمیتي کلمو په معنا کې د ټولنې اجتماعي مفاهیم پراته دي، ګویا ددې مفهوم لپاره (س، م، ت) عنصري حروف دي. په هندي ژبو کې هم دغه ریښې په ډېرو کلماتو کې په دغه مفهوم شته، مثلاً سمت SIMAT د ټولېدلو عمل، سمیت SEMET یو له بله سره ټول، ورسره، سمیتنا SAMITNA یو له بله سره ټولول او سره غونډول[3].

لکه چې دمخه ویل شوي دي، د پښتو (سمت) هم کټ مټ دغه شکل او مفهوم لري؛ ځکه چې په سمیتي (جرګه) کې هم د ټولنې او غونډېدو مفهوم شته؛ نو لېرې نه ده، چې دغه ټول کلمات له دغې ریښې څخه وي.

## ناچ:

رقص او اتڼ د انسان له فطري خصایصو څخه دی. په پخوانو اقوامو کې هم و، له ریګویدا څخه ښکاره کېږي چې

[1] ریګویدا ـ ۳ ج، ص ۲۵۳.

[2] کېمبرج هیستري، ج ۱، ص ۹۶ـ۱۳۲.

[3] هندوستانی قاموس، ص ۴۷۸.

آریایانو هم اتڼونه درلودل او لکه اوس چې د پښتنو زلمي اتڼونه کوي او ځني غوړوي، پخوا هم دوی دغسې اتڼ او دا اجتماعي دود درلود[1].

په سنسکریت کې اتڼ ناچ بولي او دا کلمه تر اوسه هم په هند کې پر رقص DANCE اطلاقېږي[2]. په پښتو کې ددې فعل لپاره د (اتڼ) مخصوصه کلمه شته؛ مګر د ناچ او رقص د فعل لپاره له هغې قدیمي ریښې ځخه نڅا او نڅل هم لرو، فقط (چ) په (ځ) بدله شوې ده. له دغه مصدره افعال هم جوړېږي، مثلاً ناځي، وبه ناځي، ویې نځل.

یو شاعر وایي:

لــــکه ناځي چې بسمل له تېره تېغه
چې په تېغ دې شوم کړم نو نځا راغله



## سامانه SAMANA:

دا کلمه په ریګویدا کې ډېره راځي او د یوې مېلې نوم و چې په ارت میدان کې به کېده او ټول طبقات ښځې او نر، کوچني او لویان ګرد پکې حاضرېدل.

غېږ بازانو به غېږې ایستې، ورزشکارانو به لوبې کولې، سپرو به هم خپل هنر ښکاره کاوه، ریشیانو به اشعار ویل. دا مېلې به کله د شپې، کله د ورځې اجرا کېدې او د مظاهرې او

(1) تاریخ افغانستان، ج ۱، ص ۱۳۲.
(2) هندوستانی قاموس، ص ۷۲۶.

نمایش عملیات به کېدل[1].

دا مېلې تر اوسه په قندهار او نورو ښارو کې شته. په پسرلي، په منې، په ژمي مخصوص ځایونه لري او خلك سره ټولېږي، په میاشتو میاشتو وي؛ لکه په خپله مېلې چې پاتې دي؛ نوم یې هم په پښتو کې پاتې دی؛ مګر لږ څه معنوي تحول ورپېښ شوی دی.

په قندهار کې سامانه تظاهر نمایش په فخر سره څرګندونې ته وایي، مثلاً فلانی ساماني کوي، یعنې تظاهر او نمایش کوي او ځان ښکاره کوي، سامانه ګر، متظاهر او نمایشي سړي ته وایي، په سامانو تلل یعنې په کبر او خودنمایي تلل، مثلاً یو شاعر وایي:

راغی ابو جهل کافر نبي ته په سامان

دا لږ معنوي تحول علت هم لري؛ ځکه چې د آریایانو مېلې هم د تظاهر او نمایش او سامانو ځایونه وو. هلته قوت، هنر، حسن، جمال، ټولو خلکو ښکاره کول، حتی پېغلو مېرونه هم هلته ټاکل. زلمو به ځانونه سینګارول، ګویا دا مېله هم په حقیقت کې یو نمایش او په دغه اوسنۍ معنا (سامانه) وه، چې اوس هغه د مېلې مفهوم له دې کلمې څخه تللی او فقط هغه اصلي مقصد، یعنې (نمایش او تظاهر) پاتې شوی دی؛ ځکه چې سامانه هم له آریایي اجتماعي مظاهرو څخه وه؛ نو تر اجتماعي تشکیلاتو لاندې راوړل شوه.

[1] تاریخ افغانستان ج ۱، ص ۱۳۵.

# ارباب انواع

د پخوانو آریایانو له ژبې څخه ځینې مهم نومونه د دوی د ارباب انواعو دي، چې دلته یې له لغوي پلوه موږ له پښتو سره پرتله کوو، دا ارباب انواع له پخوانو زمانو څخه دوی درلودل او د ریګویدا سندرې د دوی په نومو او اوصافو ډکې دي؛ لکه چې پوهان وایي: آریایانو لوی خدای او واحد مطلق جل شانه هم پېژانده، مګر د خالق تعالی د قدرت طبیعي مظاهر، لکه اسمان، لمر، سپوږمۍ، اور، باد او رڼا یې هم مجلل او محترم بلل او ددغو شیانو په واسطه یې د لوی څښتن پرستش کاوه؛ دلته فقط د هغو له نومو سره زموږ کار دی:

## دییوس DYAUS:

په دې نامه آریایانو یو رب النوع ستایه، چې د اسمان او رڼا رب النوع یې ګاڼه او ټول نوراني او مفید عناصر یې ده ته منسوبول. ددې نامه اصلي ماده (ډیو) ده، چې عنصر یې له (د، ي، و) څخه مرکب دی او دا ماده او اصل د (ځلېدلو او رڼېدلو) مفهوم له ځانه سره لري. دا ماده په آریایي ژبو کې دونې عامه ده، چې اکثرو قدیمو اقوامو له دغې مادې څخه د خدای تعالی نوم جوړ کړی دی. مثلاً په خپله هندي آریایان لوی

خدای جل شانه ډييوس پاتر DYEUS- PATER بولي، يعني لوی او اعظم[1].

په سنسکريت کې ډيوا، ډيواس د لمر او رڼا په معناوو دي او خورا ډېرې کلمې له دغې ريښې څخه په هغه ژبه کې راوتلې دي؛ لکه چې يو محقق ليکي: ويدي ماده يې ډيا DIYA د ځراغ په معنا[2].

وګورئ! دغه کلمه په يوناني کې ذيوس ZEUS او بيا زيوش، زيوس شوه؛ د لاتين ډووس او ډيوفيس او جوفيس او جوپټر هم له دغې کورنۍ څخه دي، په زړه الماني ژبه کې (ذيو) او په اسلاوي کې ډيواس، په ايټالوي کې ډيو، د پرتګالي او هسپانوي ډيوس ټول له دغې ريښې څخه راوتلي اسماء دي. په نورو ژبو کې ډيو، ډيوسا، ډيوز هم په دغه ريښه اړه لري؛ ډيوس DIOUS او ډيواين DIVINE هم له دې کهوله دي[3].

په پښتو کې تر اوسه ځراغ ډيوه DIVAH بولو او دا کلمه دونې شهرت او عموميت لري، چې له پخوانو زمانو څخه تر اوسه په دې ژبه کې ژوندۍ پاتې ده او سړی په ټينګه ويلای شي، چې هم هندي او هم نورو آريايي ملتو دا کلمه له دې مځکې څخه وړې ده.

لکه چې ومو لوستل ډيو اسماني رب النوع او په دغه تقريب دا نوم ټولو آريايي مللو د خدای تعالی لپاره غوره کړی و؛ ځکه چې رڼا له اسمان څخه وه؛ نو ګويا ډييوس اسمان و چې په مقابل کې ددې رب النوع د مځکې بل رب النوع هم موجود و.

---

(1) تاريخ افغانستان، ج ۱، ص ۱۴۴.

(2) هندوستانی قاموس، ص ۴۰۶.

(3) تفسير الجواهر؛ ويدك انډيا، ص ۸۵.

که د ډییوس کلمه تحلیل کړو پښتو کلمه (ډیوه) به واخلو، چې د چراغ او رڼا معنا لري او د نسبت ادات (ین) به ورسره ونښلوو (ډیوین) DYAUS به شي، یعنې رڼاوال، منور، د چراغو ډک چې عیناً د اسمان ظاهري شکل هم دغه دی او ډییوس DYAUS او ډیویز هم ډېر سره نژدې دي، ډیوه په پښتو ادب کې ډېره راغلې ده؛ لکه دا لنډۍ:

ته به د کـــــوم مجلس ډیوه یې
زه د هجران په تاریکو کې ناسته یمه

ډیویز هم د اسمان د صفت په ډول مستعمل و لکه په دې لنډۍ کې:

د توري شـــپې ډیویز اسمانه
سترګې دې وخه که به لمر راخېژوینه!

دلته معشوقه له مین سره د شپې وصل شوې ده؛ نو نه غواړي چې ژر سهار شي او لمر راوخېژي او اسمان ته خطاب کوي چې: ((ای د څراغ او رڼا خاوند اسمانه! که به لمر ژر راخېژوې نو دې سترګې ووځه)).

دغه ډیویز چې د اسمان د صفت په ډول راغلی دی کټ مټ د هغو ټولو آریایي نومو ماخذ ګڼل کېږي چې دمخه تېر شول.

## پرتیهي وي PRITHIVI او نور:

په ریګویدا کې د ډیوس په مقابل کې تل پرتیهي وي، یعنې مځکه راځي؛ دا هم د یو رب النوع نوم و[1].

په سنسکریت کې پرتهوي PRITHIVI د مځکې معنا لري او

[1] کیمبرج هیستري، ج ۱، ص ۱۰۵.

ډېر کلمات نور هم له دې مادې څخه جوړ شوي دي؛ څکه چې مخکه پرته او غوړېدلې ده؛ نو ښايي چې دا نوم د پښتو له (پروت مذکر پرته مونث) سره شريك وي؛ څکه چې د کلماتو ماده (پ، ر، ت) دي، پريتهي او پرتهوي او پروت ډېر سره نږدې دي.

راګوزن ليکي: په ويدي ادب کې د پروت لغوي معنا خپرېدنه او پروتوالی دی او ورېځې او غره ته هم له دې جهته (پروت) وايي، چې خپاره او پراته وي، پرجايته هم په ريګويدا کې دا ورېځې نوم دی، چې د پروت له مادې څخه يې نوم راوتلی دی د اروپا آريايانو هم له دې رب النوع سره ډېره دلچسپي درلوده. سلاوي او ليتواني اقوامو يې تر ډېرو مسيحي کلو پورې لا هم پرستش کاوه؛ نومونه يې له دغې څخه مشتق دي، مثلاً پرکوناس، پرکونس، پيترون (اوريځ)[1].

دا شرح چې ولوستله شي؛ نو د سړي يقين راځي، چې پيتهي وي، پرتهوي، پروت او د پښتو (پروت) له يوې ريښې څخه دي.

دغسې هم ماروت MARUT د باد او سيلۍ رب النوع و چې اوس دا نوم د مروت په شکل موجود او د پښتنو د يوې قبيلې نوم دی. دغسې هم د سوما ذکر چې دمخه راغی، دا هم يو رب النوع و چې په پښتو کې يې د نامه ريښې تر اوسه شته. په دې ډول اکثر زاړه آريايي نومونه او اعلام په پښتو کې تر اوسه موجود دي او له لغوي پلوه ډېره نزديکي ورسره لري.

(اندرا) د ويدي عصر معروف جنګي رب النوع و، چې نوم يې د پښتو پر يوې قبيلې وسوی او تر اوسه هم (اُندړ) بلل کېږي.



[1] ويدك انديا. ص ۱۳۱ ـ ۱۴۱

# څلرمه برخه

# پښتو او د اوستا ژبه



اوستا ژبه ـ باختري اوستا او نوري اوستا ـ د اوستا توکونه ـ اوسنی اوستا ـ په پښتو کې د اوستا ژوندي کلمات ـ په پښتو کې اوستا ـ زراتشترا ـ سپنتمان ـ اهورا مزدا ، واره ـ بامي ـ اسپه ـ کاوه ـ د ځایو نومونه ـ مانده راغه ـ سپین غر ـ د ځینو وسلو نومونه ـ مینه ـ آبان بهمن ـ ژوژك ـ آس ـ اسپست ـ سئینه ـ باز ـ چرګ عمومي مشابهات او نژدېوالی ـ د تطبیق جدول.

# پښتو او اوستا

## لومړی خبرې:

لکه چې دمخه وویل شول د اوستا ژبه هم؛ لکه سنسکریت له آریایي پخوانو ژبو څخه ده او د پښتو له ادبي تاریخ سره ډېره اړه لري.

اوستا د آریایي باختر او بخدي یوه زړه ژبه ده، چې موږ یې د پښتو سره ډېر کلمات او لغات مشترك مومو او لکه د پښتو رابطه چې د سنسکریت سره ټینګه وه، د اوستا سره هم دغسې کلکه اړه لري.

په حقیقت کې دا درې ژبې (سنسکریت، اوستا، پښتو) سره خوندې دي او په یوه هېواد کې زېږېدلې او تربیه شوې دي. سنسکریت د هند په ارتو ورشوګانو کې خپره شوې او اوستا په باختر کې ځوانی ته رسېدلې ده. پښتو د پښتنو او پکهت سره یو ځای په خپلو غرو کې تر اوسه ژوندی پاتې ده.

د پښتو د ادبي تاریخ د څرګندولو او قدامت لپاره موږ ناچاره یو، چې پښتو له اوستا سره اوږه په اوږه ودروو.

ددې لپاره چې تاسې ته د اوستا تاریخي کیفیت لږ څه معلوم شي او هم یې ادبي آثار وپېژنئ، لومړی به د سنسکریت په ډول په خورا لنډو کرښو کې تاسې ته ددې ژبې تاریخ او بیا ادبي آثار دروښیم، بیا به نو په اصلي مقصد یعنې مقایسوي څېړنه پیل وکړم.

لکه په دړېمه برخه کې چې فقط د سنسکریت ځینې مشهور او خوار مهم کلمات په پښتو کې پلټل کېده؛ دغسې به د اوستا د لغاتو او مهمو کلماتو پلټنه او پرتلنه وکړو.

اما د قواعدو او ژبې د اصولو مقایسه او تطبیق به په یوه بېله برخه کې وشي. دلته فقط لغوي او ژبنۍ څېړنه د لغت او کلمه سازۍ له رویه کېږي.

## اوستا ژبه یا زند AVESTA, ZEND:

دا ژبه په باختر کې له زړې اصلي آریایي ژبې څخه د ویدي ژبې سره یو ځای او غبرګونې وزېږېده؛ نو یې باختري ژبه هم بولي، اوستایي له دې جهته بولي چې د اوستا کتاب پخوانی او خورا زوړ ټوک (ګاته) په دغه ژبه لیکل شوی دی. دغه ژبه زند ZEND بلله کېږي.

مدققین وایي: د اوستا ژبې چې ګاته پرې لیکل شوی دی او د ویدا ژبې ډېر فرق نشته او په جزوي اړولو او تبدیل سره چې معین اصول لري، د یوې ژبې یوه خبره په هابله ژبه اړولای شو.

د اوستا ژبې په روحاني ډله او مقدسو کتابو اړه درلوده او بېله په خپله اوستا بل کتاب او لیك په دغه ژبه نه دی پاتې، که څه هم د اوستا کتاب او د زرتشت دین په ایران کې خپاره شول؛ مګر تر ایراني هخامنشي دورې (۷۳۰ـ ۳۳۰ ق م) وروسته چې

سکندر پر ايشيا مسلط شو؛ نو د اوستا نسخې هم ورکې شوې مګر وروسته بيا د ارد شير سلماني (۲۱۱_۲۲۶ ع) په امر اوستا راغونډه شوه؛ نو له دغه جهته اوس د اوستا زوړ متن نه دی پاتې؛ فقط د ګاته برخه يې زړه او د زرتشت قول بللـه کېږي[۱].

دا ژبه اوستا بللـه کېږي، چې شرح يې وروسته راغې، په حقيقت کې زند د اوستا کتاب پهلوي شرحه وه چې وروسته دا دوه نومونه په ګډه (زند اوستا) د متن پر اصلي ژبه اطلاق شوه، که نه وي په خپله زند د اوستا د تفسير ژبه، يعنې پهلوي ده[۲].

دې پهلوي تفسير يو بل تفسير هم درلود، چې هغه (پيتي، زنتي) يعنې (مکرر تشريح) يا (پازند) بولي. ددې تفسير ابهام تر پهلوي لږ دی او هم يې رسم الخط واضح دی، پازند له پهلوي څخه لږ څه بېلتون لري او ټول کتب چې پکې موجود دي، د پهلوي نسخو تفاسير او شروح دي[۳].

له دې ملاحظاتو څخه داسې ښکاري، چې لومړنۍ اوستا چې د زرتشت د عصر ژبه وه او د اوستا کتاب په کښل شوی و، ورو ورو له باختره شاوخوا خپره شوه، په ايران کې زړه پارسو (فرس قديم) رواج شوه؛ وروسته پهلوي ژبه او پازند څنې راووتې؛ نو په حقيقت کې اوس د زړې باختري اوستايي ژبې آثار نه دي پاتې. ګاته چې د اوستا يو ټوک دی، د محققينو په قول هغې زړې باختري اوستا ته نژدې دی.

---

[۱] تاريخ ادبيات ايران، د دکتور شفق ص ۸.
[۲] د براون تاريخ ادبيات ايران، ج ۱، ص ۱۴۰.
[۳] د براون تاريخ ادبيات، ج ۱، ص ۱۴۵.

## باختري اوستا او نوې اوستا:

باختري اوستا هغه کتاب و، چې زرتشت په بخدي کې وکېښ او د هغه وخت باختري پاچا گشتاسپ دده دين ومانه او ټول د زرتشت قوانين يې د غويو پر څرمن وکښل او هرې خوا ته يې ولېږل.

يو پخواني مؤرخ پلينيوس PLINIUS د هرمييوس له کتاب په لومړي ميلادي قرن کې داسې ليکي چې: لومړنۍ اوستا دوه ميلونه اشعار وو، د مسعودي عربي مؤرخ تر (۳۴۶هـ) دمخه په مروج الذهب کې هسې ليکي، چې: اوستا پر دوولسو زرو د غويو څرمنو باندې ليکلې وه. محمد جرير طبري متوفي (۳۱۰هـ) وايي:

((اوستا پر دولسو زرو د غويو څرمنو باندې ليکلې وه))



شهنامه وايي: د اوستا (۱۲۰۰۰) فصله پر زرينو تختو کښل شوي وو. تنسر د ايران يو روحاني سړی و، چې (۱۷۰۰) کاله تر اوس دمخه ژوندی و، په يوه خپل خط کې هسې کاږي، چې: سکندر زموږ د دين له کتابه دوولس زره د غويي څرمنې وسوځلې، له دغو رواياتو څخه د اوستا ضخامت لږ څه څرگندېږي. که څه هم مبالغه لري، اما دا خو ښکاره ده، چې: د هخامنشيانو په عصر کې اوستا (۸۱۵) فصله او (۲۱) کتابه يا نسکه درلوده، تر سکندر وروسته چې دا کتاب سره ټول شو (۴۸) فصله يې لاس ته راغله، چې پر (۲۱) کتابه يې ووېشه. يو انگليسي عالم وسټ WEST دغه ساساني (۲۱) کتابونه (۳۴۵۷۰۰۰) کلمې تخمين کوي، چې اوس يې (۸۰۰۰۰) کلمې موجودې دي، يعنې هغه اوستا چې په ساساني دوره کې تر سکندر وروسته ټوله شوې وه، بيا هم په اسلامي دوره کې

تلف شوه او اوس یې فقط یوه ربع پاتې ده[1].

له دې بیانه ښکاري، چې د اوستا کتاب ډېرې صدمې لیدلې او څو واره ورک شوی او بیا سره ټول شوی دی او ډېر نوي نوي مضامین وروسته هم پکې داخل شوي دي، یعنې دا یو کتاب چې پر پخواني حالت نه دی پاتې. ډار مستېټر فرانسوی عالم ډېرې برهمنې، یهودي، بودایي او یوناني اغېزې او عناصر په اوستا کې ښیي[2]؛ نو لکه د مضمون او محتویاتو له پلوه چې اوستا سره اوښتې او نوي مواد په ګډ شوي، دغسې هم د ژبې له خوا د زړې باختري اوستایي نمایندګي نه شي کولای او دا یو محرّف کتاب دی چې اوس یې لږ برخې په نوي شکل پاتې دي.

## د اوستا ټوکونه:

د ساسانیانو په دوره کې له (۶۲۹ع) پورې چې زرتشتي دین رسمي ګڼل کېده، ټول د اوستا کتاب (۲۱) نسکه (کتاب) و، چې د دینکرد[3] په اتم او نهم فصل کې تفصیل راغلی دی، نسك په اوستا کې نسکو ذکر شوی او معنی یې دفتر او جونګ او مجموعه ده[4].

دغه یو ویشت نسکه پر درې برخو وېشل کېږي، چې هره برخه یې (اووه) نسکه ده، لومړی برخه یې ګاتها GATHA بولي، چې د عبادت مسایل او مذهبي اصول دي. دوهمه برخه

[1] ګاتها، ص ۵۰.
[2] د زند اوستا مقدمه، لومړی برخه.
[3] دینکرد یو پهلوي کتاب دی چې په نهمه میلادي پېړۍ کې لیکل شوی دی.
[4] یسنا، ۶۲ برخه، ۹ فقره.

یې دات DAT بولي، چې خاصه ده په اجتماعي او معاشرتي قوانینو پورې. درېیمه برخه یې هدهه ماتهرا HADHA-MATHRA ده، چې الهیات او فلسفه او ګډوډ بحثونه دي[1].

اوس به ددغو درو ټوکو اجزاء او برخې هم دروښیو:

ګاتها GATHA د اوستا خورا مهمه برخه ده، په سنسکریت یې (ګیتا) بولي، یعنې سندرې او سرودونه او اووه نسکه لري، چې (۲۳۸) قطعې او (۸۹۶) شعره او (۵۵۶۰) کلمې دي.

ګاتها دا برخې لري:

۱) ستوت یشت STOTYASHT: چې د اوستا خورا مقدسه برخه ګڼل کېږي او (۲۲) یې منظومې دي او (۱۱) نورې برخې یې په نثر او عمومي محاوره کښل شوې دي.

۲) سوتکر: SUTKAR.

۳) ورست مانسر: VARST-MANSAR.

۴) بك: BAK.

۵) وستك: VASTAK.

۶) هادهوخت: HADHOKHT.

۷) سپند: SPAND.

له دغه څخه سوکتر او ورست مانسر او بك هر یو (۲۲) برخې لري، چې د لومړي قسم د (۲۲) منظومو برخو په ډول منظومې سندرې دي او د هغو شرح او تفسیر ګڼل کېږي او اوس له دغو څخه فقط د سوتکر یو څو قطعې او د درست مانسر یوه برخه زموږ په لاس کې ده، دغسې هم د بك درې برخې په یسنا ګډې دي.

د وستك څخه اوس هېڅ پاتې نه دي او نه د ینکر ددغه شرح

[1] زند اوستا لومړی برخه، د ډارمستېټر مقدمه.

کوي، نه يې اصلي نسخه او نه يې پهلوي شرح شته، اما له هادهوخت څخه درې برخې پاتې دي، چې په يسنا کې شمېرلې کېږي او يوه بله برخه يې هم په يسنا کې ګډه او درج ده.

اوومه برخه يعنې سپند د زرتشت کيسه ده، چې په نوي ډول (زرتشت نامه) بلل کېږي او دده د ژوندانه کيسې پکې دي[1].

## دات DAT:

دوهمه برخه نسکونه چې دات DAT يې بولي او قانوني او شرعي مباحث لري، دغه لاندې اوه برخې لري:

۱) نيکاتوم NIKATUM.

۲) ګندا سر نيګت GANDA- SAR- NIGAT.

۳) هوسپارم HUSPARAM.

۴) سکاتوم SAKATUM.

۵) ونديداد.

۶) کتردات KITRADAT.

۷) بګان يشت BAGAN YASHT.

له دغو نسکو څخه فقط لومړي پنځه خاص قانوني او شرعي مباحث لري، دوه نور د عالم د خلقت بحثونه لري او اساطير MYTHOLOGY دي.

له دغو لومړيو پنځيو برخو څخه فقط اوس ونديداد بشپړ پاتې دی، اما د نيکاتوم، ګندا سر نيګت او سکاتوم څخه فقط يو څو قطعې شته، اما (له) هوس پارم څخه يوه مهمه برخه د خپلې اصلي نسخې TEXT په ډول او هم يې پهلوي ترجمه په

[1] د ډار مستېټر د زند اوستا مقدمه، لومړی برخه.

اریتســـــتان ERPATISTAN او نیرنګســـــتان NIRANGISTAN کـــې پاتې ده.

شپږمه برخـه کتـردات د خلقت لـه ابتـداء څخـه بیـا تـر زرتشـته پـورې تـاریخي ابحـاث لـري او اوس دغـه برخـه پـه بنـدهش BANDAHISH او شهنامه کې ساتلې ده[1].

## هدهه ماتهرا HADHA- MATHRA:

دریمـه برخـه نسـکونه چـې هدهـه مـاتهرا نومېـږي، نـه ښـه پېژنـدل شـوي او نـه ښـه سـاتلي دي، دغـه برخـه هـم اووه څپرکـي لري:

۱) دامدات DAMDAT.

۲) ناتر NATAR.

۳) پاګګ PAGAG.

۴) رت دات ایتګ RAT DAT- ITAG.

۵) بریس BARIS.

۶) کش کیشرو KASH KISHRAV.

۷) ویشتاسب ساست VISHTASP SAST.

دامـدات د زرتشـتیانو د خلقـت او د پیـدا ینبت احـوال و، د بنـدهش د پیـدا ینبت او خلقـت بیـان لـه دغـې بـرخې څخـه دی، د ناتر پـه حـال هېڅ نـه یـو خبـر او نـه د ینکـر د لـه دغـه څخـه څـه بحث کـوي، لـه پـاګګ څخـه پـه ګـاه او (سـې روزه) SIROZA کـې یـو څـه برخـه پـاتې ده او د وختـو ابحـاث یـې درلـوده، رت دات ایـتګ RAT- DAT- ITAG د قربـانیو ترتیبـات ښـودل او دوې قطعـې

---

[1] د زند اوستا مقدمه لومړی برخه.

اوس شته.

اما پنځمه او شپږمه حصه د هغو قربانیو په بیان کې وه، چې د ناوړو او پېریانو د اضرارو جلوګیري یې کوله، له دغو څخه یوه ټوټه هم نه ده پاتې او ښایي په پهلوي نیرنګستان کې د کش کیشرو ځیني مضامین وي.

اوومه برخه چې ویشتاسپ ساست، یعنې د ویشتاسپ یادونه ده، ددغه پاچا اوضاع له زرتشت سره بیانوي، چې اوس د (ویشتاسپ یشت) او د (آخرین پیغمبر زرتشت) په نامه مشهوره ده او د زرتشت نامي اساس هم ده[۱].

## نتیجه:

ډارمسټټر چې د اروپا له اوستا پوهانو څخه لومړی او معروف سړی دی، له لوړو ابحاثو څخه په لنډ ډول دا نتیجه اخلي، چې: د ساساني اوستا له (۲۱) نسکو څخه فقط دوه نسکه یعنې وندیداد او ستوت یشت بشپړ پاتې دي او له بګان یشت څخه هم ډېره مهمه برخه زموږ په لاس کې ده.

اما د څلورو نسکو (۱ـ بك ـ۲ـ هادهوخت ـ ۳ـ ویشتاسپ ساست ـ ۴ـ هوسپارم) څخه هم غوره برخې پاتې دي او له نورو څخه لږ لږ.

دغسې هم ډار مسټټر وایي، چې: په غیر مرتب او غیر مستقیم ډول له پهلوي شرحو څخه موږ ته د اوستا د ورکو نسکو محتویات معلومېږي او د پنځلسو نسکو لږې یا ډېرې نمونې او نخښې زموږ څخه شته.

[۱] د زند اوستا مقدمه.

ويسټ WEST انګليسي اوستا پوهاند د اوستا ټول (۲۱) نسكونه (۳۴۷۰۰۰) لفظه بولي، چې اوس فقط (۸۳۰۰) الفاظ يعنې څلورمه برخه يې پاتې او نور محوه شوي دي[۱].

## اوسنی اوستا:

دا لوړ تقسيم چې په اوستا کې شوی دی؛ لكه تاسې چې وويل د پهلوي د دينكرد له كتابه معلومېږي، چې پخوا يې دغه اجزاء درلودل، اما اوس د اوستا كتاب پر دغو پنځو ټوكونو باندې مشتمل دی[۲].

۱) يسنا YASNA: چې د كلمې معنا يې پرستش، نمنځنه، لمونځ او جشن دی، په سنسكريت كې دا كلمه بجبنه، په پهلوي كې يزشن، په پارسو جشن ده، دا ټوك ټولې هغه سندرې دي، چې د مذهبي مراسمو پر وخت ويل كېږي او (۷۲) فصله لري، چې له دغو څخه (۱۷) فصله د هغه پخوانو ګاتها څخه دي.

۲) ويسپريد VISPERED: يعني سرروران، دا برخه هم مستقل كتاب نه دی؛ بلكې په لومړۍ برخه اړه لري. د مذهبي دعاوو او اورادو مجموعه ده، چې د يسنا سره يو ځای ويل كېږي او له (۲۳) څخه تر (۲۷) پورې فصلونه لري.

۳) وينديداد VENDIDAD: يعني د شياطينو دافع قانون، چې په دغه كتاب كې د اوداسه اداب او دا كتاب ټول (۲۲) فرګرد يعنې بابونه لري.

۴) يشت YASHT: يعني نيايش او لمونځ، چې د كلمې ريښه يې په هغه يسنا كې ده؛ دا يو ډول سندرې دي، چې د

---

[۱] د براون تاريخ ادبيات، ج ۱، ص ۱۷۰.

[۲] د پور داود ګاتها، ص ۵۶_۵۸؛ د براون تاريخ ادبيات ص ۱۷۲_۱۷۵.

خدای تعالی او پرښتو ستاینه ده، یشتونه ټول (۲۱) دي.

۵) خورده اوستا یعني کوچنی اوستا: چې اذرید مهراسپند د دوهم شاه پور په وخت (۳۱۰_ ۳۷۹ ع) کې تألیف کړه؛ د شپې او ورځې د مختلفو اوقاتو دعاوې او لمونځونه او مناجاتونه دي. دا پنځه برخې چې لوړې ذکر شوې اوسنی اوستا ځنې جوړېږي. ددې کتابو ډېرې پخوانی نسخې نشته. ډېره زړه نسخه چې له یسنا څخه د کوپنهاګ په موزیم کې شته په (۱۳۲۵_ ۷۲۶هـ) د هیر بد مهربان کیخسرو په قلم لیکل شوې او وسترګارد نومې ډنمارکي مستشرق مونډلې او کوپنهاګ ته یې وړې ده.

په اروپا کې لومړی سړی توماس هایډ THMAS HYDE انګلیسی و، چې په (۱۷۰۰ع _ ۱۱۱۲هـ) یې د ایران د مذهب کتاب خپور کړ. دی په زړو ژبو پوه و او په دې لارې کې یې ډېر زیار وکېښ. تر ده وروسته یو بل فرانسوی عالم انکتیل دوپرن ANQUETIL- DUPERRON په (۱۷۵۵ع _ ۱۱۶۸ هـ) د اوستا زده کولو لپاره هند ته راغی، دې سړي لومړی پلا اوستا ترجمه او په (۱۷۷۱ع) یې په فرانسه کې نشر کړه. بیا نو برنوف BURNOUF په (۱۸۳۲ع) د یسنا ترجمه او شرح خپاره کړل، وروسته په دې علم کې ډېر نوموړي پوهان منځ ته راغلل، چې دي ساسي او ګروټ فنسټ، رولنسن، بارتولومه، میه، لاسن، شپیګل، ګیګر، ډار مستېټر، ګلډنو، ملر، له دغې جملې څخه دي او دغو پوهانو په المان او فرانسه کې ډېر کتب د اوستا په خصوص کې وکښل او خپاره یې کړل[1].



[1] ګاتها، ص ۱۱؛ د براون تاریخ ادبیات، ج ۱، ص ۷۰_۹۰.

# په پښتو کې د اوستا ژوندي کلمات

اوس چې تاسې ته لږ څه د اوستا شرح معلومه شوه؛ نو به خپل اصلي مقصد ته ولاړ شو، د اوستا یو څو مشهور لغتونه به د پښتو سره تطبیق کړو.
دمخه د ویدا په بحث کې تاسې ته د تطبیق اصول معلوم شول، هغه تحلیلي قواعد دلته هم جاري دي او زموږ د چارې اساس یو دی. دلته چې موږ د اوستا ځینې کلمات د پښتو له پلوه تحلیل کوو، فقط د مثال په ډول یو څو هغه کلمات را اخلو، چې په اوستا کې ډېر مشهور دي. که نه وي د ټولې ژبې تطبیق اومقایسه بېل کتاب غواړي او د پښتو د ادبي تاریخ وظیفه هم نه ده.



## د اوستا کلمه:

تر هر څه دمخه به په خپله د اوستا نوم تر تحلیل لاندې راولو، دمخه دربنکاره شوې ده، چې دا کلمه ډېره زړه ده او د آریایي باختر له پخوانو آثارو ښځه ده.
ددې کلمې په معنا او لغوي تحلیل پوهان ډلې ډلې دي، هر چا یوه توجیه ورته کړې ده او اشکال یې هم مختلف رانقل شوي دي. اوستا، ابستا، استا، اوستا، افستا، اپستا. د پهلوي شکل یې (اوپستاك) دی، چې ډار مستېټر (اپستاك) ضبط کړی دی. په سریاني ژبه (اپستاګا) او په عربي کې (ابستاف) دی او ځکه محققین چې وایي:
ددې نامه ذکر تر ساساني دورې دمخه په بل اثر کې نشته؛

فقط یو عالم اوپرت OPPERT دا عقیده لري، چې دا داریوش د بېستون په ډبرلیك (۴) لیکه (۴۶ فقره) کې چې ابستام راغلې ده؛ دغه کلمه ده[۲].

په هر صورت اوس خو دغه کلمه ډېره مشهوره ده او د معنا په خصوص کې يې دا لاندې اقوال شته:

(۱) پروفیسور گلدنر GOLDNER: له پروفیسور (اندراس) څخه هسې نقل کوي چې د اوستا کلمه له پهلوي (اوپستا) UPASTA څخه مشتقه ده، چې معنا يې (اساس، بنیان او اصلي متن) ده، پروفیسور بارتولومه او ویسباخ WEISSBACH دغه کلمه په اوستا او هخامنشي ډبرلیك کې د (پناه او کومك) په معناوو راوړي[۳].

(۲) يو بل مشهور عالم جیکسن JAEKSEN: د نیویارك د کولمبیا کالج پروفیسور هسې وایي، چې: د اوستا AVESTA اصطلاح له اوستاك AVISTAK څخه راوتلې ده، چې دا کلمه په ساساني دوره کې عموماً مستعمله وه؛ مگر دا نه ده معلومه، چې اصلي معنا يې څه ده؟ بنايي چې پهلوي اوستاك، لکه د سنسکریت ویدا غوندې د (پوهې، دانش او علم) په معنا وي یا بنايي چې معنا يې اصلي متن THE ORIGNAL TEXT وي، یا قانون[۴].

(۳) په شرقي کتابونو او قاموسونو کې (يې) هم اوستا

---

[۱] داریوش هخامنشي چې له (۵۲۱ تر ۴۸۶ ق م) پورې پاچاهي کړې ده؛ د ایران د بېستون په غره کې يوه مشهوره کتیبه لري، چې د خپل سلطنت او کورنۍ احوال يې په درو ژبولیکلي دي.

[۲] د براون تاریخ ادبیات ج ۱. ص ۱۲۹؛ گاتها، ص ۷۴.

[۳] گاتها ص، ۴۷؛ تاریخ ادبیات د براون، ص ۱۳۹.

[۴] د اوستا گرامر، مقدمه، ص ۱۳.

راوړې، مثلاً د "دساتیر اسماني په فرهنګ" کې لیکي: ((اوستا بفتح اول و ثانی نام کتابیکه بر حضرت زرتشت نازل شده و معنی آن بهین ستایش و مهین نیایش و ستا بکسر اول مخفف اوستاست))[1].

فرهنګ نظام لیکي: اوستا کتاب دینی زرتشت پیغمبر ایران است. اسیری لاهیجی ګوید:

علم معنی از کتاب اوستا= حاصلت ناید مکش چندین عنا.

اسدی طوسي په لغت فرس کې لیکي: استا، وستا، ابستا تفسیر زند است.

خسروانی ګفت:

چو ګلبن از ګل اتش نهاد و عکس افګند
بشاخ او بر، دراج ګشت ابستا خوان

(۴) اوپرت OPPERT هسې لیکي: د اوستا کلمه اساساً له ابستا ABASTA پارسي کلمې څخه جوړه شوې ده، چې معنا یې قانون دی[2].

(۵) ځینې نور پوهان دا عقیده لري، چې اوستا د مجهول او نامفهوم معنا لري او دوې ټوټې کلمه ده، لومړی ټوټه (آ) یعنې ((نه))؛ دوهمه ټوټه (ویستا) یعنې دانسته ده، چې مرکباً (نامفهوم او مجهول او نادانسته) ورته وایي[3] او ددې نامه وجه تسمیه هم داسې بیانوي، چې: اصلي باختري اوستا دوې نسخې وې او دغه نسخې هم د سکندر په تاړاك کې ورکې او تالاشوې، وروسته چې په پارتي او ساساني دورو کې د اوستا د

[1] دساتیر اسماني، ص ۳۶۲.
[2] جورنال ایشیاتك سوسایټي، مارچ ۱۸۷۲ ع.
[3] د همایي تاریخ ادبیات، ج ۱، ص ۱۲۹.

کتاب دوهمه پلا ټولونه شروع شوه؛ نو یې خطي ټوټې هسې وې، چې څوک نه پوهېدل: نو یې (مجهول او نامفهوم) وباله[1].

## په پښتوکې اوستا:

د اوستا د کلمې په شرح او مفهوم کې د پوهانو لکه مفکورو څخه لوړې څېړنې مختصراً رانقل شوې. په پښتو کې هم دا کلمه تطبیق مومي او کله د ویدي ژبې ډېر کلمات چې په پښتو کې وکتل شول، دا کلمه هم له پښتو سره په دوه ډوله برابرېږي:

(۱) د پنځمې مفکورې خاوندانو اوستا په نامفهوم ترجمه کړې ده او دا نظریه اسلامي مؤرخینو هم منلې ده، مثلاً علي بن الحسین مسعودي اسلامي مؤرخ چې په (۳۴۵هـ) وفات شوی دی، په (۳۲۳هـ) کال هسې لیکي:

((واتی زردشت بن استیمان و هو نبی المجوس الذی اتاهم بالکتاب المعروف بالزمزمة عند عوام الناس و اسمه. عند المجوس بستاه... و بعجم هذا الکتاب یدور علی ستین حروفا من احرف اللعجم. ولیس فی سایر اللغات اکثر حروفاً من هذا و اتی زردشت بکتابهم هذا بلغت یعجزون عن ایراد مثلها. ولا یدرکون کنه مرادها... و کتب هذا الکتاب فی اثنی عشر الف مجلد بالذهب فیه و عدٌ و عید و امر و نهی و غیر ذلک من الشرایع والعبادات. فلم نزل الملوک تعمل بما فی هذا الکتاب الی عهد الاسکندر وما کان من قتله لدارا بن دارا. فاحرق الاسکندر بعض هذا الکتاب. ثم صار الملک بعد الطوایف الی ارد شیر بن بابک فجمع الفرس عی قراة سورة منه

[1] تاریخ افغانستان. ج ۱، ص ۱۹۵

يقال لها (استاه)... ثم عمل زرادشت تفسيراً عند عجزهم عن فهمهٔ و سمو التفسير (زندا) ثم عمل التفسير او سماه (بازند) ثم عمل علمائهم بعد وفات زرادشت تفسير التفسير و شرحاً لسائر ما ذكرناه و سموا هذا التفسير "بارده"))[1].

ترجمه: "زرادشت د استیمان زوی د مجوسو نبي دی چې دوی ته یې د ابستا کتاب راووړ، دا کتاب عوام وګړي زمزمه بولي، (۶۰) حروفه لري، چې په اکثرو نورو ژبو کې ډېر دغه حروف نشته. زردشت دغه خپل کتاب په داسې ژبه راووړ، چې بل چا هغه نه شوای لیکلای او نه یې څوك په مراد پوهېدل... دا کتاب په دولس زره ټوکه کې په زرو ولیکل شو، وعد او وعید امر او نهې او نور شرایع او عبادات پکې وو، پاچاهانو د سکندر تر وخته په دې کتاب عمل کاوه؛ مګر هغه وخت چې سکندر دارا مړ کړ؛ نو یې ددې کتاب ډېرې برخې وسوځلې، وروسته ملوك الطوایف راغلل، بیا چې ارد شیر د بابك زوی پاچا شو؛ نو ایرانیان ددې کتاب د یوه سورت په ویلو متفق شول چې استاه یې باله".

... په دې ډول مسعودي مؤرخ د اوستا نامفهوم توب بیانوي او دا خبره نور مؤرخین هم مني. مثلاً ابن اثیر په خپل کتاب (الکامل فی التاریخ) کې هسې وایي، چې: زردشت یو کتاب (استا ـ اباستا) راووړ او هرې خوا ته یې واستاوه. څوك یې په معنی ونه پوهېدل، او مضامین یې درك نه کړه...[2].

له دغو ټولو څخه داسې ښکاري چې اوستا حقیقتاً نامفهوم و او ډېر نور تفاسیر چې پرې ولیکل شول، علت یې دغه و، چې

---

[1] مروج الذهب، ج ۱، ص ۴۲ د مصر طبع

[2] الکامل ابن اثیر

د کتاب متن ګران او مجهول و، دغه خبره تر نژدو وختو پورې هم شرقي پوهانو ته معلومه وه، حتی دوی د اوستا کتاب یو راز (رمز) هم ګانه، لکه چې د دبستان مذاهب مؤلف هم په دې باب کې په ښکاره لیکي: ((کتاب زند بر دو قسم است، یک قسم آن صریح و بی رمز که آنرا (پازند) نیز میگفتند، و قسم دوم رمز و اشارت که آنرا (زند) هم می خوانند))[1].

د اوستا په خصوص کې د پېنځمې مفکورې د خاوندانو لپاره دا ټول تاریخي دلایل موجود دي او که موږ له دغه نقطه نظره د اوستا کلمه تحلیل کړو؛ نو سمه راځي، په دې ډول دا نوم مرکب دی له دوو ټوټو څخه (ا ـ وستا) A یعنې مفتوح همزه په آریایي ژبو کې د نافیه (نا) په معنی راځي، په سنسکریت کې هم عام دی الف په (ی) هر وخت اړوي، (آ) ته (یه = یا) هم ویلای شو، چې اوس د قندرهار په پښتو کې کټ مټ د (نه ـ نا) په معنا د نفې لپاره دی. مثلاً احمد راغلی دی، یه نه دی راغلی. د خلیل خان نیازي په دې رباعي کې (یه) د نفې په معنا واضح شوی دی:

خـــرې اوربخې ژاړي له پاسه
کـــویله ږغ کا ببلتون له لاسه
یه. هغه لونی ګوهر په خول ستا
دا مـــرحبا کا ستا زموږ مواسه[2]

دویم جزو (وستا) له پښتو (وېستل) څخه جوړ شوی دی. چې معنـا یـې ده (استخراج) (دباندې وېستل) ددې مصدر اسم

[1] دبستان مذاهب، ص ۹۷.
[2] پټه خزانه ص ۷۷

مفعول (وپستلی او ویستی) دی او په خپله (ویستا) کلمه هم په زند ژبه کې اسم مفعول دی؛ نو (ویستا) داسې معنا لري، نا استخراج شوی نامفهوم[1].

که په اوسنی محاوره دا کلمه ووایو (یه ستی) یعني (ناویستی) او نامفهوم به وي، چې کټ مټ هغه (اوستا) هم دغسې ده.

د اوستا کتاب له بخدي او باختر څخه راوتلی دی؛ نو لکه په خپله د بخدي کلمه چې د پکهت او پښت او پښتون سره نښتې ده، د اوستا نوم هم دغسې له پښتو سره اړه لري او ددې کتاب نامفهوم توب د "سیري لاهیجي" له هغه ذکر شوي پارسي بیته هم ښکاري؛ ځکه چې دی وایي: له اوستا څخه معنی نه شي درك کولای؛ بېهوده زیار مه کاږه، د پنځمې مفکورې له رویه خو د اوستا کلمه په دې ډول تجزیه شوه (ا ـ ویستا)، اما که د درېمې نظریې له مخه د شرقي لیکوالو په قول اوستا (بهین ستایش او مهین نیایش) وګڼو؛ نو به یې په پښتو کې داسې تحلیل کړو:

اوستا دوې کلمې دي، (ا ـ وستا) لومړی جزو یې (همزه) او (واو) دی. همزه حلقي حرف دی او ډېر ځله (هـ) سره بدلېږي، مثلاً هلك = الك. هګی = اګی او نور د سنسکریت د کلمې په تحلیل کې تاسې ولوستل چې په هغه ژبه کې سو St د (ښه) په معنا دی؛ ځکه چې د سنسکریت (س) په اوستا کې تل په (هـ) اوړي؛ نو (سو) په اوستا کې (هو) شو. په پارسو کې (هـ) (خ) کېږي؛ لکه هوارزم چې خوارزم شوی دی. په پښتو کې دغه د هوستا (هو) په (او) بدل شو. یعنې (ښه). په فرس قدیم کې هم

[1] فقه اللغه

دغه د اوستا (هو) په (او) بدل شوی دی داریوش په ډبرلیك کې (او) اسپ یعنې ښه آس (اومرتیا) یعنې ښه سړی راغلی دی[1] او په خپله (هو) هم په پښتو کې د ایجاب کلمه ده، چې اوس هم ژوندی ده او هغه (ښه) معنی لري.

دوهم جزو: چې (ستا) دی ریښه یې (س، ت) دی، چې له دې ثخه د پښتو (ستایل، ستاینه، ستانه) د پارسو (ستایش، ستودن دی) او تلي دي. ستایوال هم په پښتو ستایش کننده ته وایي.

امیر کروړ سوري چې د پښتو خورا پخوانی ادیب او شاعر دی، په خپله حماسه کې وایي: نړۍ زما ده نوم مې ستایي پر دریغ ستایوال[2] په پهلوي کې هم د (ستا) ریښه وه، اسدي طوسي لیکي چې:

((آفدستا)) مرکب دی له افد یعني شګفت او (ستا) یعنې ستایش څخه؛ لکه دقیقي چې وایي:

جز از یزد تو ام خداوندی
کنم از دل بتو بر آفد ستا[3]

له دې څخه هم معلومېږي چې له پخوا څخه دا ریښه په پښتو او نورو آریایي ژبو کې وه؛ نو له دغه جهته ویلای شو، چې د اوستا د کلمې دوهمه ټوټه (ستا) له دغه ستایلو څخه ده.

په دې ډول چې اوستا په خپله د اوستا ژبې په اصطلاح (هوستا) او په پښتو په (اوستا) یعنې (ښه ستاینه) او هغه (بهین

[1] ګاتها ۸۹.
[2] پټه خزانه، ص ۳۵.
[3] لغت فرس ص ۵.

ستایش او مهین نیایش) شي، چې دا لغوي تحلیل هم د اوستا د کلمې ریښې په پښتو کې څرګندوي.

## زراتشترا ZARATASHTARA:

تر (اوستا) وروسته دوهم نوم ددې کتاب د راوړونکي نوم زراتشترا یا زردشت دی چې دا سړی د بخدي آریایانو یو نوموړی دیني او مبلغ او موسس دی. د زردشت له نورو سوانحو او دده له دین او کتاب سره دلته موږ نور کار نه لرو، فقط دده د نامه تحلیل د پښتو له پلوه کوو. دده د ژوندانه د عصر په ټاکنه کې موږخین مختلف دي؛ خو اکثر هسې وايي، چې: زردشت (۶۵۰ څخه تر ۵۵۰ ق م) پورې یعنې په دغه یوه قرن کې ژوندی و[1] ځکه چې دا سړی هم د بخدي او باختر څخه راوتلی دی؛ نو بېشکه باید دده په نامه کې د پښتو ریښې هم وي.

نوي او زاړه محققین د زراتشترا په نامه کې مختلف دي، مثلاً په دغو ډولو کې دا نوم له قدیمه تر اوسه ضبط شوی دی: زراتشتر، زارتشت، زاردهشت، زاردشت، زردهشت، زرتهشت، زرتشت مګر په ګاتها کې (زرتشترا) راغلی او دا ډول یې پخوانی دی. یونانیانو زورادروس، زاروس، زراتس، زاروستر هم راوړی دي[2].

لکه ددې نامه په ظاهري ډول او شکل کې چې اختلاف دی، په معنا کې یې هم دغسې مختلفې مفکورې موجودې دي، هر چا یوه توجیه کړې ده او مشهور اقوال یې دغه دي:

(۱) دینون DEINON: یوناني موږخ وايي: زرتشتر یعنې (د

---

[1] تاریخ عمومي عالم، ج ۱، ص ۳۲۱.
[2] ګاتها، ص ۲۲.

ستورو ستایونکی) دا مؤرخ تقریباً دوه زره کاله تر اوس دمخه ژوندی و، هسې رایه لري[1].

(۲) نوي اروپایي محققین هم ډول ډول ترجمې ورته تراشي، مثلاً کاسل CSSEL وایي: معنا یې (د ستوري زوی ده)، ویندشمن WINDISCHMAN او میولر MULLER دا عقیده لري، چې معنا یې (د دلاور اوښ خاوند) ده، هارلز HORLEZ یې په لکه طلا داسې برېښېدونکي سره ترجمه کوي او ډار مستېټر وایي، چې: معنا یې (د ژېړ اوښ خاوند) ده، بارتولومه یې (د زاړه اوښ خاوند) بولي، جاسن انګلیسي هم دغسې وایي.

پروفیسور رات یې د (زرګر) په معنا اخلي[2].

(۳) شرقي پوهان ددې نامه معنا (آورده نخست یا فریده اول) لیکي. او ځینې یې په (فرستادهٔ یزدان یا نفس کل، نور مجرد، نفس ناطقه) ترجمه کوي[3].



(۴) ځینې پوهان داسې وایي، چې: دا کلمه له سامي ژبو څخه راغلې ده، راولنسن انګلیس لیکي چې لومړی جزو یې (زرو) له (زیرد) څخه جوړ شوی دی چې معنی یې (زاده) ده. دویم جزو یې اشترا د زهرې ستوري نوم دی؛ نو مرکباً یې داسې معنا کېږي (زاده ستاره زهره). د کلدانیانو په عقایدو کې زهره د (ایستار) مظهر و، چې د عشق رب النوع او د جګړو ملکه وه[4].

(۵) دا ټول نظریات چې ذکر شول: د ځینو نورو پوهانو له خوا

---

[1] ګاتها، ص ۲۲.
[2] تاریخ عمومي، ج ۱، ص ۳۲۰.
[3] فرهنګ ناصري.
[4] ګاتها ج ۲، ص ۲۴۶.

رد شوي دي؛ ځکه چې هر چا یو تقریبي او تخمیني مفهوم ورته تاکلی دی، پورداود وايي:

ښايي چې يوه دغه نظريه سمه نه وي؛ ځکه که لومړی جزو (زر) وبولو، دا کلمه خو په اوستا کې زيريت وه او زرنت د (زوړ او پير) په معنا دی؛ مګر په ترکيب کې دا کلمات په څه ډول (زرت) شول؟ [1]

په هر صورت نظريات مختلف او د نامه تحليل هم سخت دی؛ خو تر ټولو معقوله او لغوي تحليل ته نژدې مفکوره د پروفيسور هاګ HAUG ده، دې وايي، چې: لومړی جزو زرت (زړه) او دوهم جزو له (يوتار) UTARA څخه مشتق دی، يعنې (اعلی) نو چې مرکباً يې معنا وکړو زراتشترا (د اعلی زړه خاوند) مفهوم لري که څه هم (هاګ) ددې نامه نورې معناوې لکه (ستايونکی) او (سندرې ويونکی) هم ږدي؛ مګر موږ ته د لغوي څېړنې په رڼا کې تر ټولو دده لومړنۍ نظريه معقوله ښيي.

## د نامه تجزيه:

په پښتو کې د (زره تشتره) نوم د هاګ د عقيدې پر اساس داسې تجزيه کولای شو، چې لومړی جزو يې يقيناً د اوستا (زرته) ZARETHA او د پښتو زړه دی چې پارسي دل ته يې په اوستا (زر ته) وايي [2].

که ورته ځير شو، د کلمې اساسي عناصر (ز = ر) دي، د اوستا (ر) د (ت) په ملګرۍ يو راز آواز کاوه، چې د (ته = ذ) تر

---

[1] فرهنګ نظام، ج ۳، ص ۷۲.
[2] تاريخ عمومي عالم، ص ۳۱۹.

مبنځ و او دغه آواز د پښتو (ړ) ادا کړی دی؛ نو اساساً ګویا دوهم آواز یو قسم درنه (ر) وه.

د (زړه) له مادي څخه ځینې نور اسماء هم په اوستایي دوره کې شته او موږ ته دا ثابتوي چې د زردشت په عصر کې له دې مادې څخه ډېر نومونه جوړ شوي دي. مثلاً د بلخ په مشهورو تاریخي پهلوانانو کې یو (زریر) دی چې ((یاتکار زریران)) کتاب دده په نامه کښل شوی او په پهلوي ژبه کې شته. زریر د ویشتاسپ ورور و، چې په اوستا کې ده ته (زړي واري) لقب ورکړ شوی دی[1] چې لومړی جزو یې زري (زړه) او دوهم جزو یې (واري) د پښتو اوسني د فاعلیت آدات (ور) دی: نو زري واري (زړه ور( او پښتو کلمه ده، چې دغه زري په زره تشتر کې هم شته زړه، زري، زرته ټول دغه د پښتو (زړه) ته راځي.

اوس چې تاسې ته په اوستایي نومو کې د (زړه) د کلمې ریښې معلومې شوې او دا مو ومنل چې د زراتشتر د نامه لومړی ټوټه هم دغه (زره = زړه) ده؛ نو به دوهمې ټوټې ته ولاړ شو، چې دغه څنګه ده.

لکه چې تاسې وکتل، اکثرو خلکو دوهم جزو (اشترا) یعنې اوښ بللی دی په حقیقت کې د (ت، ش، ت، ر) اساسي حروف دا کلمه تشکیلوي، چې (ش، یې، ښ) او (ر یې ن) هم ویل کېږي؛ نو تشتر د پښتو (تښتن) دی چې معنا یې صاحب، خاوند. مالك ده او دا کلمه په پښتو کې د (څښتن) په شکل هم موجوده ده. په أدب او محاوره کې عموماً ژوندی او مستعمله ده.

د (ش) او (ښ) ابدال عمومي دی دا دواړه حروف له یوه

---

[1] ابان پشت فقهره، ۱۱۰_۱۱۳

مخرجه او یوه اصله دي. د پارسي اکثر (ش) د پښتو په (ښ) بدلېږي، اخرنی حرف یې (ر) ده، چې په پښتو کې په (ن) اوښتی ده دا ابدال هم روا دی؛ ځکه چې دواړه توري له تالو څخه ادا کېږي او د یوه مخرج دي.

نو اوس به دا کلمه په پښتو کې په دې ډول ترجمه شي: زړه تشتر یعنې (د زړه تښتن) چې په پارسي یې (صاحب دل) ترجمه کوي.

ځکه چې زردشت روحاني سړی و؛ نو ده ته د زړه تښتن او صاحب دل ویل تر نورو ټولو نومو افضل دی او دا اصطلاح تر اوسه هم په دغسې ځایو کې شته، که زړه سره (ور) یو ځای کړو هلته شجاعت دلاوري افاده کوي؛ که (تښتن) ورسره ووایو؛ نو روحانیت او معنوي احوال او مادي توب او رهنما والی راښیي.



## سپنتمان SPENTOMAN:

دا کلمه د زردشت له نامه سره ډېره راځي، وایې چې سپیتمه SPITAMA د زردشت د کورنۍ نوم و او دده نهم نیکه هم په دغه نامه یادېده، د یسنا په ۱۹ قطعه کې دا نوم راځي. په پهلوي کې سپیتامان یا سپیتمان ویل کېږي، لومړی برخه یې سپیت (سپید) ده او ددې نامه معنا داسې کېږي: سپین نژاد ((په)) ګاتها کې هم دا نوم ډېر ځله راوړی[1].

((سپین نژاد)) خو داسې مفهوم لري، چې باید دی له سپینه پښته وي او سپین پوستی وي؛ مګر ښایي چې دا نوم معنوي جنبه هم ولري، چې دده اصل او ځله سپینه وه، یعنې له ښې او

[1] ګاتها ص، ۹۲.

روحاني او شریفې کورنۍ شخه و؛ لکه چې ځینو خلکو دغه سپیتمان په (پاك روان) هم ترجمه کړی دی[1].

په هر صورت دا فامیلي نوم د ترکیب او معنا له پلوه پښتو دی او د پښتو پر اساس یې لومړی جزو (سپین) صفت دی، چې تر خپل موصوف دمخه راغلی دی، دوهم جزو یې (تمان) موصوف دی، چې اوس ددې کلمې شکل په پښتو کې (تومنه) ده. یعنې اصل او مایه. په قندهار کې دا کلمه اوس هم په دغو معناوو شته، مثلاً د مستو تومنه هغه مستې بولي، چې د مایې په ډول یې تودو شیدو ته اچوي، چې مستې شي.

د بد خلقه سړي په خصوص کې وایي: ((تومنه یې خرابه ده))، یعنې اصل او نژاد او مایه یې ورانه ده[2]؛ نو په پښتو کې به هغه تاریخي سپیتمان (سپین تومني) یعنې (سفید نژاد) شي، چې فقط یو د سپین اخرني (نون) د تخفیف له پلوه شوی دی او د تومني (واو) هم ځکه چې حرف علت دی، په الف اوښتی او له خپله ځایه ښوریدلی، پس له (م) راغلی دی. او داسې تغییرات چې په څو زره کاله کې دې کلمې ته ورپېښ شوي دي، د ژبو په تحول کې عمومي دي.

د سپیتمان لومړی جزو چې (سپین) دی، په اکثرو آریایي نومو کې ریښه لري، یعنې د باختر آریایانو د اکثرو نومو په سر کې د سپین کلمه راځي، مثلاً سپین دات SPENDAT، سپین تا SPENTA، سپینتوداتا S' ENTODATA او نور چې د اوستا په وندیدا کې داسې نومونه ډېر دي او د لومړي جزو معنا یې هم دغه سفید دی چې د پښتو (سپین) کټ مټ پکې معلومېږي.

---

[1] تاریخ افغانستان ج ۱، ص ۱۹۰.

[2] آریانا، ج ۱، ص ۳۸_ شماره ۲.

نو په دغه تاریخي استناد په ټینګه ویلای شو، چې د (سپیتمان) لومړی جزو هم دغه (سپین) دی، چې د هغه عصر په ټولو نومو کې و او ددغې کلمې په معرب شکل (اسفنتمان) کې هم دغه پښتو صفت ساتلی شوی دی او همدغه نوم د البیروني د آثارالباقیه په ځینو نسخو کې سفید تومان کښل شوی دی، چې د پښتو سپین تومان فارسي ترجمه ده.

## اهورامزدا AHURAMUZDA:

په اوستا کې اهوره مزده، د لوی خالق نوم دی، چې دا کلمه (اورمزد) هم نقل شوې او مخفف یې (اورمز) هم ده، په لومړي سر کې د (خداوند، دانا او وجود اعلی) نوم و، وروسته یې ډېرې نورې مجازي معناوې هم موندلې دي[۱].

ګیګر الماني وایي، چې: اهوره مزده د علم خاوند او د غیب او شهود مالك و، هر ځای د خالق تعالی نوم داسې په اوستا کې ذکر شوی دی[۲]. په هر صورت! خو دا نوم د اوستایي ژبې یو مهم اسم دی او تر اوسه هم په پارسو ژبه کې د (اورمزد) په ډول موجود دی. که موږ دا نوم تحلیل او تجزیه کړو، دوې ټوټې دي (اهور = اور) دوهم (مزدا) او په دې ډول دا دواړې ټوټې په پښتو کې ریښه لري، تاسې دمخه د سنسکریت په څېړنه کې د (مزدا) د کلمې نظایر او امثال او ریښې په پښتو کې ولیدې؛ نو یې دلته تکرار ښه نه دی، فقط د لومړۍ ټوټې تحلیل دلته ولولئ اوستایي (اهور) د (هور) په شکل اوس په پارسي ادب کې موجود دی چې معنا یې نور، لمر ده؛ ځکه چې هر وخت د اوستا

[۱] فرهنګ نظام، ج ۱، ص ۴۸۸.
[۲] د خاوري ایرانیانو تمدن، ج ۱، ص ۱۴۱.

(هـ) پـه سنسـکریت کـې پـه (س) اوړي؛ نـو دا کلمـه پـه سنسـکریت کې سور او سوریا شوې ده، چې لمر ته ویل کېږي[1].

فردوسي وایي:

از ویست شادی وزویست زور
خـداوند کیوان و ناهید هور

ځکه چې له هور څخه مقصد رڼا او بیا لمر و؛ نو له دې جهته کلـه سـتوري او طـالع تـه هـم مناسـبتاً (هـور) ویـل شـوی دی، فردوسي وایي:

به یکبارگی تیره شـد هور تو
کجا شد چنان مردی و زور تو؟

پـه پارسـو کـې د اوسـتا (هـ) پـه (خ) هـم بـدلېږي؛ لکـه چـې دمخـه هم ویـل شـوي دي؛ نـو دغـه کلمـه (خـور) هم شوه، چـې لمـر تـه وایـي دوکتـور ګیګـر هسـې شـرح ورکـوي، چـې: یعنـې لمـر او نـور چـې د اهـورا مـزدا مخلـوق دی، د نورالانـوار او ضـیای مطلـق پـه مفهـوم هم و[2].

پخوانـو انسـانانو رڼـا او نـور مقـدس ګڼـل او احتـرام یـې کـاوه؛ ځکـه نـو دوی لمـر پـه اسمان کـې مقدس ګاڼـه، چـې د نـور منبـع دی او پـه مځکـه کـې یـې بیـا د نـور منبـع (اور) بالـه او مقـدس یـې ګاڼـه؛ لکـه چـې پـه ویـدا او اوسـتا دواړو کـې د اور پـه نمایندګـۍ اربـاب انـواع شـته، مـثلاً د ویـدا یـو مشـهور رب النـوع (اګنـي) یعنـې (اور) دی، چـې د دوی پـه عقیـده یـې لمـر، برېښنـا او اور درې بدنونـه دي او د رڼـا او اور د تقـدیس عقیـده پـه اوسـتایي آریایـانو کـې هـم

---

[1] فرهنګ نظام، ج ۵.
[2] تمدن ایرانیان خاوري، ج ۱.

وه[1] ګیګر وایي: په مځکه کې د ټولو رڼاوو مرکز (اور) دی او بېله اسماني رڼا دلته د هرې رڼا منبع (اور) ګڼل کېږي؛ ځکه نو پاك شی بلل شوی دی او د اسماني رڼا منبع (لمر) هم د مزدا د ابدي رڼا نماینده ګڼل کېده.

دغه د اهورا یا هور یا اور کلمې دي چې (واو) یې په (ی) هم اوښتی او (هېربد) ځنې جوړ شوی، چې اصلاً باید (هوربد ـ اوربد) وي.

هور بذ د زردشت لقب دی او معنا یې ده (د اور خدمتګار) یا (اور مشر) عربو دا کلمه هربذ کړه، چې جمع یې هرابذه ده، علامه خوارزمي وایي دا د فرس پهلوي لغت دی او معنا یې خادم النار او عبدالنار ده[2].

په پارسو ادب کې هم هیربد د زردشت د لقب په ډول استعمال شوی دی: (ندانم که آن هیربد را ه کشت؟) له دغو ټولو تاریخي او لغوي څېړنو څخه تاسې ته ښکاري چې په مځکه کې (اور) د اسمان (اهورا ـ اور) نماینده و او دا پښتو کلمه په اوستا کې په لوړو صورتو موجود وه، کله یې معنا رڼا، کله لمر او کله اور ده.

پوهان وایي چې: په ویدا کې (ورن) یو رب النوع دی چې دغه کټ مټ د یونانیانو (اوري ناس) او د اوستا (اورمزد) دی او ددې نوم ماده او عنصر هم (ور) ده[3]. نو که دې کلمو ته سړی خیر شي، لومړی جزو یې دغه پښتو (اور) دی، (ور= اوری = اور) چې د ایران د هخامنشي دورې د زړې پارسي په کتیبو کې

---

[1] تمدن ایرانیان خاوري، ج ۱، ص ۱۶ـ۱۷.

[2] مفاتیح العلوم، ج ۱، ص ۱۶ـ۱۷.

[3] د ویدو تعلیم، ص ۱۸.

هم (اورمزد) راغلی دی[۱].

نو که ددغه لغوي تحلیل له رویه تاریخي مواد هم په نظر کې ولرو او د اوستا د (اهوره = مزده) معنا ورکړو، باید داسې ووایو (نمنځلی اور) یا (مجلله رڼا) یا (د عبادت وړ رڼا) چې ذات واحد لاشریك دی: (الله نور السموات والارض).

ددې کلمې اوستایي ترکیب هم د پښتو سره سم دی: ځکه (مزدا) چې صفت دی تر اهورا موصوف دمخه دی، په دې ډول (مزدا اهورا)[۲]، چې له دغه ځخه یې هم پښتو ته نژدېوالی ښکاري.

## واره VARA:

دا کلمه هم ډېره تاریخي او مهمه ده، د اوستا په وندیداد کې دا نوم راوړی او داسې ښکاري، چې په بخدي کې دا لومړی ودانۍ ده، چې یما YIMA د اهوره مزدا په امر جوړه کړه، په خپله اوستا هسې وایي:

تر ژمي دمخه په هېواد کې ډېر واښه، د ځارویو لپاره راشنه شول او اوبو ښه خړوب کړل؛ نو اوس به تر واورې لوېدو وروسته (ای یما) دونې نوکې ځای چې د پسه پښه پر اېښو کېږي، عجیب ښکاره شي!

نو ځکه ته یوه واره جوړه کړه، چې د آس د سپرلو د ډګر غوندې یې هره خوا ارته وي او هلته د پسو، غویو، سړیو، سپیو او مرغانو تخمونه او سور بربښېدونکی اور درسره یوسه!

---

[۱] آثار العجم.

[۲] تاریخ عمومي عالم. ج ۱، ص ۳۲۶.

نو له دې جهته ته جوړه کړه يوه واره چې د آس د سپرلو د ډگر غوندې يې هر اړخ وي او دا ځای خلکو ته ټاټوبی وي. يوه واره چې د آس د سپرلو ډگر غوندې يې هر اړخ وي، د غويو او پسو لپاره. هلته ته اوبه وبهوه په يوه واله کې چې يوه هاتره[1] اوږده وي. هلته ښايي چې ته مرغان پر داسې چمن کښېنوې، چې هېڅکله نه زمول کېږي، د داسې خوړو سره چې کوږتې نه ناغه کېږي. هلته ښايي چې ته يو ټاټوبی ودان کړې چې يو کور وي د لوړې خونې او غولي او دالانه سره!

هلته ښايي چې ته د سړيو او ښځو تخمونه يوسې، کوم چې ډېر لوی خورا ښه او غوره وي. پر مځکه. هلته ښايي چې ته د هر راز ژويو تخمونه يوسې، کوم چې ډېر لوی او خورا ښه او غوره پر مځکه وي، هلته ښايي چې د هر راز ونو تخمونه يوسې، کومې چې خورا ښه خوند او ښه بوی لري

له دغو ټولو تخمو څخه ښايي چې ته دوه دوه له هره ډوله څخه يوسې او په ډېر زيار يې خوندي کړې، تر څو چې هغه سړي ټول په (واره) کې هستوگن شي.

هلته نه ښايي چې ټيټی يا ځېتمو. يا ليفي يا لېونی: يا بدخواه، يا درواغجن. يا کينه کښ يا رخن (حاسد). يا وران غاښی. يا پيس استوگنه وکړي... ددې ځای په لويه برخه کې ښايي چې ته نهه واټونه جوړ کړې. شپږ په منځ کې او درې نوږ په هغه کوچنی برخه کې. د لويې برخې په واټو کې ښايي چې ته زر سړي او ښځې واچوې. په منځنی برخه کې ښايي چې شپږ سوه وي او په کوچنی برخه کې يې درې سوه. ښايي چې دغه واره په خپل طلايي مُهر ټاپه کړې او يو وار او يوه کړکی.

[1] يوه هاتره تقريباً يو ميل کېده.

ورته جوړه کړې چې په خپله یوه له بله سره ورځي.

دلته نو یما له ځانه سره وویل دغه واره چې ماته یې اهوره مزدا د جوړولو امر وکړ، زه په څه جوړه کړم؟ اهوره مزدا ورته وویل: ای ښکلي یما د ویوانګهتزو! مځکه د خپلې پښې په پونده وخره او بیا یې په خپلو لاسو خټه جوړه کړه؛ لکه کلالان چې د خپلو لوښو لپاره خټې جوړوي.

بیا نو یما دغسې وکړه؛ لکه اهوره مزدا چې ویلي وو؛ ځمکه یې په پښو وخرله او په خپلو لاسو یې خټه جوړه کړه؛ لکه د لوښو خټه.

نو یما یوه واره ودانه کړه، چې د آس د سپرلو د ډګر غوندې یې هر اړخ و او ده هلته د پسو، غویو، سړیو، سپیو او مرغانو تخمونه او ځلاند سور اور یووړ، ده جوړ کړه یوه واره د سپرلو د ډګر په شان د سړیو د ټاټوبي لپاره او یوه واره د سپرلو د ډګر په شان د غویو او پسو لپاره!

هلته ده د اوبو واله چې یوه هاتره اوږده وه، جوړه کړه او هلته یې مرغان پر داسې چمن کښېښول، چې کوږت نه زمول کېده او نه یې خواړه ناغه کېدل؛ هلته ده یو ټاټوبی ودان کړ، چې یو کور او لوړه خونه او دالان او غولی یې درلود.

هلته ده د سړیو او ښځو تخمونه یووړل، کوم چې پر دې مځکه خورا لوی او خورا ښه او غوره وو، هلته ده د هر راز ځارویو څخه چې پر دې مځکه خورا لوی او خرا ښه او غوره وو، یووړل. هلته ده د هر راز ونو څخه چې ډېرې جګې او ښه بوی لرونکې وې تخمونه کښېښوول. هلته ده د هر راز مېوو څخه چې ډېرې خوندورې او ښه بوی لرونکې وې، تخمونه یووړل. له دغو ټولو تخمو څخه ده دوه دوه یووړل او په زیار یې هلته

وساتل تر څو يې دغه واره په سرېو ودانه شوه[1].

(په وروستيو فقرو کې کټ مټ هغه دمخني د واره ودانولو اصول بېرته راغلي دي، چې دمخه ذکر شول او وايي چې يما د غسې وکړه؛ لکه چې امر ورته شوی و، څو چې واره ودانه شوه).

په دې ډول اوستا د واره د ودانولو نقشه مفصله کاږي او له دې څخه هسې ښکاري، چې يما د اهوره مزدا په ښوونه واره جوړه کړې اوپه هغه کې يې د مدنيت لومړی اساس ايښی و.

واره په بخدي کې وه او تر اوسه يې هم آثار د نوبهار په نامه شته، هغه وخت چې د يما په دغه تاريخي تاتوبي کې زردشت راوپاڅېده؛ نو دده له درو زامنو څخه يو چې يورو تادنره URVATADNARA نومېده ((واره مشر) تاکل شوی و، يعني TEMPORAL LORD OF THE VARA[2].

د اوستا دا (واره) وروسته عجيب تاريخ لري او هم دا کلمه د زمانو د تېرېدلو سره هسې رنګونه مومي، چې کورټ نه پېژندله کېږي؛ څکه چې په پښتو کې يې ريښه شته؛ نو دلته څه نه څه ددې لغت تاريخي او ادبي تحولات بيانوم:

په سنسکريت کې له دغې ريښې څخه ډېر کلمات جوړ شوي دي مثلاً واړ VAR يعني محوطه، ځای، د هندوانو د ستي کولو ځای. واړه VARA د يو ښار ځلورمه برخه، يو ځای چې د هرې طبقې خلک په کې اوسي. واري محوطه، غولی دربار، باغ[3].

د سنسکريت (واړه) (د) اوستا له (واړه) سره هم په تلفظ هم

---

[1] ولديداد فرګرد ۲ يما، ۲ برخه له ۲۱ تر ۴۳ فقرې پورې.

[2] اوستا_ ص ۲۱ حاشيه د ډارمستېټر له خوا.

[3] هندي قاموس، ص ۷۶۱.

په معنا کې يوه ده او دا يوه آريايي پخوانۍ کلمه ده، چې وروسته په بودايي دوره کې (وهار) شوه؛ ځکه چې دغه د بخدي (واره) هم وروسته د يوه معبد په ډول د زرتشتي دين کانون او مرکز و؛ نو هغه وخت چې د زردشت اتباع ورك شول او دده دين له منځه ولاړ؛ نو پر پښتونخوا او باختر د بودايي دين خپې راغلې او افغانستان ددغه دين مرکز شو، باميان يې له بتخانو او معابدو ډك و؛ نو هغه د اوستا واره چې د زرتشتي دين معبد و، اوس د بودايي دين کانون شوه او هغه لوړ او جګ بيرغونه، چې د بخدي ښار يې په نامه يادېده د (لوړو بيرغو ښکلی ښار) اوس د بودا د اتباعو له خوا لوړ شول؛ نو دوی د اوستا (واره) په بودايي اصطلاح (وهار) تبديله کړه او هغه زرتشتي آتشکده بتخانه شوه او دغه (وهار) و چې وروسته بهار شو او په اسلامي دوره کې دغه د بخدي معبد (نوبهار) باله کېده[1].

که څه هم ځيني ليکوال لکه د هند مولانا سيد سليمان ندوي، په "تعلقات هند و عرب" کې دغه معبد کورټ يو بودايي بودتون ګڼي او وايي چې بلا ذري مؤرخ (۲۴۷هـ) عربو د بريو پر وخت ډېر داسې وهارونه په سيند کې ښوولي دي، چې سرې جنډې به يې درلودې[2] مګر لکه نور محققين چې وايي لومړی دا د بلخ (وهار) يوه زرتشتي آتشکده وه[3]؛ وروسته چې بودايي مذهب راغی؛ نو دا ځای يو بودايي بودتون (بتخانه) شوه، مشهور مستشرق زخاو هسې وايي چې د (نوبهار) کلمه اصلاً

---

[1] تعلقات هند و عرب ص ۱۲۲.

[2] فتوح البلدان، ص ۴۳۷.

[3] د براون تاريخ ادبيات ايران، ص ۲۵، ج ۱.

(نو وهار) او بودایي خانقاه وه[1].

برتهالډ W. BARTHALD نومي مستشرق همداسې وايي، چې د يوه چيني سياح او ابن فقيه له بيانه هسې ښکاري، چې دغه نوبهار د بودايانو (نو وهار) و[2]. په دې کې شك نشته چې د بلخ واره چې په اوستا کې يې ذکر شوی دی، د زرتشتيانو مرکزي معبد و، مګر د اسلام د راتګ پر وخت يعنې په شپږمه عيسوي پېړۍ کې ټول تاريخي روايات دا ښکاره کوي چې دا ځای بودايي بودتون و، مثلاً هيوان تسنګ چيني سياح چې په شپږمه عيسوي پېړۍ کې بلخ ته راغلی و، دغه معبد يو بودايي بودتون ښکاره کوي[3].

او دا هغه وخت دی، چې تر ده وروسته نو اسلامي فاتحين دلته را رسېدلي دي او په دغه وخت په سنده کې هم د (نوبهار) په نامه بودايي بتخاني موجودې وې[4] چيني زاير هيوان تسنګ چې دمخه يې ذکر وشو، د بلخ دغه معبد (وهارا) بولي. دی وايي دلته دوه بودتونونه موجود وو، چې يو (ويهارا) بلل کېده بل (ناواو يهارا) يعنې (نوبهار) چې اسلامي مؤرخين هم د (نوبهار) ذکر کوي، مسعودي وايي د نوبهار عمارت ډېر پوخ او جګ و، زرغونې جنډې په نيزو پېيلې لوړې پر رپېدې، ځلورو خواوو ته يې دېوالونه وو او دا جنډې دونې لويې وې چې له لېرې ښکارېدې[5].

---

[1] د براون تاریخ ادبیات ایران، ص ۲۵، ج ۱.
[2] د کتاب الهند انګرېزي مقدمه، ص ۳.
[3] انسایکلوپیډي آف. اسلام ج ۱، ص ۶۶۴.
[4] انسایکلوپیډي آف اسلام ج ۱، ص ۶۶۴.
[5] چچ نامه د الیټ ترجمه، ص ۱۵۰.

ابـن الفقیـه همـداني وایـي: نوبهـار برمکیـانو جـوړ کـړی و، دوی د بتـانو پرسـتش کـاوه، دوی چـې د قریشـو د مکـې حـال واورېـده؛ نـو دا معبـد یـې جـوړ کـړ، چـې نـوم یـې (نوبهـار) و، یعنـې نـوی. ددې ځـای یـوه ګیـده (اشبت) سـل ګـزه لـوړه او سـل ګـزه ارتـه وه، شـاوخوا یـې د متولیـانو (۳۶۰) کـوټې وې مشـر متـولي یـې (برمکـا) نومېـده د چـین او کابـل پاچاهـان د دوی پـه مـذهب وو او لـوی بـت ته یې سجدې کولې[1].

یـاقوت حمـوي چـې یـو اسـلامي مشـهور جغرافیـا لیکـونکی دی، د (۶۰۰ هـ) په حدود کې هسې لیکي:

برمکیـان تـل پـه بلـخ کـې معـزز وو، د (نوبهـار) ودانـي پـه دوی اړه درلـوده، چـې څلـورو خـواوو تـه یـې بوتـان ولاړ وو؛ څکـه چـې پـر دې ودانـۍ هـر کـال پـه پسـرلي کـې خلکـو ګلونـه اچـول؛ نـو پـه (نوبهـار) مشـهوره شـوې وه. ددې ځـای لـوړې جنـډې لـه بلخـه پـه ترمـذ کـې ښکـاره کېـدې؛ د هندوسـتان، چـین او کابـل پاچاهـان د دوی په مذهب او بت پرست وو[3].

قزوینـي داسـې وایـي: پـه بلـخ کـې د نوبهـار ودانـۍ تـر ټولـو لویـه بتخانـه وه، چـې پـه ورېښمـو او جـواهرو سـنبال شـوې وه، سـل ګـزه لوړه او سل ګزه ارته وه، برامکه ددې ځای اصلي متولیان وو[4].

د اسلامي مؤرخینـو لـه دغـو روایـاتو څخـه هـم د بلـخ د (نوبهـار) د ودانـۍ شـهرت معلومېږي او ښـایي چـې هغـه قدیمـه (واره) ورانـه شـوې وي او لکـه یـاقوت چـې وایـي بېرتـه د برمـك لـه خـوا ودانـه

(۱) مروج الذهب ج ۴، ص ۴۸.

(۲) کتاب البلدان، ص ۳۲۳.

(۳) معجم البلدان، ج ۸، ص ۳۲۱.

(۴) آثار البلاد قزویني، ص ۲۲۱.

شوې او (نوبهار) بلل شوې وي[1].

په هر صورت دلته زموږ مقصد دا نه دی چې د نوبهار تاریخ ولیکو، فقط ددغو تاریخي روایاتو په سیوري کې غواړو، چې ددغه نامه لغوي تحلیل وکړو او په پښتو کې یې هم ریښه ومومو:

تاسې ولیدل، چې اصله اوستایي کلمه (واره) وه، په سنسکریت کې په لږ تغییر (واړه) شوه، چې معنا یې ښار او محوطه او کلا غوندې وه؛ ځکه چې د بخدي واره د زردشتي مذهب مرکز و او بیا نو د بودایانو بودتون ځني جوړ شوی و، په دې لحاظ په اسلامي دوره کې هغه بودایي (وهاره) هم لفظاً هم معناً لږ څه واوښته او لکه دمخه چې تاسې د هر نور مثلالونه ولیدل (و) په خپل هم مخرجه حرف (ب) بدل او (بهار) شو، بیا (نَو) یعنې نوی هم ورسره زیات شو، (نوبهار) او تر اسلامي درېمې پېړۍ پورې دغه بودتون و او کله چې لوړ مو ولوستل د عربو مشهورو مؤرخینو یې ذکر راوړی دی.

د بهار کلمه په پارسو کې د ېرې معناوې لري، چې یوه مشهوره معنا یې بتکده هم ده، شمس فخري وایي:

رسید موسم نوروز کز نسیم بهار
شـود یا تین آراسته میان بهار

فرالاوي وایي:

نه همچون رخ خوبت گل بهار
نه چون توبه نیکویی بت بهار

---

[1] معجم البلدان، ص ۳۲۱، ج ۸.

نظامي وايي:

بهـــار دل افروز در بلخ بود[1]
کـــز و سرخ را دهان تلخ بود

لـــه دغـــو بيتـــو څخـــه د بلـــخ د بهـــار ښکلـــیٔ تـــوب او ښـــايي ښکاري، اما له لاندې اسنادو څخه يې معنا ښه څرګند پږي:

منصور رازي وايي:

بهار بتانست و محراب خوبی
بروی دلارام و زلـــــفين دلبر

فرخي وايي:

هنگام خزان است و چمن را بدر اندر
نَـو نَوز بت زرين هر سوی بهاريست

بل ځای وايي:

چـــه شهر شهر بدو اندرون سرای سرای
چـه کاخ کاخ و بدو اندرون بهار بهار[2]

پـــه حقيقـــت کـــې دغـــه د بتکـــدې معنـــا (بهـــار) تـــه مجـــازي ده، اصلاً خـو ودانـی او کـلا غونـدې يـو شـی و او دغـه حقيقـي معنـا يـې اوس پـه پښتـو او پاړسـو دواړو کـې پـاتې دي. پـه پاړسـو کـې (بـاره) او بارو د هار او کلا په معناوو شته؛ لکه چې آقاني ويلي دي:

صـــد باره بر آورند بهتر
صد باره ز بارهٔ سکندر[3]

د پاړسـو ديـوار پـه کلمـه کـې هـم وار پـه خپـل اوسـتايي شـکل

[1] فرهنګ نظام، ج ۱، ص ۷۷۶.
[2] لغت فرس اسدي، ص ۱۲۴.
[3] فرهنګ نظام، ج ۱، ص ۵۶۲.

موجود دی، چې په پښتو کې (ر) په هم مخرج حرف اوښتي ده او (ديوال) وايو، اما په خپله هغه پخوانۍ کلمه (واره) هم په پښتو کې په هغه زاړه مفهوم شته. فقط (و) په (ب) اوښتی او (باره) شوی ده، چې (باړه) هم تلفظ کېږي.

باره په اوسنۍ پښتو کې د اوبو بند او ډبرين ديوال په معنا ده، چې کلا او حصار ته ورته وي او پر کښت او غوجل يې راګرځوي. په اوستا کې چې کومه واره د غوجل لپاره يما جوړه کړې وه، شکل او لغت يې تر اوسه په پښتو کې موجود دی.

دا کلمه په پښتو ادب کې هم وه لکه چې خوشال خان وايي:

که زړه دې وار کا ژبه اقرار کړه
مات دي د پند د باړې بندونه

يعنې د پند د ديوال او حصار بندونه مات دي او اثر نه لري.

رحمان بابا وايي:



باړه وتړه نور هله زراعت کړه
تقوا دار شه هله تمه د جنت کړه

باره يا باړه د محوطي او داسې ځای په معنا هم راغي، چې تر کلي دباندې يې د بازيو لپاره جوړوي او شاوخوا يو لنډ ديوال پر راګرځوي؛ لکه په دې لنډۍ کې:

دا اوسني داسې زلمي دي
په ساګو ډک شي په تيندك باړو له ځينه

اوس نو موږ له دغو تاريخي او لغوي څېړنو څخه دغه نتيجه اخلو، چې په لومړي سر کې د کوټ، حصار، کلا او ديوال لپاره چې پر يوه ودانۍ راګرځېدلي وي، په آريايي ژبو کې عنصري توري (و ـ ب) او (الف) او (ر ـ ړ) دي، چې کله (ر) يا (ړ) په (ل) هم اوړي. ددغه مفهوم لپاره په اکثرو آريايي ژبو کې متحد اشکال

موجود دي، په دې ډول: اوستا: واره= وار VARA د یما ودان کړی ښار په بخدي کې.

سنسکریت: واړ VAR محوطه، ځای د دېوال په منځ کې ځای.

سنسکریت: واړ VARA د یوه ښار څلورمه برخه.

سنسکریت: واړي VARI غولی، دربار، باغ، محوطه.

بودایي: وهار VAHAR معبد، بودتون.

زړه پاړسي: بهار: BAHAR بتکده، د بلخ د نوبهار معبد.

پاړسي: باره BARA بارو BARU حصار، کلا.

پاړسي: (دیوار) اخرنی جزو (وار) VAR.

انګلیسي: وال WALL د دیوار په معنا.

پښتو: باره BARA: یا باړه، بند، دېوال، حصار، کلا.

پښتو: د دېوال اخرنی جزو وال WAL.

په دې طول نو د اوستا تاریخي نوم (واره) ریښې په ټولو آریایي ژبو مخصوصاً په پښتو کې کټ مټ شته او له دغه څخه هم د پښتو تاریخي رابطه له اوستا او بخدي سره ښه ښکاري.

د تلفظ او معنا لږ څه تحول او تغییر هم د ډېرو پېړیو تېرېدلو اثر دی او په پښتو کې چې کوم مفاهیم (باره) لري، هغه اصلي تاریخي مفهوم ته ډېر نژدې دی، دا هم باید دلته هېر نه کړو چې له دغې ریښې څخه (هار) تر اوسه هم د ډېرو ځایو په نومو کې شته. او په ښکاره د حصار او ښار معنا لري، مثلاً کندهار، ننګرهار، چپرهار، نندهار چې دا ټول د ځایو او ښارونو نومونه دي او موږ ته ښکاره کوي چې دغه ریښه د ودانۍ، ښار، حصار په مفهوم له قدیمه موجوده وه او اوس هم شته.

دلته دا خبره هم د ویلو وړ ده، چې د (نوبهار) نوم تر اوسه هم په بلخ کې موجود دی، د بلخ د وران ښار جنوبي دروازه تر اوسه هم (دروازه نوبهار) بولي او لکه محمد صالح ورسجي چې د (۱۰۰۶هـ) په حدودو کې لیکي په دغه وخت کې چې لاد بلخ ښار ودان و او شپږ دروازې یې درلودې، یو ور یې (نوبهار) نومېده، چې بعضو خلکو دروازه سلطان احمد یا دروازه بابه قو هم باله[1].

## بامي BAMI:

دمخه تاسې د (پکهت ـ پښت+ پښتون) او (بخد ـ بخدي ـ بلهیکا) کلمو په تطبیق او نژدې والي کې د (بلخ او باختر) د نامه ریښې ولیدلې او دا هم درته معلومه شوه، چې پښتون کام په پښتونخوا کې تر خپرېدو دمخه د بخدي په ورشوګانو کې و؛ نو ځکه د بخدي او بختي او پکهت او پښتون نومونه هم سره نژدې او شریك او له یوه اصله دي. له خورا قدیمې زمانې د پخدي یا بلخ ښار یو صفت له ځانه سره لري، چې دغه صفت په اوستا کې یو ځای سریرا SRIRA یعنې (ښکلی) ذکر کېږي او وروسته هم دغه صفت بامیك یا بامي دی، چې معنا یې ځلانده یا ښکلی ګڼله شوې او په پارسو کې بلخ درخشان یا د دقیقي شاعر په اصطلاح "بلخ ګزین" او د مسعودي مؤرخ په ترجمه په عربي "بلخ الحسنا" بلل شوی دی.

جیکسن معروف مستشرق وایي، چې: د اوستا یوه پهلوي نسخه په سمرقند کې پیدا شوې او د اتم مسیحي قرن ده، په دغه نسخه کې راغلي دي چې د ویشتاشت زوی په بخل بامیك

---

[1] د بلخ مزارات، ص ۵۵ قلمي؛ د بهار او نوبهار تفصیل په فضایل بلخ کې هم وګورئ.

BAKHL BAMIK کې د نوازك NAVAZAK ښار جوړ کړ[1]. دار مستتېر وايي چې بامیك د درخشان معنا لري او په اوستايي ژبه او زند کې یې ریښه بامیه BAMYA ده، چې څلاند ته وايي[2].

له دغې تاریخي پلټنې څخه ښکاري چې بامیك زړه اوستايي کلمه ده، چې په پهلوي ژبه کې هم پاتې وه او وروسته په پارسو ادب کې (بامي) شوه، د پارسو ادب په لومړیو آثارو کې دا کلمه وینو مثلاً فرخي سیستاني چې د (۴۲۹هـ) په حدودو کې مړ دی وايي:

مرحبا ای بلخ بامی همره باد بهار
از در نوشاده رفتی یا ز باغ نوبهار

حکیم اسدي طوسي په (۴۵۷هـ) هسې وايي:

بفروخترین حال گیتی فروز
سپه راند از مل شه نیمروز
سوی شیرخانه به شادی و کام
که خوانی ورا بلخ بامی با نام[3]

فردوسي طوسي د (۴۰۰هـ) په شاوخوا کې وايي:

سوی بلخ بامی فرستاد شان
بسی پند و اندر زها داد شان

یا دا:

درم بستند از بلخ بامی برنج
سپرد و نهادیم یکسر بگنج[4]

---

[1] (د ویلیم) جیکسن زور استري ښوونې، ص ۲۷۲.
[2] د زند اوستا فرانسوي ترجمه؛ ج ۱، ص ۸ نوټه ۱۴.
[3] گرشاسپ نامه ص ۳۳۵.
[4] شهنشنامه، ج ۳، ص ۱۲۸۵، ج ۶، ص ۴۸۲.

علامه البیروني د (۴۱۰هـ) په حدودو کې د بلخ ذکر کوي او وايي: بلخ و اسمه فی القدیم بامی[۱]. لکه لوړ چې مختصراً در ښکاره شوه، بامی تل له بلخ سره یو ځای راغلی دی او د استعمال له ډول او مورد څخه هم دا څرګندېږي، چې بامي ددې ښار لقب و او یا ددې ښار په صفاتو او جغرافیوي اوضاعو اړه لري، چې قدماوو بامي بللی دی.

د پارسي ژبې د لغاتو پلټونکو او فرهنګ لیکونکو هم ددغې کلمې معنا لکه د استعمال له مورده چې ښکاره کېږي؛ ضبط کړې وه او فرهنګ لیکونکي داسې وايي: ((بامي د بلخ لقب او تلفظ يې د راضي پروزن کېږي))[۲].

د بامي کلمه چې سړی واوري، ژر يې فکر د باميان خوا ته هم ځي، چې باميان هم یو تاریخي ښار دی او ښايي چې د بلخ بامي او باميان تر منځ تسمیوي اشتراك هم وي[۳]، بعضې مؤرخین داسې هم لیکي چې بلخ بامي د بلخ باميان په نامه ذکر شوی دی. بامي او باميان دواړه مشهور دي[۴] زکي ولیدي توغان چې د اسلامي آثارو او زړو کتابو پېژندونی او د استانبول د پوهنتون د تاریخ استاد او پوهاند و، وايي ښايي د باميان نوم له بامي څخه اخیستل شوی وي؛ نو باميان باید بلخیون یعنې د بلخیانو په معمارۍ او ښايي چې د باميان ښار د بلخ د خلکو ودان کړی ځای وي[۵].

---

[۱] قانون مسعودي، ص ۴۳.

[۲] فرهنګ نوبهار؛ ج، ص ۹۸.

[۳] فرهنګ انندراج، ج ۱، ص ۴۷۸.

[۴] ګنج دانش ص ۱۱۴.

[۵] د زکي ولیدي توغان حواشي پر قانون مسعودي ص ۴۳.

لکه چې د دغو محققو تاریخ پوهانو رایه ده، باید هم ضرور د بامیان نوم له بامي سره اړه ولري؛ ځکه چې دا دوه معروف او مشهور ښارونه هر وخت تر یوې اداري لاندې وو. یو ثقافت یې درلود، د یوه مدنیت مراکز وو؛ نو لېرې نه ده چې موږ د زکي ولیدي خبره ومنو او د ګنج دانش په روایت ویسا وکړو.

اوس چې تاسې ته تر یوې اندازې د بلخ بامي د نامه تاریخي او ادبي شهرت ښکاره شو؛ نو د بامي د کلمې شرح د پښتو ژبې له خوا هم لاندې ولیکم: چې دغه کلمه اصلاً پښتو ده او دا نوم هم پښتو دی، د پښتو په اسماء الرجال کې موږ د بامي نوم اوس د یوه قوم په ډول وینو، بامیزي د ابدالیو له څېرك تپې څخه د پوپلزو په ښاخ کې یوه پښه ده[1] او ددې قبیلې افراد تر اوسه هم (په) قندهار کې شته، د قندهار په اوسني ښار کې یوه مخصوصه محله د بامیزو کوڅه بلل کېږي، ددې قوم په نامه ده. په دې ډول خو بامي یو عَلَم یعنې د سړي نوم دي او موږ ته دا راښکاره کوي چې دا کلمه د نامه (اسم) په ډول زموږ په اسلافو او پخوانو کې مستعمله وه او دوی بامي پر سړو نوم اېښوه.

که څه هم د علمي قانون له رویه اسماء او اعلام معلول په علت نه دي؛ مګر بیا هم د یوه علم اطلاق پر سړیو باندې بې له کومې نژدې یا لېرې وجه تسمیې نه وي او کومه رابطه د اسم او مسمی تر منځ هم کله کله موجود ېږي، که موږ د پښتو اسماء الرجال او اعلامو ته ځیر شو، دا به راښکاره شي، چې د دوی په پخواني ژوندانه کې د قدرت او د طبیعت له مظاهرو سره رابطه ټینګه وه، یعنې دوی د یوه د نوم اېښوولو پر وخت د هغو شیانو نومونه اخیسته، چې هغه شیان د دوی په حیات کې دخیل وو او

[1] حیات افغاني ص ۱۱۸.

دا هم هغه د طبيعي محيط يوه غير شعوري اغېزه ده، چې پر ټولو مخلوقاتو باندې جاري ده او په پاى كې د اجتماعي پوهانو له خوا دغه قانون د ((تطابق محيط)) په نامه يادېږي، ښه اوس به نو وګورو چې بامي د څه شي نوم و او له كومې خوا راغى، چې د پښتو په نومو كې يې ځاى ونيو، پښتانه د ګلانو سره ډېره علاقه لري او د دوى په غرو كې طبيعي او غرني ګلان خورا ډېر كېږي، مثلاً په پښتنو كې جنډي خان، يو بل ګلاب، غاټول او دغسې نور ډېر نومونه شته، چې هر يو د يوه ګل نوم دى، بامي هم ددغه ډول نومو څخه ګڼل كېږي دا اوس ښكاره او څرګند ده او زباده شوې ده، چې بامي هم د يوه ګل نوم و، مثلاً شيخ اسعد بن محمد سوري د (۴۲۵هـ) متوفى چې د پښتو يو خورا پخوانى شاعر دى په يوه قصيده كې وايي:

نه غټول بيا زرغونېږي په لاښونو
نه بامي بيا مسيده كا په كهسار[۱]

غټول يا غاټوى يال ختهول خو موږ پېژنو، چې لاله دى؛ مګر بامي زه تر اوسه نه پېژنم، چې د كوم ګل نوم دى، ښايي چې غټول د لاله عمومي نوم و او بامي يې بيا مخصوص خاندان او فرعي قسم وي؟

موږ ته دا هم ښكاره ده، چې په بلخ كې تر اسلام دمخه يو معبد و، چې نو وهار يې باله او شرح يې دمخه راغله. دې بودتون لوى لوى عمارتونه او جګې جنډې درلودې چې له لېرو ځايو څخه يې خلك ليدلو ته ورتله، د مؤرخينو په قول يې بيرغونه په ترمذ كې دوولس فرسخه لېرې ليدل كېده[۲].

[۱] پټه خزانه، ص ۴۳.
[۲] معجم البلدان، ج ۸، ص ۳۲.

که موږ په تاریخي سترګو وګورو، ددې بیرغو آثار په خورا پخوانۍ زمانه کې هم وینو؛ ځکه چې په اوستا کې هم بخدي د جګو او لوړو بیرغو هېواد بلل کېږي!

د ګلانو استعمال او وجود د بلخ په نوبهار کې هم له قدیمه و؛ ځکه چې هغه معبد به هر کله په ګلو ښکلی و، حتی دا رسم اسلامي مؤرخینو هم لیدلی و. یاقوت حموي چې خپل کتاب یې تر (۶۰۰هـ) وروسته کښلی دی د عمربن الازرق اکرماني په روایت لیکي چې نوبهار په بلخ کې یو مشهور او لوی معبد و، چې هر کله به په حریرو او نورو ښکلیو او قیمتي ټوکرانو پوښلی و او د هغه ځای د خلکو دا دود و چې یوه نوې او ښه بنا به یې جوړه کړه؛ نو په ګلانو به یې پوښله او د پسرلي په وخت به یې ګلان هم پر دې نوبهار اچول او د نوبهار پر شاوخوا لکه ښار ډېرې ودانۍ وې، چې زایرین به هلته اوسېدل[1].

د یاقوت له دې روایته ښه څرګند ږي، چې په پخواني بلخ کې نوبهار و او په نوبهار کې د خلکو دا دود و چې په پسرلي به یې دا خونه په ګلانو پوښله؛ ځکه چې بامي په پښتو د ګل نوم دی او بلخ هم بلخ بامیان یا بلخ بامي بلل کېده او ددغو ګلانو استعمال د بلخ د خلکو مذهبي دود او رسم و؛ نو هېڅ لېرې نه ده، چې بلخ په همدې سبب بلخ بامي نومېده او تر اوسه هم د ګل سرخ د پسرلي مېله په مزار شریف کې جاري ده، چې د سخي په مزار کېږي.

د ادب او بلاغت په علومو کې دا خبره هم زباده شوې ده، چې لغت د زمانې د تېرېدلو او د محیط له ګرځېدلو سره سم د معنا او استعمال له پلوه تطور مومي؛ لکه چې تاسې په دې

---

[1] معجم البلدان ج ۸، ص ۳۲۰.

کتاب کې ډېر ولیدل، له حقیقت نه مجاز ته ګرځي او ډېرې نوې نوې معناوې په تقریبي ډول مومي؛ نو د زړو آثارو په استناد د بامي معنا هم دوه احتماله لري:

لومړی دا چې دا د زاړه سریرا (ښکلي) پر ځای په حقیقي مفهوم دربدلی وي؛ نو یې معنا هم ښکلې او درخشان ده، دوهم دا چې معنی یې اصلاً لکه په پښتو کې چې شته، یو ګل وي؛ ځکه چې د ګل او ښکلي توب تر منځ یوه حقیقي او ازلي او خلقي او طبیعي علاقه شته؛ نو به وروسته د مجاز په ډول د (ښکلي او ځلاند) په معنا مشهور شوی وي.

په دواړو صورتو د بامي کلمې اصل او ریښه په پښتو کې شته او لکه لوړ چې ذکر شوه. د پښتو بامي او بلخ بامي او بامیان تر منځ یوه ټینګه علاقه شته چې دلته د تاریخي او لغوي اسنادو په ویسا په لنډ ډول ښکاره کړه شوه[1].

## اسپه ASPA:

د باختر په تاریخ کې دا کورنۍ ډېر شهرت لري او په اوستایي نومونو کې د آس په نامه تسمیه خورا ډېره ده، د هغه وخت خلکو ځانونه د حیواناتو مخصوصاً د آس په نامه یادول او تر اوسه هم دغه آریایي رسم په پښتو کې شته، مثلاً ډېر خلک خپل نومونه کاټ، کورنګ، مشکي او بورخان بدي، چې د آسانو اقسام دي.

ځکه چې په باختر کې تر اوسه هم ښه آسان پیدا کېږي؛ نو له قدیمه دا رسم عام دی او د بلخ د پاچاهانو یوه مشهوره کورنۍ

[1] دا مضمون د کابل، ج ۱۳، په ۱۴۹ شماره کې هم خپور شوی دی.

داسې ده، چې د اکثرو پاچاهانو د نومو په پاى کې ((اسپه)) کلمه راځي[1] او دا نومونه اکثر هم پښتو دي.

په خپله ((اسپه)) د آس مونثه کلمه ده او تر اوسه هم په پښتو کې دا عام رواج دى، چې د مالدارۍ حساب په موئث جنس کوي، مثلاً داسې وايي فلانى زر اوښې لري، يا زر مېږې لري؛ نو ځکه په قديمه زمانه هم د آس پر ځاى (اسپه) مستعمله شوې ده، له دغو پاچاهانو څخه دغه نومونه چې اوستايي دي، کټ مټ پښتو دي، مثلاً (خو اسپه) يعنې ښه اسپه، چې لومړۍ کلمه يې هغه (خو = هو How) ده، چې د پښتو ښه او خه تر اوسه په هغه معنا شته. يا لهراسپه چې لومړى جزو يې (لهر) دى دا کلمه په پښتنو کې د موج او تند او چابك معنا لري، چې کټ مټ يې دغه معنا په اوستا کې هم درلوده؛ ځکه چې دا نوم په اوستا کې په قديم ډول اورت اسپه AURVAT ASPA هم راغلى، چې معنا يې چابك آس دى[2]، اما لهر په پښتو کې په لوړه معنا داسې مستعمل دى؛ لکه خوشال خان چې وايي:

خوار خوشحال يې لکه خس هسې لاهو کړ
چې د عشق سېلاب راوخوت لهر لهر

عبدالقادر خان وايي:

ګوره څو عالم به ورك څو به خراب کا
لور په لور د غمو سند وواهه لهر[3]

دغسې هم په دغه عصر کى چې اوستا د زرتشت له خوا راوړله کېږي، موږ ډېر دغسې نومونه وينو: مثلاً د اوستا د



---

[1] د خاورى ايرانيانو مدنيت.
[2] ګاتها ـ ص ۹۵.
[3] آريانا د بناغلي بېنوا مضمون.

بیـان لـه قـراره د زرتشـت څـولمر نیکـه هچتسـپه HAECHAT ASPA دی[1] او دا نـوم هـم دوه جـزوه لـري، هچـت، اسـپه. ځیـنې پوهـان وايـي چې: د لومـړي جزو معنـا (نم زدن، اوبـه پاشـل) دي نـو ځکـه د هغـه لومـړی جـزو د دوهـم سـره مناسبت مشـکل دی[2] مګـر کـه مـوږ وګـورو، دغـه لومـړی جـزو خـو ښکـاره پښتـو (وچـت) دی، اوس يـې (هـ) پـه (و) يـا (او) بـدلوو او چـت هـم وايـو؛ نـو (اوچتـه اسـپه يعنې جګه او قوي او مشهوره اسپه).

## کاوه KAVA:

کـاوه، کـاوي، کاويـا، کـې ـ پـه اوسـتايي دوره کـې ډېـره مشـهوره کلمـه ده او دا يـو مجلـل عنـوان و، چـې د قـوم مشـرانو تـه ورکـول کېـده. مـثلاً کـاوي يـا کـواني يـا کيـاني د بلـخ د مشـهورو پاچاهـانو د کورنـۍ نـوم دی او پـه اوسـتا کـې دا عنـوان د (ويشتاسپ) سره ذکر کېږي، چې د زرتشت حامي پاچا و[3].

دغسـې دا لقـب د ډېـرو اوسـتايي نومـو سـره راځـي لکـه کـی خسـرو، کيقبـاد او نـور. کـوي، کـاوي پـه ويدا کې هـم راځـي او هلتـه د (دانـا) معنـا لـري[4] او ځيـنې يـې د پېشـوا او پيغمبـر پـه معنـاوو اخلـي او اربـاب انواعـو تـه هـم دا عنـوان استعمال شـوی دی[5] پـه سنسکريت کې کاويه شاعر او سرود ويونکي ته وايي[6].

---

[1] يسنا ۴۷، فقره ۱۵ـ۵۳ـ۳.

[2] ګاتها ص ۹۷.

[3] يسنا ۴۶ـ۴ او ۱۵ـ۱۶ او ۵۳ـ۲.

[4] مذهب ويدي، ج ۲ ص ۲۳۸.

[5] ګاتها، ص ۹۳.

[6] هندوستانی قاموس، ۵۵۵.

په دې ډول تاسې ته ښکاري، چې د (کاوه) کلمه له ویدا او اوستا څخه ژوندۍ وه او د (دانا او سردار او روحاني مشر) په معناوو راتله. د پښتو په پخواني ادب کې هم دغه کلمه مستعمله وه او ظاهراً داسې ښکاري چې د نجابت او هوښیارۍ مفهوم یې درلود، مثلاً شیخ رضي لودي د شیخ حمید لودي ورور و تر (۴۰۰هـ) دمخه له ملتانه د سلیمان غرو ته د اسلام د تبلیغ لپاره راغلی و، دلته یې واورېده چې دده وراره (نصر ملحد شوی دی؛ نو یې یو شعر ورولېږه چې یو بیت یې دادی:

نصرا نه مو یې له کهاله

لـــودي نه یې په کاوه[1]

دلته ښایي چې (کاوه) دا معنا ولري چې په دانایي او پوهې او نجابت او سردارۍ کې داسې نه یې؛ لکه لودي، چې په دغه کلمه کې کټ مټ هغه ویدي او اوستایي زوړ رنګ شته او دا ښکاره کوي چې دغه د پښتو ریښه پخوا هم په دغه لغت کې وه.



## د ځایو نومونه:

په اوستا کې ډېر د ځایو نومونه ذکر شوي دي، چې اکثر زموږ په هېواد اړه لري، یعنې ددې زاړه کتاب جغرافیایي معلومات ټول د هغو ځایو بحث کوي، چې زموږ په وطن کې واقع دي. ددې نومو څېړنه هم موږ ته د پښتو لغات په اوستا کې په لاس راکوي او دا راښیي چې پښتو لغات او کلمات په هغه عصر کې دونې خپاره وو چې د اکثرو ځایو نومونه پښتو وو، په دې کتاب کې د اوستا جغرافیایي معلومات زموږ مقصد نه

[1] پټه خزانه، ص ۷۱.

دی، فقط د هغو ځايو نومونه تحليل کوو، چې د پښتو لغاتو ځرك په کې معلومېږي.

## مانده MANDEH:

دا کلمه په پښتو کې اوس عامه ده، مانده لويې شېلې ته وايي چې د سېل اوبه پکې بهېږي. په قندهار کې ډېر ځايونه په دې نامه اوس هم شته لکه مېل مانده، مړوندې مانده، شاشك مانده او نور.

دا نوم له پخوانو زمانو څخه د هېواد د رودو او غرو په نومو کې داخل دی، په اوستا کې ډېر داسې نومونه شته، چې آخره کلمه يې (مانده) وي.

لومړی پلا موږ د اوستا د شپاړسو آريايي هېوادو په بيان کې يوولسم هېواد هيتومنت وينو، په دې ډول: ((له هغو ښو مځکو څخه چې اهوره مزدا پيدا کړي يوولسمه رڼه او مشرفه مځکه هيتومنت HAETUMANT ده))[1].

دا نوم (لکه) ډار مستټر چې ليکي په يوناني کې اري منتس ERYMANTHUS او اوس هيرمند او هلمند بلل کېږي[2].

لکه چې ښکاره ده ددې نامه اخر جزو (منت) دی چې وروسته دا کلمه (مند) هم ضبط شوې ده او هتومند HETUMAND شوې ده[3]. په ونديداد کې دوه غرونه چې ((سيامهك)) او ((فرايېو)) دي، هم ذکر شوي دي[4]. د ډار مستټر په قول دغه غرونه په

---

[1] ونديداد فرگرد فقره ۱۴.

[2] اوستا، ص ۱۷، اوومه نوټه.

[3] بنداهيش، فصل ۲۰ فقره، ۱۶_۱۷.

[4] زمياديشت فقره ۵.

بندهیش کې د سیاك او مند SIYAK OMOND (تور غر) او وفاراومند VAFAROMAND (یعنې واورین غره) په نومو راغلي دي[1]. ددغو غرو په نومو کې (اومند) هم دغه مانده دی چې له هغه اوستایي (منته) سره نژدېوالی لري؛ ځکه چې غر او مانده سره لازم او ملزوم دي؛ نو لکه پر مانده هم د غره اطلاق شوی دی. علاوه پر دغه په دوهم نوم کې (وفار) په ښکاره دغه پښتو (واوره) ده، چې یو (و) په خپل هم مخرجه حرف (ف) اوښتی دی او ډار مستېر یې هم معنا (واوره برف) بولي.

نو له دغو تاریخي څېړنو څخه داسې نتیجه اخیستلای شو، چې د اوستا منت MANT او د بندهیش مند MEND او بیا اومند OMOND او د یوناني منتس MANTHUS او ددغه اوسني هلمند اخرني مند او د پښتو اوسنی مانده ټول سره یو دي.



علاوه پر دغو نومو ډېر داسې نومونه هم لرو، چې په پای کې یې اوس هم (مند) راځي لکه د هلمند په مقابل کې مالمند او نور.

نو له دغه جهته وایو، چې د پښتو مانده د رود او غره په معناوو له قدیمه پاتې دی او د ډېرو تاریخي نومو ریښه هم له دغه څخه اوړېده شوې ده.

## راغه RAGHA:

په اوستا کې چې د شپاړسو هېوادو نومونه راغلي دي له دغو څخه دولسم مملکت راګه RAGHA یاد شوی دی، چې

---

[1] اوستا، ص ۲۸۸_۷ نوټه ج ۲.

درې قومه پکې اوسېدل[1].

که څه هم ددې ځای د جغرافیایي موقعیت په تعیین کې پوهان مختلف دي، ځینې یې رې او آزربایګان بولي، ځینې وایي چې د بدخشان (راغ) دغه ځای دی؛ مګر دلته یې زموږ له جغرافیایي موقعیت سره هېڅ اړه نشته؛ فقط د یوه اوستایي لغت په حیث یې اخلو او په پښتو کې یې مومو.

کټ مټ دغه (راغه) اوس په پښتو کې په وښو شین دښت ته وایي چې په پووندو خلکو کې دا لغت ډېر مستعمل دی.

خوشال خان وایي:

چې تل مې ځای شو غرونه رغونه
زه دا په چا پسې مجنون صفت یم



## سپین غر *SPINGHAR*:

دا غر د هېواد په شرقي ولایت ننګرهار کې ډېر مشهور غر دی، چې هر وخت یې سر په واوره پټ وي؛ نو سپین غر بلل شوی دی او دا نوم له قدیمه تر اوسه هم شته.

په اوستا کې دا غر د سپیتا ګوناګري SPITA GAONA-GAIRI په نامه ذکر شوی دی[2] او لکه پوهان چې وایي دغه اوسني سپین غر دی، له دې نامه څخه هم پښتو کلمات په اوستا کې موندل کېږي او دا نوم په ښکاره درې توتې لري:

(۱) سپیتا چې دمخه یې شرح ولیکله شوه او دغه پښتو (سپین) دی.

---

[1] وندیداد، افرګرد، فقره ۱۶.

[2] ۱۰ یسنا، ۱۱ فقره، هوم پشت ۲.

(۲) ګونا: دا کلمه په پښتو کې د مخ (رنګ) او بڼې ته وايي مثلاً احمد ژیړ ګونه راغی یعنې د مخ رنګ یې ژیړ و، یو شاعر وايي: (ژیړه ګونه ګرځم په دربار کې د خوبانو) نو یې پخوانی مفهوم ښايي چې مطلق (رنګ او ډول) و.

(۳) ګیري د کلمې شرح د کتاب په لومړي ټوک کې ولیکله شوه چې دا قدیمه آریايي کلمه او د پښتو اوسنی (غر) ده؛ نو په مجموعي صورت ددې غره د نامه معنا داسې کېږي: سپین رنګی غر چې اوس یې د (ګونه) کلمه حذف شوې او سپین غر یې پاتې دی.

## د ځینو وسلو نومونه:

د اوستا په تاریخي کلماتو کې چې موږ یې په پښتو کې ریښې مومو، ځینې د وسلو نومونه هم دي چې اوستایي آریایانو په باخدي کې لرلې.

له دغو کلمو څخه خودهه KHAODHA ډېره مشهوره کلمه ده[1]، چې د پښتو (خول) یې په پښتو، (خود) یې په پارسو کې نمایندګي کوي. (د) یې په خپل هم مخرجه حرف (ل) تبدیل شوی دی. بله اوستايي کلمه چکوشه CHAKUSHA چې د یوې وسلې نوم و او اوس دغه کلمه په پښتو کې د (چکوښ) په ډول موجوده ده او خپل قدیم رنګ یې ساتلی دی، د دوی بله مشهوره وسله غشی او لینده وه، چې غشي ته یې ښو ISHU وایه او د غشي کلمې ته ډېره نژدې ده.

[1] ۱۳ یشت، فقره ۴۵، یشت ۱۵، فقره_ ۵۷.

## مینه، میهن:

په هغو کلماتو کې چې اوس له پښتو سره نژدې دي، د پارسو د (میهن) کلمه ده، د وطن او د استوګنې د ځای په معنی په لغت فرس کې راوړي، ((خانمان و وطن و زاد خوش و گروهی بود)).[1]

## مثالونه:

فردوسي وايي:

کوه چون تو بر جای مهمان رسد
بدین بینوا میهن و مان رسد

عنصري وايي:

بگریند مر، در ده و میهنم
کی بی سر ببینند خسته تنم



ددې کلمې ریښې د ځینو ښارو په نومو کې هم پاتې دي؛ لکه میهنه (د خراسان ښار) د خرمیثن (خورشید میهن، د بخارا یو کلی) (خثمیثن) (د خیوا ښار) کشمیهن (د مرو یوه کلا) او نور[2] پور داود یو اوسنی محقق ددې پارسي کلمې اصلي اشکال په اوستا او پهلوي ژبو کې په لاندې ډول شرح کوي:

د میهن کلمه په اوستا کې مثتهنه MAETHAN یا مثتهینا MAETHANYA، چې د اوستا په ټولو ټوکو کې لکه یشت، وندیداد، یسنا کې دا کلمه راغلې ده او معنا یې هم وطن او

[1] فغت فرس اسدي طوسي، ص ۳۶۰.
[2] فرهنګ ایران باستان ج ۱، ص ۱۱_۱۲.

مسکن ده[1].

د پارسي کوم کلمات چې له اوستا څخه د پهلوي ژبې له لیارې راغلي دي، د هغو کلماتو پر قواعدو باندې برابر د اوستا مثتهنه باید میهن شي په دې ډول:

۱ـ میهن په مجهوله یا ـ که څه هم اوس پارسو کنې د مجهولې او معروفې یا فرق نشته؛ مگر پخوا و. د اوستا کسور همزه E چې پس له مفتوح میمه راغلی دی، په مجهوله (ې) تبدیلېږي؛ لکه: د اوستا دایوه DAEVA د پارسي دیو (په پښتو: دیب) د اوستا: داینا DAENA د پارسي دین (دا کلمه سامي ریښه نه لري، آریایي ده). مثغه MAEGHA د پارسي میغ (ابر).

۲ـ د اوستا یو حرف (تهـ TH) په پارسو کې کله په ((هـ)) اوړي لکه: د اوستا میتهره MITHRA د پارسي مهر (د پښتو میر امر).

د اوست چیتهره CHITHRA چهره ((د پښتو څېره)).

۳ـ د اوستا مثتهنه اصلي ریښه میت MAET ده چې معنی یې په پارسو جای گزیدن او ماندن ده[2] او د پښتو میشت MISHT یعني ساکن او ځایي هم له دغې ریښې څخه دي.

په پهلوي کې د اوستا مثتهنه په میهن MEHAM واړول شو[3] او په ځینو ځایو کې (مان) MAN او خانك شو[4] چې د پارسي ژبې خانمان هم له دغې ریښې څخه دی او معنا یې هغه

---

[1] یسنا ۱۵ـ۱۶ فصل مهریشت، ۳۸ـ۴۴ ۵۰ ۸۰ فصل فروردین یشت، ۶۷. فصل وندیداد ۴ـ۱۹ فرگرد دې وکتل شي

[2] فرهنگ ایران ج، ص ۴.

[3] زند وندیداد ـ ۴ فرگرد اوله برخه.

[4] یسنا ۱۰، اوومه برخه.

وطن او د پښتو (مینه) ده.

۴ـ په سنسکریت کې هم مندیره MANDIRA د کور او خانه په معنی راغلې ده او دا کلمه د اوستا د (مشتهینا) پر ځای په سنسکریت ترجمه کې استعمال شوې وه[1] چې لومړی جز یې هغه (مان) او دوهم جز یې د پښتو (دېره) ده.

## نتیجه:

لکه چې لوړ مو ولیدل د اوستا مکسور همزه (AE) په مجهوله (ې) اوړي، لکه DAEVA چې دیو (د پښتو = دیب) شو او بیا (ته TH) هم په پارسو کې (هـ) او په پښتو کې مجهوله (ې) شوه؛ لکه CHITHRA چې (څېره) شوه؛ نو د اوستا مثتهنه MAETHNA هم په پښتو کې (مېنه) په مجهوله (ې) تر اوسه پاتې ده، چې د پهلوي مهن او د پارسو (میهن) او (مان) له دغې ریښې څخه دي او (مېنه) تر اوسه هم په پښتو کې وطن، اقامتګاه، کور خانمان ته وایي، مثلاً ((مېنه دې ورانه شه، احمد چېرې مېنه کړې ده؟ [2]

د پښتو لنډۍ ده:

مېنې سپېرې کډې یې بار شوې

جانان به چرته مینه کا مېنې به کړینه

په دې لنډۍ کې مېنه (وطن، اقامتګاه) او مینه (محبت) دواړه راغلي دي او فرق یې ښه معلومېږي.

---

[1] د هوم یشت سنسکریت ترجمه، ص ۵۹ـ۱۵۴.

[2] مینه په معروفه (ي) د محبت معنی لري او مېنه په مجهوله (ې) وطن او کور او اقامتګاه ته وایي، لکه دا متل: مېنه ژاړي که وینه.

## اوبه، ابان:

په اوستا کې آپ AP په سنسکریت کې آپه APA په زړه پاړسي (فرس) کې آپي API په پهلوي آپ په پښتو کې اوبه اوسنۍ پاړسي کې آب او د پاړسي په ځینو لهجو کې آو- او، یو مشترك نوم دی، د اوستا آفنت AFANT د پهلوي آپومنت APOMANT د پاړسي اوند (ظرف) د سنسکریت آپونت APAVANT یعنې اوبلن له دغې ریښې څخه دي.

په اوستا کې د کال اتمه میاشت یعنې عقرب (آپان) نومېده، د پخوانو آریایانو په اصطلاح د هغې پربښتې نوم و، چې د اوبو موکله وه. دا نوم تر ګلوبښت واره زیات په اوستا کې راغلی او د ژبې پر قدیمو اصولو برابر د آپ جمع ده، په (ان) سره، چې پر دغه قاعده برابر پخوا ډېر کلمات په (ان) جمع کېده؛ لکه اوزان، شبان، اشان، سوګندان، اندوهان او نور... په پهلوي کې آپان ډېر ذکر کېږي؛ لکه چشمك آپان (د اوبو چینه)، خان آپان (د اوبو کان)[1] په دې ډول د اوستا او پهلوي او سنسکریت او فرس قدیم ډېر کلمات د اوبو له مادې څخه جوړ شوي دي او دغه ماده د ډېرو ځایو په نومو کې شته؛ لکه د هرات اوبه چې منسوب یې او بهې و یا (اوبه تو) چې اصلاً اوبه تون و، یعنې د اوبو ځای او په دغه نامه تر اوسه یو ځای د قندهار شمال ته د تېرې او اوروزګان تر مېنځ شته او بل ځای د کوړك د غره په لمن کې له چمنه (۳۰) میله لېرې په دغه نامه پاتې دی.

## بهمن، وهومنه:

په اوستا کې د کال یوولسمه میاشت (دلو) ده، چې د پخوانو

---

[1] فرهنګ ایران ج، ص ص ۶۹.

آریایي خلکو په عقیده یوه پربښته وه، چې د ګټورو چارپایانو ساتنه ددې کار و او دا نوم دوې برخې لري: وهو VOHU او منه MANAH اول جزو وهو په فرس قدیم کې هم و هو VAHU او په سنسکریت کې وسو VASU او په پهلوي کې وه VEH پارسي کې به BEH دی. دوهم جزو یې په اوستا کې منه په سنسکریت کې منس MANAS او په پهلوي کې منشن MUISHN او په پارسي کې (منش) دی، چې دغه کلمې د یوې ریښې څخه راوتلې او هغه من MAN ده او شرح یې په دې کتاب کې راغله، من په فرس قدیم؛ اوستا کې د اندېشیدن او شناخت او بیا د آوردن معاني لري، چې په انګلیسي کې TOMEAN او په الماني کې MEINEN دی، په پارسي کې عیناً د پښتو قدیمه معنی لري، د روان، ذل په معنی؛ لکه چې فردوسي وایي:

سرش سبز باد آتش ارجمند
منش بر ګذشته ز چرخ بلند

چې اصلاً (من اش) دی.

بل شاعر قریع الدهر وایي:

یار همچون روح حیواني و مثل مردمک
که میان من در آید ګاه اندر چـــشم من

د یوولسمې میاشتې نوم وهومنه په پارسي کې بهمن او په پهلوي کې وهومن VOHUMAN شو یعني به منش[1].

---

[1] په آریایي نومو کې دا ریښه شته؛ لکه د بېستون په کتیبه کې چې منش Hakha- manish راغلی دی، هخا په اوستا او فرس قدیم کې د دوست معنا لري، یعنې دوست منش. یا اردو منش، راست منش چې په دغه کتیبه کې ذکر شوې دي. دغسې هم په اوستا کې اك منش Aka Manish چې د بهمن رقیب دی د بدمنش معنی لري؛ څکه چې اك Aka زشت بد، اسیب ګزند دی. (فرهنګ ایران، ج ۱، ص ۷۲_۷۵).

اوس به ددې کلمې دوارې برخې په پښتو کې مطالعه کوو: اوله برخه وهو یعنې ښه، اوس په (وه، واوا) کې پاتې ده، د کوچنو په ژبه کې د ښه معنی لري، مثلاً کوکو، واوا یعنې ښه او خوښ، یا (وه) چې د تعجب او تحسین پر ځای استعمالېږي او بل هم (هو) ده، چې په پښتو کې د تصدیق او تحسین په معنی راځي او هغه (ښه) معنی لري. دوهم جزو یې هغه (من) دی چې منل، مننه، منښت، من له دغې ریښې څخه تر اوسه پاتې دي، چې دمخه ې بیان تېر شو.

## مېږ، پسه:

په پارسي کې پسه ته ګوسفند وایي، چې دا کلمه په اوستا کې ګئوسپینته GAOSPENTA وه. په پهلوي کې ګوسپند شوه او دا نوم په پر تولو اهلي او مفیدو جانوارانو اطلاق کېده، د پسه خاص نوم نه و، لومړی ماده یې ګئو GAO ده، یعنې غویی، (وګورئ ددې کتاب دمخنی برخه) له دې جهته د پارسي ګوسپند د پسه حقیقي نوم نه دی؛ بلکې په اوستا کې مئشه MAESHA هم وه، چې د پښتو (مېږ) او د پارسي (میش) له دغسې ریښې څخه اصلي کلمات دي. اما د پښتو (پسه) هم خورا قدیمه کلمه ده، چې په اوستا کې پسو PASU وه او پر هر کوچني اهلي حیوان دا کلمه اطلاق کېده، دا کلمه فشو FSHU هم وه، چې په لاتیني کې PECUS وه[1] او د پښتو (پیشو، پیشی_ ګربه) هم له دغې ریښې څخه دي.

[1] فرهنګ ایران ج ۱، ص ۲۲۶_۸۰_۲۱۴.

## سپی:

ځکه چې سپی د کور او رمو د ساتنې لپاره یو مفید حیوان و؛ نو په قدیمو آریایانو کې دا حیوان مانوس ګڼل کېده او د دوی په ژوندانه کې ورسره محشور و، په اوستا کې سپن SPAN و په سنسکریت کې سون SVAN و. یاقوت حموي لیکي: چې د اصفهان نوم له اسباه څخه جوړ شوی دی، چې معنی یې سپاه یا سپس ده. دغسې هم په اوستا کې سون SUN په ارمني کې شون SHUN د سپي معنی لري، په اوستا کې سپکه SPAKA سګ مانند او په فرس قدیم کې سکه SAKA یا سپکه SPAKA او په مادي ژبه کې سپکو SPAKO او په روسي کې سباك SBAKA د سپي نومونه دي[1] او د پښتو ژبې سپی (مذکر) او سپۍ (موئث) او نور صفات؛ لکه سپیتانه او سپیتوب هم له دغې قدیمې ریښې څخه دي.

## زیږګی ـ جزګی ـ ژوژک:

په پښتو خارپشت زیږګی یا جزګی بولي او دا نوم له (زیږ ـ زیګ) څخه جوړ شوی دی. د اوستا په (وندیا ۲ برخه) کې دا نوم دوژګی ـ DUJKA راغلی او په پهلوي ژوژك JUJAK او په پارسي کې ژوژه شو[2]، چې ماده یې پښتو ته نږدې ده، او دا نوم په پهلوي کتابو کې ډېر ذکر کېږي.

---

[1] فرهنګ ایران، ج ۱، ص ۲۰۷_۲۰۸.
[2] فرهنګ ایران، ج ۱، ص ۲۱۲.

## آس، اوسی:

ددې کتاب په تېره برخه کې د اسپه ASPA تر عنوان لاندې د هغې آريايي زړې کورنۍ تفصيل راغلی دی، چې د نومو په پای کې د آس، اسپه کلمه شته. دا کلمه په اوستا او فرس قديم کې اسپه وه، چې اصلي ماده يې اسپا ASPA يا اسپي ASPI وه، په سنسکريت کې اسوه ASVA ويل کېده، په لاتيني کې EQUUS وه، ددې کلمې اصلي ماده په آريايي ژبو کې (اك AK= آس AS) ده، چې د تندتګ معنی لري. په اوستا کې اسواسپه ASUASPA او د سنسکريت اسواسوه ASUASVA د تونـد او چالاك آس لرونکي معنی درلوده، د ماد د يوه پاچا نوم ايسپباره ISPABARA و، يعني آس وړونکی[1] چې د پهلوي اسپوار ASPAVAR يا اسبار ASABAR يا اسپبارك ASPABARAK يا اسوار (جمع: اسواران) له دغې ريښې څخه دي او عربو دا کلمه په اساوره سره جمع کړه[2].



د پښتو آس (نر) اسپه (ماده) دواړه دغه ريښې لري او خپل قديم اصالت يې تر اوسه ساتلی دی. دا خبره تاسې ته ښکاره شوه، چې اساساً په اوستا او سنسکريت کې (د آس) ماده د تونـدۍ او چالاکۍ په معنی وه، (س) او (هـ) هر وخت سره اوړي (لکه هوما ـ سوما) (وګورئ د مخنۍ بحث) د پهلوي ژبې آهوك AHUK او د پارسي آهو هم له دغې رېښې څخه دی؛ ځکه چې دا حيوان چابك او تېز رو دی او دا نومونه د آسو ASU له ريښې

---

[1] د کلمې دوهم جزو بره Bara د بردن او وړلو له مادې څخه دی، چې په پښتو کې اوس (وری ـ بار) پاتې دی نو دا (د آس وری) يا (د آسپبار) يا (سور= سپور) له مشترکې ريښې څخه دی.

[2] فرهنګ ايرانو ج ۱، ص ۲۲۳.

ښخه راوتلي دي چې په اوستا او سنسکریت کې د تونـد او چست او تېز رو معاني لري[1].

اوس تاسې ددې قديمې ريښې مظاهر په پښتو کې وګورئ:

آس (اسپ نر) اسپه (ماديان) اوسی (آهو) او سيلل (تنفس تيز و دراز) چې دا ټول کلمات هغه قديمه ماده (آس) لري. او خاص بيا (اوسی ـ هوسی) پر هغه قديم ډول پاتې ده، او آس يا اس، اسپه پر خپل اصالت باقي دی.

## اسپست، شپېشته:

اسپست (اسفست) هغه وابښه دي چې اوس يې په پارسي رشقه يا يونجه بولي او دا وابښه پخوا معروف وو، د آريايي مځکو مخصوص ګياه ګڼل کېده. په پهلوي ژبه کې هم اسپست و لکه چې په پهلوي کتاب اردشير پاپکان کې چې ذکر کېږي، ددې کلمې قديم شکل اسپسته ASPESTA و چې په سرياني يې PESPESTA شو او د ابن دريد عربي ليکوال په قول (ځلورمه هجري پېړی) دا کلمه معربه او فصفصه شوه، چې جمع يې فصافص ده[2] د پارسي ژبې په مازندراني لهجو کې تر اوسه هم اسپست د شپشتي په معنی باقي ده، چې مخفف ډول يې اسپس يا سپست دی بسحاق اطعمه وايي:

نخوردی يک شکم اسپست هر گز
چراگاهت بود صحرای پرخار[3]

---

[1] فرهنگ ايران، ج ۱، ص ۲۲۲.
[2] فرهنگ ايران، ص ۲۳۳.
[3] فرهنگ نظام، ج ۱، ص ۲۴۶.

دا کلمه تر اوسه هم د قندهار په پښتو کې شپشته ـ (سپسته) پاتې ده، چې کټ مټ هغه قدیم رنګ لري. فقط ځینې خلك یې (س) په (ش) اړوي.

## ۹ـ سئینه شئین:

عقاب یا شاهین (جمع معرب شواهین) په پخوانو آریایانو کې یو معروف مرغه و، په اوستا کې دوه واره سئینه SAENA راغلی دی[1] چې د اروپا اوستا آشناسانو په EAGLE ترجمه کړی او په سنسکریت کې هم سینه SAENA دی.

په اوستا کې کوه بابا ـ او پائیري سینه UPAIRI SAENA ذکر شوی دی، یعنې د شاهین تر الوتو لوړ په بندهش کې وایي: اپارسن تر البرز ورتېر لوړ غر دی چې سر یې په سکستان او پای یې په خوزستان کې دی[2]، بل ځای وایي هري رود له اپارسن څخه راوځي، هلمند چې په سکستان کې روان دی، هم له اپارسن څخه راوځي، مرو رود هم له اپارسن څخه راځي. د بلخ رود هم له اپارسن څخه په بامیکان (بامیان) کې راوځي...[3].

مارکوارت وایي چې: د اوستا او پائیري سینه او د پهلوي اپارسن د هندوکش غربي برخه یعنې د کوه بابا سلسله ده[4]، چې د فردوسي دغه تعبیر کټ مټ د هغه قدیم تعبیر ترجمه ده:

یکی کوه بینی سر اندر سحاب
که بروی نپرید پران عقاب

---

[1] اوستا، ۴۱ ټوك بهرام یشت ۱۷۰ ټوك رشن یشت.
[2] بندهش، فصل ۱۲ فقره ۹.
[3] بندهش فصل ۲۰ فقره، ۱۶، ۲۱، ۲۲.
[4] ایرانشهر، ج۲، ص ۷۳.

دا قدیمه کلمه (سئینه) په پارسي کې شاهین شوه او په پښتو کې شئین SHAEN ده، د شئین نوم تر اوسه هم پښتانه پر زامنو ږدي او لکه چې دا رسم پخوا هم و او یو اروپایي مستشرق جستي تقریباً (۲۲) نومونه د پخوانو پهلوانانو په ارمني او ترکي او عربي کې یادوي[۱]، په شهنامه کې د کابل د پاچا مهراب د لور نوم سیندخت و، چې لومړی جزو یې هغه سین- شئین اودوهم جزو یې دخت دی. یعنې د شئین لور. فردوسي وایي:

بپرسید سیندخت مهراب را
ز خوشاب بگشود عناب را

د اوستا په فروردین یشت کې هم د خلکو او کورنیو نومونه (سئین- شئین) دی[۲]؛ نو د اوستا سئینه او د سنسکریت سینه وروسته شئین شو، چې د پښتو (شئین) عیناً هغه قدیم رنګ لري اود پارسو شاهین هم له دې کورنۍ څخه دی. په واخي ژبه کې چې د پښتو یوه څانګه ده[۳]، دا کلمه شائین SHAIN پاتې ده.

---

[۱] ایراني نومونه، ص ۲۷۴.

[۲] فروردین یشت فقره ۹۷، ۱۲۶.

[۳] ګیګر الماني معروف مستشرق دی په خپل کتاب (ص ۱۶۴) کې واخي Wakhi ژبه چې اوس په پامیر او بدخشان کې لږ لږ پاتې ده د پښتو یوه شعبه ګڼي (د خاوري، تمدن ایران).

## باز، بانبه، وزر، الوځي:

ددې کلماتو قدیمه ریښه وزه VAZA ده، د وز VAZ له مصدره چې په اوستا کې د الوتلو اوپریدن په معنا ده. باز (عربي جمع، بیزان، ابواز) په پښتو او پاړسي کې د یوه مرغه نوم دی چې د عَلَم په ډول هم پر سرو اېښو کېږي، بازو، بازك، بازکو، ددې کلمې مصغر اشکال اود خلکو نومونه دي. بانبه په پښتو او په پهلوي واشه، واشك (معرب: واشق) هم له دغې ریښې څخه جوړه شوې کلمه ده[1]، د پښتو وزر (پر) او الوځل مصدر چې فعل حال یې الوځي دی هم دا ریښه لري، بزبز او بزېدل چې د حشراتو پرواز دی او پاړسي وزیدن (باد الوتل) ټول دغه کلمات هغه د اوستا قدیمه ریښه (ور= بز= باز= وان) لري.



## چرګ:

په اوستا کې د چرګ نوم کهرکتات KAHRKATAT دی چې د اسم صوت په ډول د چرګ له آوازه دا نوم جوړ شوی دی، لکه د پښتو کړ کړ- کړهار- کټهار چې اسمای اصوات دي. د اوستا په پهلوي تفسیر کې دا نوم کرك KARK شو او په پاړسو کې هم دغه لغت هغه چرګه ده، چې پر اګیو ناسته وي (لغت فرس اسدي) دغه کلمه په پښتو کې چرګ ((مذکر)) او چرګه (موٴنث) او چرګان او چرګې تر اوسه پاتې دي.



[1] فرهنګ ایران، ج ۱، ص ۲۹۹، ۳۱۴.

# عمومي مشابهت او نږديوالی

په تېرو دوو برخو کې تاسې ته ښکاره شوه، چې عموماً پښتو ژبه لومړی له ټولو آريايي ژبو بيا په تېره له ويدي ژبې او سنسکريت او اوستا سره خورا مشابهت او نږدې والی لري. تاسې وليدل چې د ويدا او اوستا خورا مهم او عنصري مواد اوس په پښتو کې داخل دي او ددې ژبې تاريخي اصالت ښکاره کوي.

اوس غواړو چې لږ څه دغه مشابهت او نږدې والی په ښه ډول څرګند کړو او خپل نظر له ويدا او اوستا څخه په تطبيقي ډول نورو آريايي ژبو ته هم واړوو. الفاظ او کلمات او نور حيه ذوات او ژوندي اشخاص دغسې مستقل شخصيت او ځانته ژوندون او د ژوندانه اصول او قوانين لري، د لغاتو او الفاظو لپاره موږ عناصر پيدا کولای شو؛ لکه له تېرو ابحاثو څخه چې ښکاره شوه، د مختلفو ژبو د الفاظو عنصر يو وي او دغه عنصر په خپل فطرت کې معاني او مفاهيم لري، چې په هره ژبه کې تطبيق کېدلای شي، په حقيقت کې کلمات او الفاظ له اصواتو څخه جوړېږي، دوه درې ږغونه د يوې معنا لپاره عنصر ګڼل کېږي او نور اصوات چې ورسره زيات شي معنی يې تغيير په مومي.

د مثال په ډول د (س ـ ت) اصوات په خپل فطرت کې د

توقـف، درېـدلو او اسـتقامت مفهـوم لـري؛ نـو د علـم اللسـان پـه اصــطلاح دغــو اصــواتو تــه د درېــدلو او توقــف او اســتقامت د مفهـوم ((عنصـر)) ويـلای شـو، پـه پښتـو ناسـته، کښېناسـتل، دغـه عنصـر لـري. د پاړسـو (ايسـتادن) هـم لـه دغـې ريښـې څخـه دي، د انګليسـي STAND, STAY, STATUTE, STATION, STAED, STOOL.

او نــور کلمــات دغــه عنصــر لــري، عــين دغــه عنصــر پــه سنســکريت کــې هــم شــته[1]، پــه اوســتا او سنســکريت دواړو کــې (استا) د درېدلو معنی لري[2].

لـه دې لنـډه څېړنـه کـې بـه دلتـه پـر دغـه علمـي اسـاس سـم د پښتـو او نـورو آريـايي ژبـو نژدېـوالی او مطابقـت څـه نـه څـه ثرګنـد کړو:

لومـړی بايـد هغـه قـانون چـې د حروفـو د اوښتلـو پـه خصـوص کـې مـو دمخـه لوسـتي و، را پـه يـاد کـړو چـې د يـوه مخـرج حـروف عمومـاً او بيـا د نـژدو مخـارجو تـوري يـو لـه بلـه سـره اوړي او کلـه د ابـدال د لېـرو مخـارجو څخـه هـم بالواسـطه کېـږي، تـر دې قـانون لاندې به کلمات وګورو:

غــويی د آريايــانو د ژوندانــه مهــم عنصــر و؛ ځکــه چــې دوی زراعـت پېشـه قـوم و، پـه پښتـو کـې ددې نـوم عنصـر (غ، و) دی پـه سنسـکريت کـې يـې ګئـو مفـرد؛ ګـاوس جمـع ده. پـه پښتـو د غويـو ګلې ته (ګورم) وايي.

دغـه مـاده پـه ټولـو آريـايي ژبـو کـې شـته، پـه زړه جرمنـي يـې (چـو) پـه نـوې جرمنـي يـې (کـر) پـه انګرېـزي يـې کـاو بـولي؛ پـه

[1] ويدك انديا، ص ۳۴.
[2] فرهنګ نظام ج ۴.

سلاوي ژبه ګوویاوو (ګورم) او په نوې سروینې ژبه ګوودار (غوبه) په روسي ګوویادینا (د غوایي غوبې) او ګوسو پودین (بادار) ګوس پوډ (خدای) ګوس پووار (د جنوبي سلاو حکام) بلل کېږي، یعنې د غویو خاوندان چې په زړه سنسکریت کې (ګوپ) نومېدل، له دغې مادې څخه د سنسکریت ګوتو (غوجل) هم دی، چې وروسته پر کورنۍ او خاندان اطلاق کېده[1].

په خپله په پښتو کې د (غویي) له نامه څخه ډېر دغسې نومونه شته، چې عنصر یې (غ، و)، (ګ، و) دی، مثلاً غویی، غوا، غوجل (اغېل)، غوبه (پاده بان) غوبون، ګوروان (پاده بان)، غوباړي (مګس حیوانات)، ګوبا (زن ګاوهیکل، احمق) ګورم، ګوار، ګویر (پاده) او نور. که دغه کلمات موږ له لرو آریایي کلماتو سره کښېږدو، یا یې د اوستا له ((ګو)) پهلوي له ((ګوو)) او د پارسو ((له ګاو، ګو)) سره تطبیق کړو، د آریایي ژبو نژدېوالی سره معلومېږي، وګورئ: په پښتو ګوار، ګویر، ګورم سره یو شی دي، دا کلمه په سنسکریت کې (ګواره) وه، چې په پارسو کې (ګاواره) شوه، چې کټ مټ هغه ګوار ته نژدې ده.

ابن یمین وایي:

چون شیر شرزه یک تنه می باش در جهان
مانند گاو چـــــشم ز گاواره بر مدار

میکس مولر مشهور د ژبو عالم لیکي: ((شعراء له الفاظو څخه اشعار او نظمونه جوړوي، که موږ هر لفظ ته په غور وګورو نو به ښکاره شي، چې دغه لفظ هم یو نظم دی، ولې چې ددې چارې ثبوت کوي چې زموږ پلرو او نیکونو پخوا کوم کوم کار کړی او کوم خیال یې په ذهن کې موجود و مثلاً د پتر (پلار)

[1] ویدك، انډیا ص ۳۶.

کلمه درې معناوې لري (۱) غذا ورکوونکی، (۲) ساتونکی، (۳) مشرتوب کوونکی. دغه درې خیالات ټینګه اړه سره لري او تعمق او څیرتوب ځنې ښکاري؛ نو هر وخت چې موږ الفاظ په علمي ډول تجزیه کوو، د انسان د دماغ ډېر مهم رازونه او اسرار راته څرګندېږي))[1].

پر دغه اساس موږ د ژبې هر لفظ یو ځانته مستقل عالم ګڼو او د تحلیل له لارې یې مهم مقاصد کشف کولای شو، تاسې دمخه (د پتې او پت) بحث په آریایي ژبو کې لومړی عنصر پا (Po) دی وروسته (ت، ر) هم ورسره ملګري کېږي. د پښتو پلار، پت، پالنه، پال، له دغې رېښې څخه دي. (پ او ت) په عنصر کې یې د ساتنې او پالنې معناوې پټې دي، وګورئ! پتري Pitri په سنسکریت کې پلار دی، ددې رېښې نور مشتقات دمخه هم د پتې په بحث کې راغلل، یوناني پتربارك (بطریق) هم دغه عنصر لري، د لاتیني پاتر، د جرمني او انګلیسیي واټر او فادر چې د ټیوټن له فادر څخه جوړ شوي دي، د ایټالوي پادري او د فرانسوي پیر ټول د (پ، ت، ر) له عنصره مشتق دي[2].

ما Ma یوه ماده ده، چې په فطرت کې د (اندازه کولو او وېشلو) معاني پراته دي؛ ځکه چې د مور وظیفه په کورنۍ کې دغه کارونه دي، تل غذا وېشي او اندازه یې کوي؛ نو په ټولو آریایي ژبو کې دغه رېښه له دغه نامه سره ځي، مثلاً د پښتو (مور) چې د لهجې په اختلاف (مېر) هم بلله کېږي، ګویا رېښه یې هغه (ما) دی چې په نورو ژبو کې (ت، ر) هم زیاتېږي. د سنسکریت ماتار؛ د اوستا ماتر، د یوناني میتر، د لاټین ماتر،

---

[1] د الفاظو د سرګذشت دیباچه.

[2] ویدك انډیا، ص ۳۸.

د روسي ماتي، جرمني متر، د انګرېزي در، ټیوټن موادئیر، د هسپانوي او ایټالوي مادري، د فرانسوي میر دا ټول له یوه عنصره زېږېدلي دي؛ بلکې ډېر نور کلمات هم لرو چې د (ما) له عنصره دي، مثلاً (ماس) چې په پښتو یې میاشت او په پارسو یې (ماه) او په هندي یې ((مهینه)) بولي، په سلاوي ژبو کې (میياټس) ده، وجه تسمیه یې داده چې میاشت وخت اندازه کوي او په اکثرو آریایي ژبو کې یې له دغې مادې څخه نوم جوړ شوی دی[1].

د ژبو ابتدایي مواد هم دغه مور او پلار او د نورو خپلوانو نومونه دي او په ټولو ژبو کې شته؛ نو د تطبیق کار هم لومړی خپله له دغو نومو څخه شروع کېږي، د مور او پلار تحلیلي څېړنه مو ولوسته اوس به یو څو نور لغتونه هم شرح کړل شي:



## ورور، خور:

د ورور عنصري حروف (و، ر) دي، واو په ((ب)) هم اوړي کله (ت) یا (د) هم ورسره راځي، اما خور (خ، ت، ر) دي چې (خ) په ((م)) او بیا په (س) او کله په ((ش)) اوړي ((ت)) کله وي، کله نه وي:

| | | |
|---|---|---|
| پښتو | ورور | خور |
| سنسکریت | بهراتر | سواسار |
| اوستا | براتر | هونهار |
| یوناني | فراتر | |
| لاتیني | فراتر | سوردر |
| ټیوټن | بروتهار | سوستار |

[1] ویدك انډیا، ص ۳۹.

| | | |
|---|---|---|
| جرمني | بردر | شویستر |
| انګلیسي | بردر | سسټر |
| ایټالوي | فراټ، فراټیلو | سواورا ـ سوریلا |
| پاړسو | برادر | خواهر |

**لور:**

د دې نامـه عنصـر (ل ـ د) او (و) او (ر) دي، پښـتـو نـوم یـې لنـډ او سپك دی د نورو ژبو د ا نسبتاً درانه دي، په دې ډول:

| | |
|---|---|
| سنسکریت | دوهي تر |
| اوستا | دګدهر |
| پاړسو | دختر |
| یوناني | تهګاتیر |
| جرمني | توختیر |
| انګلیسي | ډاټر |
| آئرش | ډیر |
| سلاوي | ډشتیر |
| رسي | ډاچر، ډاچ |



**لېور:**

د مېـړه ورور تـه لېـور وایـي، عنصـري تـوري یـې (ل = د) او (و ، ی) او (ر) دي، په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| پښتو | لېور |
| سنسکریت | دېور |
| پاړسو | اېور |
| روسي | دېور |

| | |
|---|---|
| لیتوانی | دېورس |
| یونانی | دایر |
| لاتین | لېور |

### مړ، مړ:

په سنسکریت کې (م، ر) د مرګ او هلاك لپاره عنصري رغونه دي، د پښتو (م، ړ) هم کټ مټ دغسې دي، مړ (مړه) مړتوب (مړګي) مړام (مړه مانند) مړامجا (تنبل، مانند مړه) مړینه (مرګ) ټول له دغسې رېښې څخه دي، دا عنصري توري په اکثرو آریایي ژبو کې د (هلاکت او مرګ) لپاره مستعمل دي، د پارسو (مرګ، مرده) هم ورو ته نږدې دي، اما په نورو آریایي ژبو کې یې رېښه بل راز شته.



د آریایانو لومړی ټاټوبی له دریابه لېرې و، دوی چې شاوخوا سره خپاره شول دریاب یې وپېژاند د سلاو او ټیوټن اقوام چې د بحر اسود او بالتیك پر غاړو اوسېدل هغه دریابونه ډېر طوفاني او مهلك او متلاطم وو؛ نو دوی په خپلو ژبو کې له زړې آریایي آرې (م، ر) څخه د بحر لپاره نوم جوړ کړ؛ ځکه چې بحر د دوی په نظر کې د هلاکت او مرګ ځای و، په دې ډول:[1]

| | |
|---|---|
| لاتیني | سکارم |
| انګلیسي | شوګر |
| سلاو | سکهر |
| جرمني | زوکر |

[1] ویدك انډیا، ص ۴۲.

| | |
|---|---|
| ايټالوي | زکيرو |
| هسپانوي | اشوکر |
| فرانسوي | سکري |
| عربي | سکر |
| پارسو | شکر |
| سلاوي | موري |
| لاتيني | مار |
| ايټالوي | ماري |
| هسپانوي | ماري |
| فرانسوي | مير |
| جرمني | مير |
| انګليسي | مير |



## شکر، کند

ګنی د افغانستان د مشرقي خواوو مخصوصه مېوه ده په هند کې هم ډېر دي، د ګني څخه خوږه ماده جوړوي، چې په پښتو يې (ګوړه، شکره) بولو، په سنسکريت کې نوم شر کيرا SHAR KARA دی. دا نوم داسې عام دی، چې په سامي ژبو کې هم سکر راځي، په اروپايي ژبو کې داسې دی:

| | |
|---|---|
| لاتيني | سکارم |
| انګليسي | شوګر |
| سلاو | سکهر |
| جرمني | زوکر |
| ايټالوي | زکيرو |
| هسپانوي | اشوکر |

| | |
|---|---|
| فرانسوي | سکري |
| عربي | سکر |
| پارسو | شکر |

وګورئ! عنصري توري يې (س، ش) و (ك، ګ) او (ر) په ټولو ژبو کې شته. علاوه پر دغه د شکرې پاك کړي ډول ته (کند) وايو، چې په پارسو (قند) شوی دی. په سنسکريت کې کهانډ KHAND و[1]، په اوستا کې (خئذه) شېرينۍ ته وايي؛ ځکه چې شکره او قند له هنده څخه عربستان ته وړل کېده؛ نو عربو سنسکريت کهانډ معرب او په (قند) يې تبديل کړ[2] او قند يې هم وباله، چې جمع يې قنود او قناديد راځي[3] په اروپايي ژبو کې هم کينډي او سکري کينډي شته، چې زموږ (قند) ته وايي[4].

که په غور ورته وګورو عنصري توري يې (ك = ق) او (د = ډ = ذ = ږ) دي؛ نو کهانډ او قند او کند له يوې ريښې دي او ښايي چې د اوستا (خئذه) او د پښتو (خوږ) چې دواړه د شرين په معنا دي، هم ورسره شريك وي؛ ځکه چې د (ك ـ خ) ابدال عام دی او د (د = ذ = ږ) اصوات هم سره ورته دي، (د) په (ذ) بدلېږي، په پخوانۍ پارسو کې عموماً (د) په (ذ) کښل کېده لکه ميکند = ميکنند. په پښتو د پارسو ګذر = ګودر بولي. (ذ) په (ز) اوړي ځکه، چې د يوه مخرجه دي. (ز) او (ږ) هم سره بدلېږي؛ لکه دوزخ= دوږخ.

---

[1] هندوستانی قاموس، ص ۵۹۲.

[2] فرهنګ نظام ج ۴، ص ۱۴۲.

[3] المنجد ص، ۴۷۱.

[4] ويدك انډيا، ص ۱۸.

# د تطبیق جدول



ددې څېړنې په پای کې دا جدول چې د آریایي ژبو تطبیق ښکاره کوي د کتلو وړ دی دا جدول هم ددغو ژبو خپلوي او سره نژدېوالی ښه څرګندوي او د پښتو قدامت هم زبادوي:

| پښتو | سنسکریت | اوستا | پارسو |
|---|---|---|---|
| غنم | ګودهوم | ... | ګندم |
| ښاخ | شاکها | ... | شاخ (درخت) |
| پاڼه | پرنیه | ... | برګ |
| اوبه | آب | آپه | آب |
| مخ | موکه | ... | روی |
| غوږ | ګرنه | ... | ګوش |
| زوړ | جوړن | زورا | پیر، کهنه |
| څرمن | چرمن | چرمن | چرم |

| پښتو | سنسکريت | اوستا | پارسو |
|---|---|---|---|
| کپری، کوپړی | کپنال | ... | کله |
| کشر | کنشتيهتير | کاسو | کهتر |
| مشر | مشر، مهتر | ... | مهتر |
| نو، نوم | نابهي | نافيه | ناف |
| ورون | راوني | رانه | ران |
| رڼ، ورځ | روچن | راوچه (روز) | روشن |
| ستر | ستهوير | ستاورا | بزرگ |
| مېږ | مېښ | ميشي | ميش |
| پړ | پت | پريت | ملامت |
| پيری | آپ سرا | پيريکا | پری |
| خوب | سواپ | خوفنه | خواب |
| ښاد | ... | شاته | شاد |
| سر | شيره | سره | سر |
| مستي | مستو | | ماست |
| ستوری | ستاره | ستويسه | ستاره |
| سپين | سپيت (شويت) | سپيتا | سپيد |
| خر | کهر | ... | خر |
| نوم | نام نامن | ... | نام |
| نوی | نو | نوا | نو |
| انګار | انکار | ... | اخګر |
| کال | کال (بمعنی وقت) | سرد | سال |
| وار (نوبت) | وار | ... | بار |
| کسپ | کچه چپ | کسيپه | سنګ پتش |
| کان (معدن) | کهان | کان | کان |
| [illegible] | کدا | کدا | کی؟ |
| [illegible] | جهاماتر | زاماتر | داماد |
| [illegible] | ګيري | ګيري | کوه |

| پښتو | سنسکریت | اوستا | پارسو |
|---|---|---|---|
| غرمه | گهرمه | گرم | چاشت |
| جینۍ (دختر) | جینۍ | جینۍ (زن) | زن |
| ژی | جیا | جیا | زه |
| ځمکه | جپاکه | زیم | زمین |
| ژبه (جبهه) | جهوا | هرو | زبان |
| تود | تاپ | تپت | گرم |
| لس | دس | دسن | ده |
| ملا | مدعي | میدیه | کمر |
| شپه | شپ | ششپ | شب |
| کرښ (خط) | کښل (کشیدن) | کریش | کرښ کشیدن |
| ونه | ون | ون | درخت یا جنگل |
| دوږخ، دوغښ | نوك (هندي) | دوژگه داوژگهه | دوزخ |
| ماغزه، مازغه | مچه | مزگهه | مغز |
| اننگي | انیکه | آینیکیه | پیشانی |
| گروې | گریوا | گریوه | چنبر گردن |
| شا | پرشتها | پرشتي | پشت |
| هېواد | سد | هد، هدمن | نشیمن |
| کرل | کوش | کرش | کاشت |
| مامته | ... | میتنه، میته | کشت زار |
| ښار | کشتره | خشتر | شهر |
| پوت[1] | پوتره | پوتراو | پسر |
| نیکه | ... | نیاکه | جد |
| تره (مذکر) ترورۍ (موئث) | | بهراترویه | براتوبریه عم، عمه |
| سخر، خسر | سوسوره | هوسوره | خسر |

[1] خوشحال خان وايي: ((چې دپلار په بد گویۍ سر شي پوت)) په پښتو کې د زوی معنا لري.

| پښتو | سنسکریت | اوستا | پارسو |
|---|---|---|---|
| ژمی | هیم (برف) | زیم، زیاو | زمستان |
| غښتلی | ستاتر | خشتاو | قوی و دلیر |
| دښت | دش | دش | دشت |
| غوا | ګو | ... | ماده ګاو |
| سپی | شوك | ششپان | سنګ |
| بزه (وزه) | اج | بوزیه | بز |
| ستن | ستهوت | ستونه | تون |
| وینې | شوني | وهوني | خون |
| نر | نر | نر | نر |
| ماښام | شایم | خشاف نیه | شام |
| کوښت | کوښت | ... | کشت |
| بلګ | ورګ | وریکه | برګ |
| ځنګل | جنګله | ... | جنګل |
| وریجې | بریهمي | ... | برنج |
| شیدې | کهشیر | ... | شیر |
| اس، اسپه | اشوا | اسپا | اسپ |
| چندال | چندال | ... | جندال (بیهوده) |
| مرغه | مرګه | میریغه | مرغ |



# پنځمه برخه

## پښتو او سنسکریت او اوستا ته مقایسوي کاته او په اساسي اصولوکې مشابهت

**۱) غږیوهنه، فونولوژي:**

صایت توري- زورکي- مقایسه- صامت توري.
د اصواتو تطبیق له سنسکریت او اوستا سره.

**۲) تلفظ:**

ابتداء په ساکن. خج یا ایکسینټ.

**۳) ګرامر:**

اسماء_ کمیت_ جنس_ اعداد_ افعال.
د تانیث حروف، د نفې حروف. د کلماتو د ساختمان اصول

# ږغپوهنه

# PHONOLOGY

## ږغونه او توري

د ژبې اساس هغه ږغونه او اصوات دي چې له خولې څخه راوځي دا اصوات چې سره یو ځای شي یو کلمه ځنې تشکیل کېږي. د اصواتو او ږغو د ښکاره کولو لپاره ځینې اشکار وضع شوي دي، چې هغه موږ ((حروف او توري)) بولو.

هره ژبه ځانته ځینې مخصوص اصوات لري او ځینې اصوات بیا د اکثرو ژبو تر منځ مشترك دي.

د ژبو د مخصوصو اصواتو د مقایسې له خوا موږ کولای شو، چې د دوی نژدېوالی له یو بله ومنو.

په ټولو ژبو کې ځینې توري صایت (ږغیز) وي، چې د دوی په واسطه د نورو صامتو توریو تلفظ کېږي او دغه لومړی ډول تورویو ته چې د تلفظ واسطه دي، حروف علت VOWELS وایي، دوهم ډول توري چې صامت او صحیح دي، حروف صحیحه CONSONANTS یې بولي

دلته زما مقصد دادی، چې پښتو او سنسکریت او اوستا ته د اصواتو او ږغونو د مقایسې په سترګه وګورم او تهجي حروف یې سره پرتله کړم:

## صايت توري (حروف علة) او حركات VOWELOSYSTEM:

د پښتو په الفبا کې ږغيز توري يعنې هغه حروف چې د صحيحو توريو د تلفظ لپاره کار کوي اساساً درې دي (ا ـ و ـ ی) دا توري هم په لوی سر کې هر يو دوه ډوله ږغ لري، لنډ ږغ او اوږد ږغ.

د لنډ ږغ صوت يې دادی، چې د حرکت کار ورکړي لکه په (کر) کې چې (ك) مفتوح دی، په حقيقت کې د (ك) او (ر) د ږغ ښکاره کولو لپاره د الف يوه نماينده (يعنې زور) راغلی دی او په تلفظ کې يې کومك ورسره کړی دی.

دغسې هم (و) د پېښ کار ورکوي، که سپك او لنډ ادا شي مثلاً (پر) او (پل) چې د پېښ د اظهار لپاره بايد (پور) او (پول) وليکل شي، دغسې هم (ی) په لنډ ږغ سره د زېر کار کوي: لکه خر او پس چې د زېر د اظهار لپاره بايد (ی) هم ورسره وليکله شي خير او پيس.



نو په پښتو کې دا درې توري هغه وخت صايت توري بولو، چې دمخه توري يې متحرك او دوی پخپله وچ ساکن وي. او که دغه درې توري په اوږده ږغ يعنې درانه ډول ادا شي: نو ولاړ الف او مجهول و ـ ی) ځنې جوړېږي لکه کار، نور، تېر.

اما يو بل صوت هم دغه حروف لري؛ لکه د پارسو بود او نمود يا تير او شير چې دغه راز اصوات پښتو نه لري: نو صايت توري ټول دا شکل کومي:

| توري | لنډ ږغ د حرکت حالت | اوږد ږغ |
|---|---|---|
| الف | زور (ـَ) لکه بر، لر | (آ) لکه آس، آره. - |
| | | (ا) لکه: بار، لار. |
| و | پېښ (و) لکه سر (سور) لر | مجهول واو لور، پور، سور. |
| ی | زېر "ـِ" لکه تر "تير" مينه | مجهوله يا: تېر، مېنه. |

## زورکی يا مخصوص حرکت:

لکه لوړ چې وويل شوه د پښتو حروف علت درې دي او هر يو دوه حالته لري، چې ټول شپږ شي. د درو حرکاتو تر منځ يو بل حرکت هم شته، چې موږ يې زورکی بولو، دا حرکت اصلاً د زور او زېر او پېښ تر منځ يو مخصوص صوت دی، چې د درو حروفو علتو صوت، پر درو نورو اقسامو وېشي په دې ډول:

۱ـ د الف سره (آ) لکه: تر، پر، بر، چې دلته د الف په نمايندګی د حرکت کار ورکوي او که د کلمې په پای کې راشي؛ نو يې د اظهار لپاره (هـ) ليکله کېږي، له دغه جهته (هـ) هم که حرکي کار ورکړي، له صايتو حروفو څخه شمېرله کېږي. مثلاً ښځه، پسه، چې تر (ه) دمخه زورکی دی.

او (هـ) يې فقط په اعرابي کيف ليکله کېږي، دغسې (هـ) چې په پښتو کې ډېره ده، له حروف علت څخه ګڼله کېږي او په درج او ترکيب کې د حروف علت حکم پر جاري کېږي.

۲ـ که دغه زورکی د (واو) دمخه راشي؛ نو يې صوت په مخصوص ډول ورګرځوي، چې د (او) ږغ په کې وي؛ لکه کتو.

۳ـ که زورکی د (ی) دمخه راشي؛ نو يې صوت داسې وي (ای) لکه کوی، تللی، بخښلی، او نور...

## د صايتو حروفو ټول ږغونه:

له لوړو پلټنو څخه موږ د پښتو د صايتو حروفو ږغونه په دې ډول ضبط کولای شو، يعنې حرکات د مختلفو صايتو حروفو سره دغه ږغونه لري:

### الف

(۱) الف د حرکت په شکل (زور) دی لکه کر، بل، بر، چې د

(ك ب) صوت ښکاره کوي.

(۲) تر زور وروسته ولاړ الف لکه کال، بار، چې دمخه حروف یې زور لري.

(۳) تر الف وروسته لکه آس، آره، چې دمخه حرف یې هم زور لرونکی الف دی.

(۴) د پخ حرکت په شکل، چې زورکی دی، لکه کر، بل، بر، دلته د (ك ـ ب) ږغ ښکاره کوي چې د کلماتو په پای کې یې (هـ) نمایندګي کوي.

## (و)

(۵) لنډ معروف واو د حرکت په شکل چې (پېښ) دی لکه کر (کور) بر (بور) چې د (ك ـ ب) ږغ ښیي او لنډ ږغ لري او کله د کلماتو پای ته هم راځي؛ لکه پاو، نیاو.

(۶) اوږد واو مجهول چې له دوو پېښو څخه جوړېږي؛ لکه کور، بور چې اوږد ږغ لري.

(۷) واو چې دمخه یې زور وي؛ لکه څور، بور، چې د (او) ږغ لري.

(۸) واو چې دمخه یې زورکی وي لکه کتو چې د (او) ږغ لري.

## (ی)

(۹) لنډه معروفه یا د حرکت په شکل چې (زېر) دی: لکه تیر، پیر، چې د (ت ـ پ) ږغ ښکاره کوي او کله یې ږغ د کلمو په پای کې مطلق وي؛ لکه پای، ځای.

(۱۰) اوږده مجهوله یا چې له دوو زېرو څخه جوړېږي؛ لکه تېر، تېل، پېر، چې اوږد ږغ لري.

(۱۱) یا چې دمخه یې زور وي لکه ښی، تی، چې د (ای) ږغ لري.

(۱۲) يا چې دمخه يې زور کې وي کله ښې، تې، چې د (اى) ږغ لري.

له لوړې څېړنې څخه تاسې د صايتو حروفو (۱۲) شکله زده کولای شوای، دغه دولس شکله، پر اساسي درو ږغو بنا کېږي؛ ځکه چې صايت حروف او ددغو ږغ، نه د ژبې د فونيک PHONIC (ږغپوهنې) اساس دی؛ نو سړی کولای شي، چې د مقايسې او پرتلې لپاره کار ځنې واخلي.

ددغې لوړې خبرې د څېړنې لپاره لاندې پښتو حروف علت او ږغونه يې له سنسکريت او اوستا سره پرتله کېږي، چې ددغو ژبو سره نژدېوالی او د پښتو اصالت ښه ځنې معلومېږي.

## مقايسه:

مشهور انګليسي مستشرق هـ جوليس اګلنګ H. JULINS EGGELING د ايډنبرګ د مقايسوي فيولولوژي پروفيسور، د سنسکريت پر صايتو حروفو باندې داسې ليکي:

((له هندي ايرانيو دورو څخه (چې آريايي اقوام لا سره ګډ وو) ددې ژبو حروف علت VOWEL SYSTEM په ارث پاتې شوي او تغير يې نه دی کړی، اما فقط هندي ايراني لنډو دوو مرکبو صايتو حروفو په دې ډول تغيير کړی:

له دوو صايتو توريو څخه مرکب آريايي ږغونه[1] چې ای am او au وه، او په اوستا کې ای ae او ao لوستل کېده، هغه وخت چې د هند ګرامر پوهانو واخيسته؛ نو يې په ای E او O تبديل ړه، اما هغه اوږده ږغيز مرکبات چې آی ai آو au وه، په

[1] د دوو صايتو توريو مرکب ږغ ته په علمي اصطلاح Diphthong وايي؛ لکه ای، او، وی.

لنډ ډول يې au-ai وويل:

مثلاً د اوستا ډيوه Daevo د سنسکريت ډيوه Devah

(هومو Houmo) سومه Somah

(يوکسايس Uxsais) يوکتهي Ukthaih

(ګاوش Gaush) ګشوه Gauh.

د هندي ايراني دورې د واويل سيستم سادګي له دې څخه ښکاري، چې فقط د aa (T-T) ږغونه دونې ډېر او قوي وو، چې د هندو اروپايي ټولو صايتو توروېو پر ځای ولاړ وو، مثلاً د (E-O-A-U) پر ځای فقط آ (A) ويل کېده او دغه دولس هندو اروپايي ډفتونګه: (Au- ou- eu- ai- oi- ei- au-ou- eu- ai- ei- oi) ټول د سنسکريت په څلورو ږغو (Au- Ai- O- E) کې سره يو ځای کېږي، له لاندې جدول څخه د اصواتو مقابله ښه معلومېږي:

| هندو اروپايي | سنسکريت |
| --- | --- |
| i-oi-ei | E-i |

لکه يوناني: Leipei چې وروسته = Recati = Rokah

Loipei وروسته Elipa = Aricat

په دې ډول د سنسکريت واويل سيستم له قديمه پر دغو ږغو باندې بنا دی[1]

A: A- I.E.Ai- U.O. Au- R. Ar

د اوستا حروف علت هم د سنسکريت سره تقريباً يو او نږدې دي او اساساً پر اوږدو او لنډو ډولو باندې وېشل کېږي[2] او کوم تنوع چې لکه سنسکريت دا ژبه وروسته په

[1] بريتانيکا_ ج ۱۹_ ص ۶۵۵.

[2] د اوستا ګرامر_ ص ۱.

حروف علت کې مومي او له پښتو سره لږ اختلاف پیدا کوي هغه هم ښایي چې د محیط او زمانو اغېزه وي. د پښتو د صایتو حروفو [۱۲] ږغونه چې دمخه ولیکل شوه، په لاندې ډول له سنسکریت او اوستا سره سمېدلای شي:

## (الف)

(۱) زور په سنسکریت او اوستا کې شته؛ خو د زېر او پېښ تر منځ یو صوت هم لري؛ نو ځکه باید د پښتو زورکي ته نژدې وګڼل شي. اما اساساً زورکی د پښتو له پلوه دوه بېل ږغونه دي، چې د کلماتو معاني هم اړوي لکه: تل، بل، بل او نور د الف وچ ږغ هم عام دی.

(۲) د الف اوږد ږغ (آ_ A) هم سنسکریت هم اوستا لري او ددې لپاره چې له هغه بل الف څخه یې تفریق وشي؛ نو په دواړو ږغو کې بېل شکل ځانته لري.

## (و)

(۱) واو معروف د حرکت په شکل (U) په دواړو ژبو کې لکه پښتو شته او ځانته بېل شکل هم لري.

(۲) د واو، بل صوت (U) په اوستا او سنسکریت کې شته، چې په پښتو کې دا ږغ نسبتاً اوږد او د مجهول واو په شکل دی، چې نژدې دغه مجهول آواز ته یې هم دغه ژبې لري.

(۳) تر واو دمخه که زور وي دا ږغ په سنسکریت او اوستا دواړو کې شته (au).

(۴) تر واو دمخه چې زورکی راشي، دا صوت هم په تخمیني ډول (ښایي چې کټ مټ نه وي) په دغو ژبو کې شته ځکه چې د اوستا هغه (au) په سنسکریت کې بل ږغ لکه (ai) مومي چې دغه پښتو ږغ ته نژدې دی.

## (ی)

(۱) لکه واو، یا هم دغسې ده چې معروف برغ یې د زېر په شکل په درو سرو ژبو کې شته او په سنسکریت او اوستا کې بېل شکل هم لري.

(۲) بل برغ یې اوږد دی چې موږ مجهوله یا ورته وایو او په سنسکریت او اوستا کې دا برغ هم تقریباً پښتو ته نژدې شته.

(۳) تر یا دمخه چې زورکی راشي، دا صوت هم په تخمیني ډول په دواړو ژبو کې شته.

(۴) تر یا دمخه چې زور وي، دا حرف په دواړو ژبو کې بېل برغ او شکل لري[1].

توضیح: ځیني حروف علت چې په سنسکریت کې شته؛ لکه خفیف لام او (ر) غالباً دا هغه نوي اثرونه دي، چې پر سنسکریت باندې د هند په ورشوګانو کې شوي دي، که نوي اساسي صایت حروف یې د پښتو سره مشترك دي.



## صامت (صحیح) حروف CONSONANTS:

تولې ژبې ځیني صحیح حروف هم لري، چې برغونه یې د صایتو حروفو په کومك ښکاره کېږي. دغه صامت حروف د ژبو اساسي برغونه دي، چې په اکثرو ژبو کې سره مشترك دي او ممکنه ده چې ځیني ژبې مخصوص صامت توري هم ولري.

دلته تر هر څه دمخه باید په دې پوه شو، چې د ژبو په صوتي سیستم کې د محیط او اقلیم او ټتماعي ضروریاتو اثر دوني

---

[1] دا تطبیق د فرهنګ نظام (ج ۴) او ګرامر اوستا او د بریتانکا (ج ۱۹) له رویه په تخمیني صورت شوی دی؛ ځکه چې د تخمین او تقریب لاس ورسره دی او په دې موضوع کې مفصل معلومات نشته؛ نو که تېروتی یم، معافي غواړم.

دی، چې په نژدو اقلیمو کې دغه ږغونه سره اوړي لکه ژبه چې احتیاج پیدا کړې ده، دغه ږغونه هم ضرورت پیدا کوي مثلاً یو توری په یوه ځای کې خلك یو راز وایي. بل ځای هغه توری بل ډول ږغ لري دغه طبیعي احتیاج دی چې ژبې او د ژبو ږغونه سره اړوي. ...

## مجرد ږغونه او مرکب ږغونه:

د صامتو توریو ږغونه موږ پر دوه ډوله وېشلای شو، یو هغه ږغونه دي، چې اساساً او په خپله یو ږغ او مجرد صوت وي، له یوه مخرجه څخه په یوه وار راوځي، دغو ته موږ مجرد ږغونه او یوازېني توري ویلای شو.

ځینې داسې ږغونه هم په ژبو کې شته، چې دوه ږغه ګډ شوي او یو رنګ یې موندلی وي، داسې ږغونه موږ مرکب ګڼو او هغه توري چې نمایندګي یې کوي، (ګډ توري) یې بولو.

د ژبو د تخلیق او نشو و نما په سلسله کې مجرد اصوات لومړني دي، وروسته چې په نویو خولو کې لوېږي او نویو محیطو ته ځي. په ځینو توریو نوي اصوات ګډېږي او مرکب صورت مومي، د پښتو ژبې الفباء ته چې سړی ځیر شي، له دېرشو توریو څخه مجرد اصوات دغه دي: (ب، پ، ت، ټ، ج، چ، خ، څ، ځ، ده، ډ، ر، ړ، ز، ژ، س، ش، غ، ك، ګ، ل، م، ن).

اما څلور صایت توري (ا ـ و ـ هـ ـ ی) خو بېل دي د صحیحو او صامتو حروفو په ډله کې نه شمېرل کېږي، نور نو دغه توري مرکب صوتونه لري: (ږ، ښ، ڼ).

(ڼ) یو خیشومي ږغ دی، چې له (ړ) او (ن) څخه مرکب شوی دی:

ړ ـ ڼ ـ ن

او (ږ، ښ) داسې توري دي، چې مختلف اصوات لري او په ډول ډول اداء کېږي، په حقیقت کې مبداء هغه اساسي او مجرد توري (ژ، ش) دي، چې د نورو توریو د ترکیب په سبب یې ږغونه کرخېدلی دی.




په دې نقشه کې د دوو توریو ګډ صوت په (=) سره د دوی تر منځ ښکاره شوی دی، وګورئ د (ژ) مرکب ږغ داسې تغییر مومي:

ژ ـ ژ = ږ ـ ږ ـ ږ = ګ ـ ګ اما د (ش) ږغ هم داسې مرکب کېږي:

ش ـ ش = ښ ـ ښ = ښ = خ ـ خ[1]

---

[1] دا چې موږ "ښ" یو مرکب صوت ګڼو، دلیل یې دا دی چې د کوشاني عصر په رسم الخط کې "ش" خپل بېل شکل په یوناني حروفو کې لري او (خ) هم د × په شکل ده؛ د بغلان په کتیبه کې د (ښ) لپاره ش + خ لیکي چې مراد یې د ښ مرکب صوت د ش او خ تر منځ دی.

اوس چې تاسې ته د مرکبو او مجردو اصواتو تشریح وشوه؛ نو به ولاړ شو د ږغو د مقایسوي بحث COMPARATIVE PHONOLOGY پر اساس به صحیح او صامت توري هم د سنسکریت او اوستا سره وګورو.

## د سنسکریت او اوستا مرکب ږغونه:

د سنسکریت ټول تهجي حروف (۴۶) دي، له دغو څخه (۲۵) اصلي او صامت او نور صایت او د اعراب توري دي، پینځه ویشت صامت توري هم پر پینځو برخو وېشل کېږي:

(۱) ستونیز (حلقي) GUTHURALS.

(۲) تالوییز (کامي) PALATALS.

(۳) ژبیز (زباني) CEREBRALS.

(۴) غاښیز (دنداني) DENTALS.

(۵) شونډیز (لبي) LABIALS.



او هر ډول له دغو څخه پنځه توري لري[1].

اما په دغو توریو کې اکثر مرکب توري دي، چې له مجرد ږغ سره یو د (هـ) سپك ږغ ملګرى کېږي، مثلاً (کهـ جهـ ټهـ تهـ دهـ پهـ بهـ) نو څکه موږ دا ویلای شو، چې اصلاً آریایي ږغونه چې په اصلي آریایي ژبه کې وو هغه مجرد ږغونه دي، چې د پښتو په اصلي حروفو کې شته، دغه د ترکیب صورت یې وروسته مونډلی دی او دا اصوات په پښتو کې هغه وخته وي چې د حروفو حرکت زورکی وي په دغه صورت کې مرکب ږغ مومي چې لکه نیمه (هـ) داسې ویل کېږي نو ګویا هر حرف که په

[1] د ماکډونل ویدك ګرامر، او فرهنګ نظام.

زورکي ووایو د (ه) یو سپك صوت مومي چې هغه موږ نه لیکو.

دا هم باید ووایو چې د مرکبو اصواتو طبیعت شرقي دی نه غربي، یعنې له بخدي څخه غربي خوا ته تر اروپا پورې مرکب اصوات چې د (هـ) په خلط جوړ شوي دي لږ دي؛ بلکې شته هم نه، بالعکس د بخدي شرقي خوا ته په هند کې دا ږغونه ډېر دي او سنسکریت او نورې هندي پراکزیت ژبې ټول داسې مرکب ږغونه د (هـ) په خلط لري، پښتو موږ پوره غربي یعنې له ایراني ځانګې څخه نه شو بللای، چې دغه ږغونه په نیم ډول په کې شته او هم یې شرقي، یعنې هندي نه شو ګڼلای، چې لکه هندي ژبې مرکب ږغونه یې پوره او بشپړ نه دي.

## د اصواتو تطبیق:

دمخه د پښتو ژبې د الفبا مجرد او مرکب ږغونه وپېژندل شوه، اوس هغه ټول د سنسکریت او اوستا له اصواتو سره لاندې تطبیق کوو:

ب: په دواړو ژبو کې دا مجرد صوت شته سنسکریت یې مرکب صوت (ب ه) هم لري، چې په اوستا کې نشته.

مثالونه: د اوستا بغه BAGHA (خدای) مجرد ږغ B.

د سنسکریت باټ BAT (لار) B (د پښتو واټ مرکب به لکه د پښتو اوبه_ مرکب ږغ BH ب زوکی لري.

پ: په سنسکریت او په اوستا کې شته، په دواړو ژبو کې مرکب صوت په PH هم لري چې د اوستا ږغ یې "ف" او د سنسکریت ږغ یې پښتو زورکی لرونکې "په" ته نژدې دی.

اوستا: پ لکه پرتو PERETU (پل) مجرد ږغ P.

ف: لکه فروشي FROVASHI (مقتدر) مرکب ږغ F`PH.

سنکریت: پ لکه پاتي PATI (کاغذ، خط) مجرد رږغ P (د پښتو پټی) پهـ لکه پهاند PHAND (بوریا، تور) مرکب رږغ PH_ مرکب ته نژدې پښتو رږغ یې لکه: پړ (ملامت) په "در" پ زورکی لري.

ت: په اوستا کې او په سنسکریت کې هم، په دواړو ژبو کې مرکب رږغ (تهـ) TH هم لري. مثلاً: اوستا: ت لکه تنو TANU مجرد رږغ T.

تهه لکه تهوخش THVAXA (یو نوم دی) مرکب رږغ TH.

سنسکریت: ت له تاپ TAP (تود) مجرد رږغ T.

سنسکریت (تهـ لکه تهالي THALI (تالی) مرکب رږغ TH مرکب ته نژدې پښتو رږغ لکه: تل (همېشه) (وزن کردن) (ت زورکی لري).

ټ: اوستا دا رږغ نه لري، اما سنسکریت یې هم مفرد رږغ (T) او هم مرکپ تهـ (TH) لري مثالونه: سنسکریت: ټ لکه ټسر TASAR (تیسر) مفرد رږغ T.

تهـ لکه ټهانو THANU (تانه) مرکب رږغ TH مرکب ته نژدې پښتو رږغ لکه: کوټل (کوفتن) ټهل (تحمل) ټ زورکی لري.

ج: په اوستا په سنسکریت کې شته چې مرکب رږغ هم سنسکریت لري (جهـ) JH اوستا ج لکه جفر JAFAR (ژور) مفرد رږغ J. سنسکریت ج جاتر JATRU (زایر) مفرد رږغ J.

جهـ لکه: جهاټ JHAT (سایبان) مرکب رږغ JH. مرکب ته نژدې پښتو رږغ: جر (اسم صوت) جګ (بلند) ج زورکی لري

ج: په اوستا او په سنسکرت کې شته چې ((جهـ)) مرکب رږغ هم لري مثلاً اوستا: \ لکه چش CHASH ((چشیدن)) مفرد رږغ CH سنسکریت: چ لکه چاتر CHATUR "لایق" مفرد رږغ CH چهـ

لکه چهند CHHAND "عروض" مرکب بڼ CHH مرکب ته نژدې پښتو بڼ لکه: چغ ((پرده نی)) چغ (خلیده)) چ زورکی لري.

خ: په اوستا کې شته چې یو مرکب ډوله بڼ بل هم لري؛ خو KHV مثلاً مفرد بڼ یې لکه خرتو KHRATU ((خرد)) او مرکب بڼ لکه خوفن KHOFNA "خواب" سنسکریت پخپله دا صوت نه لري او په عوض کې یې "ك، كه" تلفظ کوي په پښتو کې هم که په زور کې وویل شي د "خه" بڼ ورکوي، مثلاً خړ اسم صوت حړ "خاکي".

دلته دا هم باید وویل شي، چې د سنسکریت او اوستا له مقایسې څخه داسې معلومېږي، چې په مرکزي آریایي ژبو کې دا بڼ یو مستقر بڼ نه دی؛ ځکه نو په سنسکریت کې په مستقل ډول نشته او له پښتو څخه هم کله د "ك، كه" خوا ته او کله د "ښ، ش" خوا ته میل کوي، مثلاً د پښتو "خړ" په سنسکریت کې "کهر" او د پښتو پخول په هندي کې "پکاول" شو، د خان کلمه هندیان "کان" وایي. پخپله په پښتو کې هم ځینې قبایل چې د "خ" تلفظ کوي، هغه کلمات بیا نور قبایل په "ښ، ش" اړوي مثلاً "خه ښه شه" چې دمخه ددې ابدال نقشه تاسې ولیدله.

نو ګویا "خ" د پښتو نیم مجرد توری دی او پوره استقلال او استقرار نه لري او د بغلان په کوشاني یوناني لیك دود کې د (X) شکل لري.

څ: دا یوقسم صوت دی چې د "ت. س" یا "ث. ت" ګډو اصواتو ته نژدې دی، پخپله په سنسکریت او اوستا کې نشته: مګر نورې آریایي ژبې ی لري، مثلاً روسي ((څ)) لري. د الماني ((تس Z)) صوت هم دې ته نژدې دی.

ځ: دا صوت د ((ز، ج)) تر منځ ویل کېږي، په پارسو کې

عوض ((ج)) دی، مثلاً جان = ځان. هغه څوك چې دا صوت نه شي ادا کلای، عوض یې ((ز)) وایي، له دې څخه معلومېږي چې ددغو دوو توریو له جنسه دی او د روزګان په کوشاني یوناني متاخر لیك دود کې د Z پر سر درې ټکي لري.

په سنسکریت کې دا ږغ نشته؛ بلکې د (ج) خوا یې غالبه ده، مثلاً روج په سنسکریت کې (روز) ته وایي، چې په پښتو یې (روځ) بولي، (ارز) په پارسي قدر او قیمت ته وایي چې (ز) په (ج) هم اوړي، ارج او ارجمند ځنې جوړېږي، په سنسکریت کې هم (ارج) په دغه معنا دی. د پښتو (ارځ او ارځېدل) هم کټ مټ دغسې دی. مګر (ز = ج) په (ځ) اوښتی دی، چې کله په (ز) هم (ارزېدل) ویل کېږي.

له دې څخه معلومېږي، چې د (ځ) ږغ اصلاً په مرکزي آریایانو کې و. مګر په هند او ایران کې په عوض نور نور ږغونه دربدلي دي. اوستا یو حرف لري، چې ږغ یې (ځ) ته نژدې دی، هغه (د DH) دی، چې دا حرف هر وخت د کلماتو په منځ کې وي مثلاً پوخذه PUKHDHA (پنځم) چې هغه (ذ) په پښتو (ځ) بدل شوی دی.

د: په سنسکریت کې غاښي حرف دی، چې په اوستا کې هم شته دا صوت عموماً په ټولو ژبو کې مشترك دی، سنسکریت یې مرکب صوت (ده) هم لري.

مثلاً:

اوستا: (د) لکه درفش DRAFSHA (بیرق) مجرد ږغ D.

سنسکریت: (د) دته DATTA (داده) // D.

// : (ده) دهرم DHARM (انصاف، مذهب) مرکب ږغ DH.

مرکب ته نژدې پښتو ږغ لکه د (بطرف مخاطب) دی (هست)

دال زورکی لري.

ډ: دا حرف اوستا نه لري، په سنسکریت کې شته او مرکب صوت (ډهـ) هم لري، داسې معلومېږي، چې د (ډ) طبیعت شرقي دی، که بخدي د آریا مرکزي ځای وګڼو؛ نو غربي خوا ته دغه توری نه ویل کېږي، شرقي خوا ته شته مثلاً:

پښتو ږغ (ډ) لکه ډاین DAYAN (ساحره) مجرد ږغ (D).

// (ډهـ) "ډهګ DHIG (خوا، نژدې) مرکب" (DH).

پښتو ږغ چې مجرد دی لکه ډم (آب ایستاده) ډب (زمین عمیق) "ډ" زور لري.

پښتون ږغ مرکب ته نژدې دی: ډم (مطرب) ډب (اسم صوت) "ډ" زوکی لري.

ر: په اکثرو آریایي ژبو او په اوستا او سنسکریت کې شته، دا توری په سنسکریت کې نیم صوتي SEMI VOWEL کیف هم لري، مثلاً:



اوستا: (ر) لکه رتو RATU (سردار دیني) مفرد ږغ (R).

سنسکریت: (ر) "راج RAJ (حکومت)" " (R).

ړ: ددې توري طبیعت هم شرقي دی، اوستا او پارسي یې نه لري؛ پښتو او سنسکریت دا ږغ لري او په مخرج کې د (ر) او (ډ) تر منځ ویله کېږي، په سنسکریت کې د کلماتو په سر کې ډېره لږ وي؛ مګر په منځ او پای کې ډېره ده مثلاً:

سنسکریت (ړ) لکه روړا RORA (ډېره) مفرد ږغ (R).

پښتو: " روند، پړ، پراو، او نور.

ز: سنسکریت دا ږغ نه لري، په عوض کې یې (ج) وایي لکه (روز = روج) یا (زانو = جانو) یا (زن = جنی) ددې توري طبیعت غربي دی او په پښتو کې متعدد ساري لري، مثلا کله په (ج)

کله په (ژ) کله په (ځ) اوړي. مثال:

اوستا: (ز) لکه زاته ZATA (زاده) مفرد ږغ (Z).

ژ: دا ږغ هم سنسکریت نه لري او په پښتو کې مستقلاً موجود دی، اوستا یې هم لري، مثلاً ژنو ZNU (زانو) دا حرف هم په پښتو کې د (ز، ج) سره خپلوي لري، مثلاً (ژبه = زبه = جبه) چې درې ډوله ویله کېږي. خو طبیعت یې غربي دی، د شرق خوا ته چې نژدې کېږي په (ج) اوړي؛ لکه پارسي (اژدر) او د سنسکریت اجگر.

ږ: لکه دمخه چې تاسې ته وویل شوه. دا توری مرکب صوت لري؛ نو ځکه متغیر دی، له تېرې نقشې ښخه یې تاسې ته د ږغ تغیر هم ښکاره شو، په سنسکریت او اوستا کې ددې نظیر نشته، له (ژ، ج) سره اوړي مثلاً:

کږ = کج = کوږ یا: اژدها = اژدهار. اما پخپله پښتانه یې د (گ) ساری گڼي.



س: په سنسکریت کې له مهمو څو حروفو ښخه دی، په اوستا کې هم شته په اکثرو ژبو کې دا ږغ عام دی، مثلاً:

سنسکریت: (س) لکه سأت SAT (اود) مجرد ږغ (S).

اوستا: (س) لکه ستو STU (ستایل) مجرد ږغ (S).

په پښتو کې دا ږغ (ځ) ته نژدېوالی لري او کله کله سره اوړي هم. مثلاً سرکند. ځرګند

ش: دا هم مهموس حرف دی، په سنسکریت او په اوستا کې شته. مثلا

اوستا: (ش) لکه هورشته HVARSHTA (ښه رشته) مفرد ږغ SH.

سنسکریت: " " شاپت SHAPIT (ملعون) " " SH.

ښ: دمخه مو دا توری په مرکب صوت سره درو ښووه، ددې

صوت نظایر په آریایي ژبو کې شته. مثلاً روسي کټ مټ (ښ) لري، دغسې هم په اوستا کې یو مشدد (ش) شته چې شکل یې هم بېل دی مثلاً شاته SHATA (یعنې ښاد) په پارسي (شاد) شوی دی، دا ږغ د پښتو (ښ) ته نژدې دی او په پښتو یې هم عوض دغه (ښ) دی، چې په کوشاني ژبه کې هم و

سنسکریت هم یو بل راز (ش) لري چې ږغ یې له اصلي (ش) څخه بېل دی. او جلا شکل هم لري، د ژبې سر چې په تالو پورې ونښلي، دا ږغ ادا کېږي، د پښتو (ښ) اصلي مخرج هم دغه دی چې وروسته په (ښ + خ) او (خ) بدل شوی دی. د سنسکریت دغه راز (ښ) مرکب صوت هم لري او د هند په ښارو کې مختلف ږغونه لري مثلاً: کله د (ك) سره ګډ شي؛ نو د (کش ـ کهي ـ چه) ږغ ورکوي لکه لکشمي = لکهیمي = لچهمي (دولت) دا ږغ په پارسو کې په (ش) اوړي، مثلاً د پښتو کښت په پارسي کشت چې په برج بهاشا ژبه کهیت شوی دی او له دغو تولو مثالو څخه ددغه توري مرکب والی ثابتېږي

غ: په حقیقت کې دا توری او (ګ) له یوې کورنۍ دي. د سنسکریت او اوستا په حلقي توریو کې یې آوازونه شته. اوستا یو ږغ (ګه) لري، چې پښتو ږغ ته نژدې دی. سنسکریت هم دغسې ږغ لري، مثلاً:

سنسکریت: (ګه) لکه ګهاټ GHAT (وژل) مرکب ږغ GH.

اوستا: " ګهزر GHZAR (موج) " GH

نو د (غ) ږغ په پښتو کې مجرد و: مګر شرقي هجرت کې د هند خوا ته دا ږغ (ګه) ته مایل شو او یو راز صوت حنې پیدا شو، چې د (ګه + غ) تر منځ دی. لکه داغ = داګه او شغال = شګال.

ك: په اوستا او په سنسکریت کې شته، چې بل مرکب ډول (که) هم لري؛ مګر د اوستا صوت یې پښتو ته نژدې دی او د سنسکریت دا په حلق کې اداء کېږي او لږ څه لېرې دی. دد ې توري طبیعت د (خ) خوا ته نژدې دی او د سنسکریت ږغ یې هم هغسې په حلق کې اداء کېږي؛ نو ګویا دغه (ك = که) شرقي لوري ته تل د (خ) نمایندګي کوي؛ ځکه چې شرقي آریایان (خ) نه شي ویلای.

اوستا (ك) لکه کامه KAMA (کام) مجرد ږغ K.
سنسکریت (ك) لکه کاټ KAT (کاټ) مجرد ږغ K.
سنسکریت (که) = کهال KHAL (پوست، ډنډ) مرکب ږغ (KH).

ګ: په اوستا کې مجرد ږغ (ګ) او په سنسکریت کې هم شته؛ مګر د سنسکریت ږغ یې خورا په حلق کې اداء کېږي، چې کټ مټ د پښتو سره یو راز نه دی او د حلقي توریو طبیعت هم دغه دی، چې په خپل شرقي هجرت کې خورا پسې حلقي کېږي، مثلاً:

اوستا (ګ) لکه ګامه GAMA (ګام) مجرد ږغ (G).
سنسکریت (ګ) " ګوند GOND (ګند) " " (G).
په سنسکریت کې که دا ږغ مرکب شي (ګه) نو (غ) ته نژدې کېږي؛ لکه دمخه چې وویل شوه.

ل: دا ږغ په اوستا کې نشته او نه په زړه پارسو کې و؛ مګر په پهلوي کې پیدا شوی دی. په اوستا کې عوض خپل قریب المخرج توری (ر) و او په سنسکریت کې کله (ر) او کله (ل) وي. په حقیقت کې (ل ـ ر) په اکثرو آریایي ژبو کې سره اوړي. د پښتو دېوال په پارسو دیوار دی، چې په انګلیسي کې هم دغه ریښه وال WALL شته. د سنسکریت (ل) په اوستا کې د (ر) ږغ

ورکوي مثلاً:

سنسکریت: شریلاس SHRILAS (ښکلی).

اوستا: سریرو SRIRO (ښکلی).

سنسکریت: هوکلپته HUKLPTA (ښه جوړ شوی).

اوستا: هوکرپته HUKEREPTA (" " ").

م: دا توري په اوستا او په سنسکریت کې شته چې په خیشومي اصواتو کې شمېرل کېږي او په دغو دواړو ژبو کې عموماً سره یو دي او په پښتو او نورو آریایي ژبو کې هم عام دی؛ خو کله د (ن) سره اوړي مثلاً لنبه = لمبه.

سنسکریت (مه) لکه نامه NAMA (نوم) مجرد ږغ (M).

اوستا " نمه NAMA (نوم) مجرد ږغ (M).

ن: په سنسکریت کې مجرد ږغ (نه) دی او مرکب ږغ هم د پښتو (ڼ) په ډول شته په اوستا کې هم د لومړي ډول په مقابل کې او هم د دوهم ډول په مقابل کې حروف شته چې دوهم صوت یې د پښتو (ڼ) ته نژدې دی او په تیلینکو کې ویل کېږي.

اوستا (ن) لکه نافیه NAFYA (ناف، نو) مجرد ږغ (N).

اوستا (ان) لکه انتر ANTARA (اندر، دننه) تقریباً مرکب ږغ (N).

سنسکریت (نه) لکه نابهي NABHI (نو، منځ) مجرد ږغ (N).

سنسکریت (ڼه) لکه ورڼ URAN (آماس) مرکب ږغ (N) [۱].

## ۲_ تلفظ PRONUNCIATION:

لکه دمخه چې وویل شوه، د پښتو او اوستا او سنسکریت د ږغیزو او صحیحو توریو تر منځ ډېر مشابهت دی او په درو سرو

[۱] دا تطبیق د بریتانیکا (ج ۱۹) او ویدیك گرامر، او اوستا گرامر، او فرهنگ نظام او گاتها، او دروس پهلوي په کومك لیکل شوی دی.

ژبو کې د ږغیزو حروفو په کومك د اصلي حروفو تلفظ کېږي، لاندې د تلفظ ځینې خصوصیات راوړل کېږي:

## ابتداء په ساکن:

په سنسکریت کې په ساکن توري ابتداء کېده او لکه چې ځینې محققین وایي، دا خاصیت د آریایي ژبو دی او هر څونې چې ژبې غربي خوا یا (سامي خوا) ته میل کوي، دا خاصیت ځنې ځي.

پښتو او سنسکریت دا آریایي مزیت تر اوسه خوندي کړی، په اروپایي ژبو کې هم عمومي دی؛ مګر په پارسي ژبه کې ښایي چې په خپله په اوستا او لومړنۍ پهلوي کې په ساکن ابتداء کېده؛ مګر وروسته چې د سامي تمدن اثر پر ایران ولوېد؛ نو ابتداء په ساکن محاله شوه.

ډېر داسې کلمات په پارسي ژبو کې شته، چې یو زاید الف د تلفظ د سهولت لپاره په سر کې وراچول شوی دی؛ لکه اشګرف= شګرف، اشکم = شکم. اشتر = شتر اسمندر = سمندر.

ښایي چې اصلاً دا کلمات پخوا په ساکن سره شروع کېده؛ مګر وروسته چې سامي اغېزې ډېرې شوې، یو زاید الف وراچول شوی دی[1].

نو د ساکن د ابتداء په خاصیت کې پښتو ډېره سنسکریت ته ورته ده او ښایي چې دا خاصیت دواړو ژبو له اصلي آریایي ژبې څخه موندلی وي.

---

[1] سخندان فارس ص ۵۶ فرهنګ نظام ج ۴.

## خج (ایکسینټ) ACCINT:

ایکسینټ یعني د تلفظ زور او د ږغ تکیه چې په پښتو یې خج بولو، په اکثرو آریایي ژبو کې اوس هم شته؛ مګر په سنسکریت کې خورا ډېرو، له ویدا او د قدیمو ګرامر پوهانو له بیانه ښکاري، چې د سنسکریت ایکسینټ یو ډول موسیقیت درلود او د تونیك TONIC په رنګ و، د ږغ فشار نه و او پخوا یې درې ډوله درلوده.

(۱) لوړ خج (RAISED) UDATTA (۲) کښته خج ANUDATTA (UNRAISED) (۳) لوړېدونکی او کښته کېدونکی خج SVARITA (THE RAISING- FOLLING) چې هغه لومړی ډول یې د هندو اروپایي ژبو د خج سره ډېر مشابهت لري او د سنسکریت خجونه اکثراً په شعر کې وو.



علاوه پر دغه چې له ایکسینټ څخه په نظم کې کار اخیستل کېده او په دغه ویدي قدیمو متونو کې هم موجود و او وروسته هم هروید خانته د ایکسینټ سیستم درلود، په عمومي ډول هم ټولو ویدي الفاظو پر یوه یا دوو سلایبلو باندې ایکسینټ درلود؛ لکه چې په هندو اروپایي ژبو کې شته او کله به هم په ترکیبي الفاظو کې ایکسینټ مکرر کېده چې غبرګ خج DOUBL ACCINT ورته وایو، د سنسکریت د مرکباتو ایکسینټ ACCINTUATION OF COMPOUNDS بېل احکام او اصول درلود او تقریباً په ټولو ګرامري احکامو کې ایکسینټ بېل بېل اثر کاوه[1].

د اوستا په قدیمو نسخو کې (پر خلاف د ویدا) هېڅ ډول

---

[1] بریتانیکا، ج ۱۹_ ص ۹۵۵؛_ ویدك ګرامر ص ۷۷_۱۰۷.

ايکسينټ نه ليدل کېږي او نه په ليك کې راغلی دی[1].

او له دغه جهته هم ايکسينټ په پارسي کې خورا لږ مراعات کېږي؛ مګر په پښتو کې ايکسينټ د لفظ يو مهم رکن دی او ډېر کلمات په همدغه ذريعه که څه هم په حروفو او حرکاتو کې سره يو وي؛ خو په خج سره بېلېږي، مثلاً وړی (برده) وړی (پشم) توري (حرف، تلخه) توری (ترايي) اته (مقياس طول باندازه يکدست) اته (هشت) چې له دې قسمه کلمات په پښتو کې خورا ډېر دي او لکه ايکسينټ چې په سنسکريت کې ډېر اهميت درلود او عموميت لري په پښتو کې هم کټ مټ هغسې دی.

نو سړی داسې ويلای شي، چې: ايکسينټ د آريايي ژبو يو مهم خاصيت دی او ښايي چې په آريايي اصلي ژبه کې هم و؛ مګر وروسته چې ويدي او سنسکريت ژبه په هند کې د علم ذريعه وه او د آريايانو اکثر علمي او ادبي آثار هم نظم وو؛ نو په سنسکريت کې خج ډېر انواع وموندل او په نظم کې ډېر داخل شو.

## ۳_ګرامر GRAMMAR:

د پښتو ګرامري ساختمان او بنيه ډېره قوي ده او په اساسي قواعدو کې هم له زړو آريايي ژبو سره ورته ده. د مقايسوي څېړنې د تکميل لپاره زه غواړم چې دلته د ګرامر ځينې اساسي او بنيادي مواد له سنسکريت او اوستا سره وګورم او په خورا لنډ ډول يې شرح کړم:

[1] اوستا ګرامر، ص ۲_۲۹۳.

## اسماء NOUNS:

د ژبــې لــه اساســي ارکــانو څخــه نومونــه (اســماء) دي چــې د جملــې پــه ترکيــب کــې هــم دغــه مــواد ډېــر پــه کــار کېــږي او د استعمال چارې يې هم تفاوت کوي.

په پښتـو کـې اسـماء ځانلـه مخصـوص حالتونـه لـري چـې پـه هـر حالــت (CASE) کــې د هغــه اسـم پــه آخـر پــورې حرکــات يــا حروف نښلي لکه فاعلي، مفعولي، ندايي او نور حالتونه.

پــه سنســکريت او اوســتا کــې هــم اســماء (۸) حالتونــه لــري او پــه هــر حــال کــې ځينــې اســماء پــه آخر کــې تغييــر مــومي د اســم حالتونــه په اوستا او سنسکريت کې دادي:

(۱) فــــاعلي NOMINATIVE. (۲) مفعــــولي ACCUSATIVE.
(۳) آلـــي INSTRUMENTAL. (۴) مفعــولي بالواســـاطه DATIVE.
(۵) عليـــت ABLATIVE. (۶) اضـــافي يـــا ملکيـــت GENITIVE.
(۷) ظرفي LACATIVE. (۸) ندايي ACATIVE[1].

ښـايي چې په آريـايي ژبـو کـې دغـه حالتونـه لـه هنـدو اروپـايي مشــترکې دورې څخــه پــاتې وي پــه پښتــو کــې هــم اســماء دغســې حالتونـه لـري عمـومي نومونـه او مخصوصاً بيـا هغـه نومونـه چـې د پــای حــروف يــې ږغيــز (صــايت) دي پــه مختلفــو حــالتو کــې تغييــر مومي او اکثر دغه ذکر شوي حالتونه د پښتو اسماء هم لري.

مکـر لـه ځينـو آريـايي ژبـو څخـه دغـه د حـالتو پـه سـبب تغيير وتلــی او دا قــديم خاصــيت يــې بــايللی دی مــثلاً فارســي او انګليسي دا خاصيت لږ لري.

[1] اوستا ګرامر، ص ۶۲ـ بريتانيکا، ص ۹۵۵ ج ۱۹.

## کمیت NUMBER:

په سنسکریت او اوستا کې نوم د شمېر له پلوه پر درې ډوله دی مفرد، تثنیه، جمع؛ مګر په اوستا کې تثنیه یو مخصوص کیف لري، چې د ظرفي حالت یو مخصوص شکل ښکاره کوي[1] او عمومي نه ده.

مګر وروسته له آریایي ژبو څخه تثنیه ووتله او فقط مفرد او جمع پاتې شول، په پښتو او پارسي او اکثرو اروپایي ژبو کې تثنیه نشته. ښایي چې تثنیه اصلي آریایي ژبنی خاصیت نه وي او د سامي مدنیت یوه اغېزه وي؛ ځکه چې په اکثرو سامي ژبو کې دا خاصیت تر اوسه هم پاتې دی.

ددې خبرې یو دلیل دادی، چې: بې له سنسکریته په نورو آریایي ژبو کې تثنیه اوس نه ده پاتې؛ نو که دغه خاصیت خاص آریایي وای، ښایي چې داسې به په عمومي ډول نه زایل کېدای.

له دې څخه چې په اوستا کې هم دا خاصیت، د سنسکریت غوندې قوي او مطرد نه دی، معلومېږي، چې اصلي آریایي به نه وي. علاوه پر دغه تثنیه په پهلوي ژبه کې هم وه او فقط مفرد او جمع یې درلوده[2].

## جنس GENDER:

سنسکریت او اوستا دواړو تذکیر او تانیث درلود اود جنس له پلوه کلمات سره بېلېده، په دواړو ژبو کې درې جنسه اسماء موجود وو:

---

(1) اوستا ګرامر، ص ۶۲.

(2) دروس پهلوي، ج ۱ ص ۳۱.

(۱) مذکر MASCULINE.

(۲) موئنث FEMININE.

(۳) مخنث NEUTER[۱].

داسې ښکاري، چې دغه د جنس GENDER تقسیم په اصلي آریایي ژبه کې هم و وروسته چې سنسکریت او اوستا او پښتو څنې وزېږېدې، هم د دغو درو جنسو تقسیم په کې پاتې شو. په پهلوي کې هم د تذکیر او تانیث لحاظ کېده؛ مګر له پارسي ژبې څخه بالکل ووت. په ځینو اروپایي ژبو کې تر اوسه هم د مذکر او موئنث وجود لرو او ډېر شته.

په پښتو کې هم لکه سنسکریت او اوستا مذکر او موئنث اجناس موجود دي چې لکه هغه ژبې موئنثات ځانله نښانې او علامې لري، اما مخنث چې په الماني او روسي کې هم شته. هغه کلمه ده، چې ظاهراً د موئنث علامه نه لري او په مقابل کې نر جنس هم موجود نه وي؛ مګر موئنثه شمېرله کېږي، دې ته موږ اوس سماعي موئنث وایو، چې د سنسکریت د ګرامر په اصطلاح یې مخنث بولي.

## اعداد NUMERALS:

د اعدادو په نومو او ترتیب کې اکثرې آریایي ژبې سره نژدې دي، سنسکریت اوستا، پښتو هېڅ بېلتون نه سره لري او په خاص ډول پښتو ورنژدې ده. په عمومي هندو اروپایي ژبو او په سنسکریت کې له یوه تر لسو پورې اعداد بېل نومونه لري، وروسته پر عشري سیستم برابر، هغه تر لس کښته اعداد له

---

(۱) اوستا ګرامر ـ ص ۶۲ـ بریتانیکا ـ ج ۱۹ ـ ص ۹۵۶.

۱۰_ ۲۰_ ۳۰ او تر سله پورې ورسره یو ځای کېږي، سل زره په ویدایي دوره کې LOKSOH بلل کېده، چې وروسته د LAKH کلمه ځنې جوړه شوه[1].

په سنسکریت او اوستا کې کټ مټ لکه اوسنۍ پښتو، تر آحاد وروسته چې عشرات شروع کېږي نومړي آحاد وروسته عشرات تلفظ کېږي چې په یوناني او لاتیني کې هم دغسې دي؛ مګر په پارسي کې دا نظام لکه انګلیسي تر شلو پورې د سنسکریت او اوستا په شان دي؛ خو تر شل لوړ، اوړي یعنې لومړي عشرات وروسته آحاد ویل کېږي.

مثلاً په سنسکریت کې وایو ایکاده شه (۱۱) دواده شه (۱۲) په اوستا کې وایو (دایوه ده سه (۱۱) دوه ده سه (۱۲) چې په پارسي او انګلیسي کې هم دا نظام قایم دی، یازده، دوازده او نور مګر وروسته چې تر شل لوړ SIXTEEN, FOURTEEN شي، په پارسي او انګلیسي کې دا نظام ګرځي، دمخه عشرات وروسته آحاد ذکر کېږي لکه بیست و یك TWENTY ONE او نور؛ مګر په پښتو او سنسکریت او اوستا کې تر آخره پورې لومړی آحاد، وروسته عشرات ویل کېږي. لاندې د اعدادو د نومو جدول وګورئ، چې پښتو ته څنګه نژدې دي[2].

| اعداد | پښتو | اوستا | سنسکریت |
|---|---|---|---|
| ۱ | یو | ایوه AEVA | ایکم EKAM |
| ۲ | دوه | دوه DVA | دوا DVA |
| ۳ | درې | تهري THRI | تري TRI |

[1] بریتانیکه، ص ۹۵۶، ج ۱۹.
[2] اوستا ګرامر، ص ۱۰۶.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴ | څلور | چتور CATWAR | چتوار CATVAR |
| ۵ | پنځه | پنچه PANCA | پانچه PANCA |
| ۶ | شپږ | ښوش SHVAS | شش SAS |
| ۷ | اوه | هپته HAPTA | سپتا SAPTA |
| ۸ | اته | اشته ASTA | اشتا ASTA |
| ۹ | نهه | نو NAVA | ناوه NAVA |
| ۱۰ | لس | دسه DASA | داشه DOSA |
| ۲۰ | شل (ویشت) | ویستي VISAITI | ویشتي VISATI |
| ۳۰ | دېرش | تهریست THRISAT | تریشت TRISET |
| ۴۰ | څلوېښت | چتوریست CATWAREST | چتواریشت CATWARISIT |
| ۵۰ | پنځوس | پنجاست PANCASAT | پنچاشت PANCASAT |
| ۶۰ | شپېته | ښوستي SHVASTI | ششتي SASTI |
| ۷۰ | اویا | هپتایتي HAPTAITI | سپتتي SAPATATI |
| ۸۰ | اتیا | اشتایتي ASTAITI | اشیتي ASITI |
| ۹۰ | نیوي | نوایتي NAVAITI | نوتي NAVATI |
| ۱۰۰ | سل | سته SATA | شتا SATA |

په دې ډول پس له سله هم په درو سرو ژبو کې آحاد تر ماتو دمخه دي او لکه د اعدادو نومونه چې په درو ژبو کې سره نژدې دي، نظم او قواعد يې هم دغسې سره ورته دي.

## افعال VERBS:

په افعالو کې هم د سنسکریت او اوستا او پښتو مشابهت سره ډېر دی، د زمانو اقسام او معروفو او مجهولو افعالو ډولونه او د افعالو اوښتنه د سوابقو او لواحقو په واسطه او ضمیر او تصریف او تغییر دا ټول هغه خصوصیات دي، چې په پښتو کې اوس هم شته.

د پښتو اکثر مصادر لکه سنسکریت یوه اسمي ریښه لري، چې له هغو څخه بیا د اداتو په الحاق افعال بنا کېږي، فقط فرق دونې دی، چې د پښتو افعال تثنیه نه لري او د سنسکریت افعال یې لري، په دې خصوصیت کې پښتو له پارسي او اروپایي ژبو سره نژدې ده.

## د تانیث حروف:

په سنسکریت کې هم لکه پښتو د تانیث حروف شته، چې که کومه کلمه وغواړي چې مؤنثه یې کړي، هغه حروف یې پای ته راوړي، (آ ـ ی)[1] او په پښتو کې دا کار (هـ) ورکاوه مثلاً خر، خره، وز، وزه او نور...



## د نفي حروف:

په سنسکریت کې هم د نفي حروف لکه پښتو (آ ـ ن = یه ـ نه) دي، چې دا حروف په پښتو کې د نفي لپاره استعمالېږي مثلاً: نه ځم، یه نه ځم.

## د کلماتو د ساختمان اصول:

په پخوانو آریایي ژبو کې که مطالعه وشي او کلمات او الفاظ یې په غور وکتل شي: نو دا ښکاره کېږي، چې اکثر اسماء او کلمات مشتق دي او جامد اسماء لکه په سامي ژبو کې چې شته. په آریایي ژبو کې نشته. اوستا او سنسکریت دواړه دا خاصیت لري او د آریایي ژبو عمومي ډول دغسې دی.

[1] فرهنگ نظام، ج ـ ۴.

سنسکریت جامد اسماء نه لري، علماء وايي، چې: ټوله کلمات یې ریښې لري او مشتق او ټول معلول په علت دي. د سنسکریت د کلماتو ټولې اصلي رېښې تر (۴۰۰) زیاتې نه دي؛ نو د سامي ژبو هغه کلیه چې (اسماء معلول په علت نه دي) په آریايي ژبو کې نه تطبیق کېږي او که موږ پښتو ته وګورو، کلمات او الفاظ یې عیناً او لکه اوستا او سنسکریت له ریښو څخه مشتق دي.

مثلاً (اشوه) چې په سنسکریت کې آس ته وايي، له (اش) او (وه) څخه جوړ شوی دی، (اش) تګ ته وايي او دا ریښه تر اوسه هم په پښتو کې شته، هغه وخت چې خر یا آس شړي وايي (اشه= برو) او (اش) د کوچنو په ژبه بوده ته هم وايي د سنسکریت (وه) یو لاحقه ده، چې مصدر اسم کوي.

نو د پښتو اش = آس = اسپه د سنسکریت (اشوه) دواړه له دغې رېښې څخه راوتلي دي، هم له دغې ریښې څخه (سپور = سور= سوار) جوړ شوي دي، چې (اسپ بار) وو[1].

دغسې هم ډېر نور کلمات چې مثلاً اوس په پارسي کې د بسیطو الفاظو په ډول راغلي دي پخوا یې ریښې درلودې هغه وخته چې د سنسکریت او اوستا څخه پهلوي ته راغلي، د اشتقاق ریښې یې ورکې شوې. مثلاً آزردن (خورول) ددې مصدر ریښه په سنسکریت کې (جر) وه یعنې زړېدل، ذلیل کول. (آ) چې سابقه ده. د نژدې او طرف په معنا دمخه یې راغله (آجر= آزر) شو، چې په پهلوي او پارسي کې آخر ته مصدري (دن) ورزیات شو؛ نو آزردن شو[2].

---

[1] فرهنګ نظام، ج ۳

[2] فرهنګ نظام، ج ۳

د پښتـو څـوروڵ او زړېـدل هـم دواړه دغـه د (جر) ريښـه لـري او دا مصادر د (څور = زور = زوړ = جر) له ريښې څخه راوتلي دي.

ددې خبرې لپـاره يـو بـل مثـال هـم دادی، چـې نشسـتن پاړسـي مصـدر مرکـب دی، پـه سنسـکريت کـې ريښـه (سـد = سـت) ده. (نـی) سـابقه ده چـې د کښته معنـا لـري: نـو کلمـه (نـی سـد = نـی شـد) وه، پـه پهلـوي کـې آخـر دال پـه (س) واوښـت او مصـدري علامـه ورسـره ملګـرې شـوه (تـن) نـی شسـتن شـو، چـې پـه پاړسـي کې (ی) هم حذف شوه نشستن پاتې شو[1].

کـه مـوږ پـه غـور وګـورو د پښتـو (ناسـت) او (ناسـتل) چـې وروسـته يـوه سـابقه (کښـې) عينـاً د هغـه (نـی) پـه معنـا پـه سـر کـې ورزياتـه شـوې ده، لـه دغـو ريښـو څخـه دی؛ ځکـه چـې عنصـريې هغـه (سـد = سـت) دی چـې پـه سنسـکريت کـې هـم و او د پښتـو پـه (شته) کې هم تر اوسه شته.



پـر دغـه اسـاس آريـايي ژړې ژبـې ټـولې د کلمـاتو د سـاختمان لپـاره اصول او ريښـې لـري، چـې د پښتـو ژبـې اوسني ژونـدي اکثـر کلمـات هـم دغسـې دي او ضـرور يـوه ريښـه مـومي او لـه بسيطوالي او جامدوالي څخه مرکب ته ځي.

مـثلاً لومـړی پـلا چـې (هـديره) يعنـې (قبرسـتان) کلمـه سـړی وايـي، داسـې ښکـاري چـې بسـيطه کلمـه ده حـال دا چـې دا کلمـه مرکبـه ده (هـډ) يعنـې (اسـتخوان) ديـره (يعنـې قرارګـاه) دا دوې کلمـې سـره ونښـتې يـو (د) يـا (ډ) حـذف شـو. هـديره خنې جـوړه شـوه. دغسـې هـم مـثلاً پزه يـا پـوزه پـه پښتـو کـې (بينـي) تـه وايـو پـه پاړسـي (پـوز) د انسـان او حيـوان د مـخ راوتلـې بـرخې تـه وايـي (پـوز) هـم پـه پاړسـي جـګ او راوتلـي ځـای تـه وايـي. پـه پهلـوي کـې هـم

---

[1] فرهنګ نظام، ج ـ ۳.

(پوز) په دغو معناوو مستعمل و[1] او (پوز ـ پوزه ـ پزه) په آریایي ژبو کې مستعمل او عنصري توری یې (پ ـ ز) دی نو ګویا په پښتو کې (پزه = پوزه) چې (بیني) ته ویل شوی دی. معلول په علت دی او دا نوم په یوه مناسبت پر اېښو شوی دی. چې د آریایي ژبو د لغاتو له ساختمانه سره سم دی.

دا قدیم اصول لکه په سنسکریت او اوستا کې چې پر لغاتو او کلماتو باندې جاري وه. تر اوسه ه په پښتو کې جاري دی: که عوام وغواړي چې د یوه نوي شي لپاره نوم وضع کړي طبعاً له دغو اصلي قواعدو څخه کار اخلي، مثلاً تحت البحري د نوي عصر له اختراعاتو څخه ده، چې حسب الضروره یې په پښتو کې (اوبتل) OBTAL ده، دا نوم مرکب دی له (اوبه) + (تل = عمق) څخه. دغسې هم آیر پلان یعنې طیاره (الوتکه) بولي څکه چې الوځي او د ګرامافون ریکارد (ټیکله) بولي: څکه چې لکه ټیکله ګردی دی.

په پښتو آسیت (لستونی) بولي. دا هم مرکبه کلمه ده. لاس+ تونی. یعنې د لاس پوښ: دغسې ګړونج (ګړوچی) مرکبه کلمه ده: ګړی+ ونج یعنې د ګړې (کوزه) اېښوولو ونج (مېز) دغسې دی:

پرتوګاښ (تنبان بند) پرتوګ + واښ
سترګې (چشمها) سترګه + ی
ښاغلی (نیکمرد) ښه+ آغلی (نېك)



[1] فرهنګ نظام.

# ضمایم



پښتو از میدي ژبه- کوشاني ژبه- پښتو او زړه فارسي (فرس قدیم) دوه نیم زره کلنی شعر په زړه پارسو د زړو ژبو او پښتو عروض- پای استدراك- د کتاب ماخذونه.

# پښتو او ميدي ژبه

لکه چې د کتاب په لومړيو برخو کې هم اشاره وشوه، ميديان يا ماديان آريايي خلك وو، چې د قبل المسيح د اوومې پېړۍ په ابتداء کې دوی په غربي ايران کې يو سلطنت جوړ کړ، مؤرخين وايي، چې: دا خلك تر مسيح لس پېړۍ دمخه هلته تللي وو[۱].

په دې کتاب کې موږ نور له دغه (ماد) قومه سره اړه نه لرو؛ خو ځکه چې دوی هم قديم آريايي اقوام دي او ژبه يې هم پس له اوستا څخه قديمه آريايي ژبه ګڼله کېږي؛ نو ښايي چې د ژبې د قدامت له پلوه د پښتو سره تطبيق کړه شي.

ډارمستېټر وايي، چې: اوستا هم لومړۍ په مادي ژبه نوشته شوې وه او دغه مادي ژبه له پخوانۍ پاړسو OLD- PERSIAN سره ډېره نژدې وه او اوسنۍ کردي ژبه هم له مادي ژبې څخه مشتقه شوې ده[۲].

---

[۱] ايران قديم ص ۳۹.

[۲] ايراني مطالعات.

ځکه چې دغه میدي اقوام هم پس له عمومي هجرته چې آریایانو له باختره کړې د ایران په ورشوګانو کې سره خپاره شوي دي؛ نو ښایي چې د دوی په ژبه کې هم باختر آثار وي.

متاسفانه له میدي ژبې څخه موږ ته اوس څه نه دي پاتې، چې هغه د پښتو سره مقابله کړو. فقط هیروډوت د مؤرخینو پلار، له دغې ژبې څخه یوه کلمه ضبط کړې ده او هغه سپاکه SPACA ده، چې د سپۍ (BITCH) معنی لري[1].

ګریسون وایي، چې: میدي ژبې د ایران په شرقي خوا کې ویل کېدې؛ ځکه نو دی د پامیر او د هندوکش د جنوب ژبې لکه غلچه، اورمړي، بلوخي او پښتو ټوله په میدي ډله کې داخلوي، چې دده په اصطلاح نن پرشک NON- PERSIC ژبې دي.

ددغو ژبو نژدېوالی هم له دې خبرې څخه ثابتوي، چې په اورمړي ژبه SPUK او په پښتو سپی SPAE هغې یوې کلمې ته چې له میدي څخه پاتې ده، ډېرې نژدې دي. حال دا چې په پهلوي او پارسي یې سګ SAG بولي چې له میدي څخه لېرې کلمه ده[2].

که د میدي ژبې نور کلمات او الفاظ اوس موجود وای؛ نو به د پښتو مطابقت له دغې زړې ژبې سره ښه ښکاره شوی وای؛ خو دلته پر دغه یوه کلمه اکتفا وشوه، چې د پښتو سره نژدېوالی لري.



[1] د هیروډوت جغرافیا، ص ۲۸۹.

[2] لنګوستیك سروې اف اندیا، ج ۱۰ـ ص ۲ ۳

# کوشاني یا تخاري ژبه



## د پښتو سره دغې ژبې اړیکې

د ۱۹۵۷م کال د مې په اومه د فرانسې د لرغوني پوهانو ډلې د بغلان د سره کوتل په خرابو کې یو ډبرلیك (سنگ نبشته) تر خاورو لاندې وموند، چې پر یوه لویه ډبره په یوناني شکسته خط ۲۵ لیکې په ۹۴۷ حروفو لیکلې شوې دی. د سره کوتل خرابې د یوه قدیم معبد آثار دي، چې د لرغون پوهانو په عقیده دلته یوه لویه آتشکده وه او د مقدس اور آثار او نغري تول په حفریاتو کې ښکاره شول او دغه پوهان وایي، چې د کوشاني عصر دغه اورتون (آتشکده) د ۲۴۰م په شاوخوا کې په یوه عمدي اور کې ورانه شوې ده.

په دې حفریاتو او پلټنو کې نورې کوچنۍ نوشتې هم پیدا

شوي دي؛ مګر تر ټولو مهمه کتیبه دغه ۲۵ لیکي نوشته ده. چې د فرانسي پوهاند M. MARICQ او انګلیسي ژبپوهاند M.B. HENNING یې د لوستلو کوښښ کړی دی او د فرانسې بل مشهور ژبپوهاند EMILE BENVENISTE هم د ژورنال اسیاتك ۱۹۶۱م په یوه نشریه کې ددې ډبرلیك پر دوو نورو نسخو باندې په تفصیل بحث کړی دی.

## درې نسخې:

د بغلان د سره کوتل د آتشکدې په خرابو کې چې علمي حفريات جاري شول، تر خاورو لاندې یوه لویه ډبره پیدا شوه، چې ۲۵ لیکي ده او اوس د کابل په موزیم کې پرته ده.

دا لویه کتیبه ډېره خوشخطه او لیك یې ښه واضح او د ویلو وړ دی، چې مخ یې ۱۱۷×۱۳۲ سانتي دی او خط ته یې هیڅ تاوان نه دی رسېدلی. دغه لویه ډبره زه د کتیبې لومړۍ نسخه بولم.

کله چې د حفرياتو ډلې د آتشکدې مخکه ټوله تر علمي پلټنو لاندې وکینله؛ نو هلته یو لوی ځا راپیدا شو، چې ډېر پوخ ودان شوی و، په دغو ډبرو کې چې په ځا کې د تعمیري موادو په ډول کار شوې وې، پر ځینو ټوټو ډبرو باندې هم یو څه نوشتې په هغه یوناني رسم الخط ښکاره شوې، دا ټولې د ډبرو ټوټې (۵۳) دي.

عجبه خبره داده، چې پوهانو دغه د ډبرو مختلفې ټوټې تر علمي کتنې لاندې سره ترتیب کړې؛ نو د هغې لومړنۍ کتیبې دوې نورې نسخې هم لاس ته راغلې، په دې تفصیل:

## دوهم نسخه:

پر ۲۱ ټوټه ډبرو باندې په (۲۷) لیکو کې کیندلې شوې ده؛ خو خط یې تر اولې نسخې خراب دی، د ډبرو ځینې برخې یې ماتې شوې او حروف یې الوتي دي. دا نسخه په املا کې هم ډېر لږ له لومړۍ نسخې سره فرق لري.

## درېیمه نسخه:

دودېرش ټوټې ډبرې او ۲۷ لیکې ده، ډېرې برخې یې ماتې او الوتې دي، خط یې هم ډېر بد او بې تناسبه دی، د کلماتو املا یې هم لږ څه فرق لري، حروف یې ځینې غټ او ځینې واړه دي.

استاد بنوینست دغه درې نسخې سره مقابله کړې دي او د ځینو کلماتو د املا اختلافات یې هم ښوولي دي.

داسې ګومان کېږي، چې د آتشکدې ترمیم کوونکو به لومړی پلا د کتیبې درېمه او دوهم نسخه پر مختلفو ډبرو باندې په ټوټو کې لیکلې وي؛ مګر وروسته یې لیدلې دي، چې ددغو نسخو خط هم ښه نه دی، د کلماتو املا یې هم نقص لري او د ډبرو پر مختللو ټوټو باندې هم یوه کتیبه محفوظه نه پاتېږي؛ نو یې په درېمه پلا عین هغه مطالب په صحیحه املا او ښه خط په ډېره لویه ډبره ولیکل او د دوهمې او درېمې نسخې ډبرې یې له نورو تعمیري موادو سره په ځای کې د سنګ کارۍ په ضمن کې کار کړې، چې اوس موږ ته درې سره نسخې د علمي پلټنو په برکت لاس ته راغلې.

## دکتیبې دلیک وخت:

د کوشیانیانو ډېرې نوشتې د پښتونستان او هند په قدیمو ځایو کې پیدا شوې دي، چې پر تولو د لوی کوشاني پاچا کنیشکا تر جلوس وروسته کلونه د تاریخ په ډول کښل شوي دي او لرغونپوهان متفق دي، چې د کنیشکا د جلوس سنه یې د تاریخ مبدأ وه او له دې کاله یې د سنواتو حساب کاوه.

د کنیشکا د جلوس پر اصلي کال باندې د پوهانو اختلاف دی او د ښاغلي کهزاد په قول دده د جلوس کال (۱۲۰م) دی، چې د شاهي زمانه یې له ۱۲۰ تر ۱۶۰ پورې وه[۱].

ستین کونو STEN- KONO ایټالوي پوهاند پر دغه موضوع باندې یوه مقاله په اکتا اریانتالیا مجله (ج ۶ ص ۹۳) کې لیکلې ده، چې د کنیشکا د شاهي زمانه له ۱۲۵ تر ۱۵۲م پورې بولي او دغه قول کریستن سن غوندې محقق پوهاند هم رانقلوي[۲].

د ښاغلي کهزاد تر قول دغه د ستین کونو خبره تحقیق ته نژدې ده؛ ځکه په هند کې د کنیشکا یوه کتیبه شته، چې تاریخ یې دده جلوس ۲۳ کاله او د دوبي اوله میاشت ده، چې د (۱۵۱م) سره مطابقت لري.

دغسې یوه بله نوشته د کنیشکا د جانشین واسشکا د زمانې ده، چې تاریخ یې د ۲۴ کال (دوبی = ۱۵۲م) دی؛ نو له دغو اسنادو څخه ښکاري، چې کنیشکا باید د ۱۵۱_۱۵۲م د دوبي تر منځ مړ وي[۳].

---

[۱] تاریخ افغانستان ۲۲۲/۲.

[۲] مزدا پرستي در ایران قدیم ص ۱۱۴.

[۳] د ستین کونو خروشتي کتیبې ص ۱۶۸

علاوه پر دغه ستمین کونو د چیني اسنادو (هو- هان- شو) په حواله لیکي، چې کنیشکا تر ۱۵۲م دمخه ختن ته تللی او هم په دغه کال مړ شوی یا وژل شوی دی[1].

نو دغه عالم د کنیشکا د تاریخ عهد مبدأ (۱۲۹/۱۲۸م) کال تعیین کوي، چې حقیقت ته نژدې ښکاري[2].

زموږ د بغلان د سره کوتل پر کتیبه تاریخ داسې لیکل شوی دی:

((پدئی ایوګ او دوهیرس خشون نیسان ماه مال))

یعني: ((د سلطنت په یود پرشم کال، د نیسان ماه مال)).

له دې تاریخه داسې ښکاري، چې دغه کتیبه به اته کاله د کنیشکا تر مرګه وروسته په (۱۶۰م) کال دده د اخلافو واسشکا یاهو ویشکا په وخت کې لیکلې شوې وي.



## د اوسنۍ فارسي مور ۲۰۰۰ کاله دمخه:

د اروپا ختیځ پوهانو لکه هیننګ او ماریک او بنونیست چې دغه کتیبه یې مطالعه کړې ده، دوی یې ژبه باختري بللې ده؛ مګر د البیروني او البشاري د مقدمې په قول د بلخ او بدخشان تر منځ چې کومه ژبه ویله کېده، هغه یې تخاري بلله او د بلخ ژبې ته نژدې وه[3].

ځکه چې ددې کتیبې ژبه په کوشاني عصر او دربار کې ویله کېده؛ نو که دغه ژبه کوشاني وبولو، یو واقعي نوم به وي.

تر اوسه موږ ته داسې کوم سند لاس ته نه و راغلی، چې تر

[1] دغه کتاب ص ۱۶۹.
[2] دغه کتاب ص ۱۶۵.
[3] آثار الباقیه ۲۲۲_ احسن التقاسیم ۳۳۵.

اسلام دمخه زمانې د فارسي شکل راوښيي؛ خو د بغلان له دغې کتيبې څخه معلومه شوه، چې د ميلاد په اول او دوم قرن کې د افغانستان د کوشانيانو تحريري او ادبي ژبه ددغې اوسنۍ فارسي او دري ژبې مور وه او رسم الخط يې هم يوناني و.

دغه کوشاني ژبه له قديمې دري او اوسنۍ فارسي سره مستقيما د مورولي نسبت لري؛ خو د پښتو سره هم اشتراك او نژدېوالی لري لکه خور.

د لويکانو په رساله کې مې ليکلي و، چې دغه ژبه به يا پښتو وي؛ يا به پښتو ته ډېره نژدې ژبه وي؛ مګر اوس د بغلان د کتيبې تر تحليلي مطالعې وروسته دې نتيجې ته ورسېدم، چې د کوشاني دورې ژبه تقريباً دوه زره کاله مخکې او د ميلاد په اوله او دوهمه پېړۍ کې اصلاً د فارسي مور ده او د پښتو سره هم ډېره نژدې ژبه ده (ښايي لکه خور).

ممکنه ده، چې کله اوس په کوشاني عصر کې يعنې دوه زره کاله دمخه هم په افغانستان کې دوې ژبې وې. يوه ژبه چې د اوسنۍ فارسي او دري ژبې مور وه او د بغلان دغه کتيبه په ليکل شوې ده. او بله پښتو چې پښتنو به ويله. ښايي چې دغې کوشاني ژبې د مجاورت او نژدېوالي له جهته پر پښتو هم اثر کړی وي. يا دا چې لکه اوسنۍ افغاني دري د پښتو اثرونه يې قبول کړي وي.

## د قديمې نظريې تزلزل:

تر دې وروستو کلو پورې د پوهانو مسلمه عقيده دا وه، چې د عربو تر حملې وروسته ورو ورو پهلوي ژبې په تدريج سره

تحول وموند او دغه اوسنۍ فارسي ځنې پیدا شوه[1].

مګر د بغلان د کتیبې پیدا کېدو دا خبره ثابت کړه، چې د پهلوي ژبې د وجود او رسمیت او ترقۍ په وخت کې چې په غربي ایران او ماوراء النهر کې تر تور فانه شمالي او جنوبي پهلوي خپره وه، دلته په تخارستان کې یوه بله کوشاني ژبه ژوندۍ وه چې د پهلوي ځخه نه وه پیدا شوې؛ بلکې د پهلوي سره څنګ په څنګ ژوندۍ او د کوشاني دربار ادبي او تحریري ژبه وه، چې دادی یوه نوشته یې په ۲۵ سطرو او (۶۰) کلمو کې موږ ته د بغلان د آتشکدې ځخه لاس ته راغله.

دا ژبه پهلوي نه ده؛ بلکې د دري فارسي مور ده او د پښتو به خور وي؛ ځکه ځینې کلمات کټ مټ پښتو او د ځینو افعالو ریښې هم له پښتو سره مشترکه دي او له سندي او پهلوي او اوستا سره هم خپلوي لري.



## د کوشاني ژبې الفباء:

د بغلان د کتیبې په ۲۵ لیکو کې د کوشاني ژبې دغسې حروف استعمال شوي دي بنایي چې یو څو نورو حروفو ته به یې د استعمال موقع نه وي راغلې، ددغو حروفو د یوناني شکسته رسم الخط اشکال تاسې په دمخه ځلورو انځورونو کې ولیدل.

له دې الفباء ځخه ښکاري چې، کوشاني ژبه له اوستا، سغدي او پهلوي سره خپلوي لري او له پښتو سره هم ځینې مشترک اصوات لري، لکه (ښ ـ ځ) مګر په صوتي لحاظ د پښتو او

[1] وګورئ د اقبال تاریخ ادبي، مجلهٔ دانشکدهٔ ادبیات او د دوکتور شفق تاریخ ادبیات، ۳۳ په مجلهٔ یادګار کې د تقي زاده مقاله۹۶. د براون تاریخ ادبي ۱ ج ۱۲۹.

کوشاني فرق دادی، چې پښتو ځینې شرقي ږغونه (هندي) هم لري؛ لکه (ړ ـ ډ ـ ڼ) خو په کوشاني کې ظاهرا دغه شرقي اصوات نشته؛ نو موږ پښتو د شرقي او غربي آریایي ژبو جامعه ګڼو. اما کوشاني یوازې په غربي ډله کې راتلای شي[1].

## د پښتو او کوشاني ژبې اړیکې:

ما دمخه وویل، چې: کوشاني ژبه د دري مور ده، یعنې دوه زره کاله دمخه دغه ژبه د افغانستان په شمالي برخو او غرو او درو کې وه او هم له دې ژبې څخه دري د افغانستان په سیمو کې زېږېدلې ده.

ددې خبرې دلیل دادی، چې د میلاد په لومړیو پېړیو کې په اوسني ایران کې فارسي ژبه نه وه؛ بلکې پهلوي وه. اما په همدغه عصر کې په افغانستان کې دغه کوشاني ژبه موجوده وه، چې له همدغې ژبې څخه د اسلام د حلول په شاوخوا کې په افغانستان کې دري ژبه زېږېدلې وه او کوم وخت چې د اسلام څپو او عربي تسلط په ایران کې پهلوي ژبې ته شکست ورکړ؛ نو وروو دري ژبه د افغانستان له سیمو څخه په اوسني ایران کې خپره شوه او د فارسي په نامه د ټول ایران ملي ژبه شوه؛ نو که موږ وغواړو چې د اوسنۍ فارسي سلف ومومو، هغه په افغانستان کې د کوشاني ژبې په شکل کې موندلای شو نه په

---

[1] زما په فکر د غربي او شرقي ژبو فاصل حد باید اباسین وي، اما د غربي خوا فاصله کرښه د هلمند مجرا ګڼلای شوای، د هلمند او اباسین تر منځ باید په آیزو ګلاس فرض کړو، چې د شرقي او غربي اصواتو یوه جامعه سیمه ده او پښتو په دغه سیمه کې د شرقي او غربي اصواتو او لغاتو یوه جامعه نمونه ده.

ایران کې[1].

د بغلان دغه کتیبه موږ ته د قدیمې دري کره وره راښیي او دا ثابتوي، چې په هغه وخت کې دغې قدیمې فارسي (کوشاني یا تخاري) د پښتو سره ټینګې اړیکې لرلې او په افغانستان کې لکه اوس دغه قدیمه فارسي او پښتو څنګ پر څنګ موجودې ژبې وې.

د پښتو سره د کوشاني ژبې اړیکې طبیعي هم دي؛ ځکه په یوه محیط کې که دوې ژبې ویلې کېږي؛ نو هرومرو یو پر بل باندې اثر کوي.

د بغلان په کتیبه کې ځینې کلمات داسې هم شته، چې د هغو ریښې پښتو ته رسېږي؛ نو ممکنه ده، چې دغه کلمات پښتو له کوشاني ژبې څخه اخیستي وي، یا کوشاني ته له پښتو څخه ورغلي وي.

*دلته زه د پښتو او کوشاني ځینې نږدیکیو ته اشاره کوم.*

## حالت:

د بغلان په کتیبه کې ځینې کلمات شته، چې په آخر کې یې ږغیز (صایت) توري راغلي دي. دغسې کلمات لکه پښتو او سنسکریت د حالت په تغییر اوښتي دي، چې دغه خاصیت په فارسي کې نشته.

مثلاً په دې کتیبه کې د کنیشکه = کنیشکا نوم په مختلفو حالتو کې داسې دی:

اضافي او توصیفي حالت: کنیشکو.

---

[1] په پنځمه هجري پېړۍ کې ناصر خسرو قبادیاني لیکي، چې قطران تبریزي شاعر به له ده څخه د فارسي شعر ځینې مشکلات زده کول؛ نو داسې ښکاري چې فارسي هلته نوې ورغلې وه (سفرنامه ص ۸).

فاعلي حالت: کنیشکي.
یو بل نوم: نوکو نزوك.
په فاعلي حالت کې: نوکو نزوك.
په موصوفي حالت کې: نوکونزیك.

## ترکیب توصیفي:

لکه پښتو په کوشاني کې هم اول صفت بیا موصوف راغلی دی مثلاً: بگ شاکنیشکي (شاه عظیم کنیشکا).
مشت خرگومن (خرمن بزرگ).
بگ پوهرلویخ (لویك فغفور).

## په ساکن ابتداء:

په فارسي کې اوس په ساکن ابتداء نه کېږي؛ مګر په کوشاني ژبه کې وه او پښتو دا خاصیت تر اوسه ساتلی دی، مثلاً په دغه کتیبه کې (ستاد = ایستاد) فرومان (د اول حرف په سکون = فرمان) شته.

## د کلماتو اشتراک:

په دغه کتیبه کې ډېر اسماء او افعال له پښتو سره مشترك دي؛ لکه: انند (فیروز و متمتع) بگ (عظیم) تادي اوکید (عجلت کرده شد) نیست او خوت (نیست برامد) ایر (لهجه یی از آور یعني آشت) (الوښال = اروابناد یعني شاد روان او مرحوم) مال (وقت) ایی (یو = یك) وست (له پښتو وېستل ځخه = بر آور) خودی (لهجه یی از کلمه خدای) استیل (ستر یعني رئیس)

اودوهیرس (دېرش = سي) امندر (معبد).

په هر صورت دغه کتیبه د افغانستان په ژبپوهنه کې هم د فارسي هم د پښتو لپاره ډېره مهمه ده او ما ددغې کتیبې پر تحلیل او تاریخي اهمیت باندې یو کتاب ګوتې لیکلی او په ۱۳۴۲ کال په کابل کې چاپ کړی دی، چې دغه مباحث په ډېر تفصیل او تاریخي او لساني اسنادو سره هلته راغلي دي، غوښتونکي دې هلته وګوري.

# پښتو او زړه فارسي (فرس قدیم)

د موړخینو په اصطلاح زړه پارسي یعنې فرس قدیم OLD-PERSIAN هغه ژبه ده، چې پخوا په خاص ایران ((پارس)) کې ویله کېده او د هخامنشي دورې رسمي ژبه وه. د دوی نوشتې، دفاتر او ډبرلیکونه ټول په دغه ژبه دي، پاچاهانو په دغه ژبه خبرې هم کولې؛ مګر اوس ددغې ژبې آثار بې له ځینو لکیونو څخه پر ډبرو پاتې دي، بل څه نشته[1] له دغو لیکونو څخه ژبپوهانو فقط د زړې پارسي (۴۰۰) الفاظ موندلي دي، چې په میخي خط کښلی شوي دي[2].

زړه پارسي د زند ژبې ته ډېره ورته وه؛ لکه زند (۲۴) توري لري، اما لږ څه تر زند ساده ده، په دغه ژبه چې ډبرلیکونه په ایران کې شته، د هخامنشي دورې د موسس، کوروش (۵۹۹_۵۲۹ق، م) له عصره شروع کېږي او په درو څلورو ژبو په

[1] د ایران د ادبیاتو تاریخ، براون، ج ۱ ص ۱۴۰، د کنته اولډ پرشن د امریکا چاپ ۱۹۳۵.

[2] د شفق تاریخ ادبیات ایران، ص ۴

میخي خط کښل شوي دي، یعنې یو مطلب هم په زړه پارسي هم په آسوري هم په عیلامي ژبه نوشته شوي دي[1].

که څه هم زړه پارسي له پښتونخوا څخه لېرې په پارس کې پیدا شوې وه او باید له پښتو سره ډېره نږدې نه وای؛ مګر بیا هم ځکه چې ریښې یې له اوستا سره نښتې دي او د باختر له سرچینې څخه اوبه خور مومي؛ نو به ضرور لغوي قرابت سره لري.

په لاندې کرښو کې زه د زړې پارسي یو څو کلمات له پښتو سره مقابله کوم، چې له هغې ژبې څخه اوس پاته او ماته معلوم دي. له دغې مقابلې څخه به ښایي د قدیمو ژبو روابط د پښتو سره تاسې ته ښکاره شي:

(۱) اومزد: په اوستا کې اهوره مزدا دی او ددې کلمې شرحه دمخه لیکلی شوې ده، چې لومړی جزو یې د پښتو (اور) دی، د ایران د زړې پارسي په ډبرلیکوو کې هم (اورمزد) ضبط شوی ده[2].

(۲) منه: یعنې (آدم، سړی)[3] دمخه ددې کلمې ریښه په سنسکریت او ویدا کې د (منو) تر عنوان لاندې دروښوو له شوه او پښتو یې تر اوسه هم ژوندی ده.

(۳) آبي: یعنې (اوبه، آب) د پهلوي (آو) او د اوستا (آپ) هم ورنږدې دی[4].

(۴) هو: (یعنې ښه) په سنسکریت کې (سو) دی او د پښتو

(۱) د همایي تاریخ ادبیات ایران. ج ۱ _ ص ۱۳۸

(۲) آثار العجم.

(۳) آثار العجم.

(۴) آثار العجم او فرهنګ نظام.

ایجابي (هو) اوس ژوندی کلمه ده.

(۵) دروکا: یعني (دروغ) په اوستا کې (درواغه) او په سنسکریت کې (دروه) او په پهلوي کې (دروغ) و[۱] په اوسنۍ پښتو کې درواغ او دوره دواړه ژوندي دي.

(۶) وسپا: یعني اسپ، په سنسکریت کې (اشوه) او په اوستا کې (اسپه) او په اوسنۍ پښتو کې (آس۔ آسپه) دی چې شرح یې دمخه هم تېره شوه.

(۷) پوترا: یعني پسر، دا کلمه د استخر د داریوش په کتیبه کې د زوی په معنا راغلې ده[۲] چې په اوستا کې هم (پوتهره) او په سنسکریت کې (پتره) او په پهلوي کې (پور = پوس = پوش) وه[۳].

د پښتو (پوت) هم په دغه معنا دی، چې دمخه یې ذکر وشو.

(۸) پیسو PISU: یعني پیس، دا کلمه په پښتو کې هم تر اوسه (پیس) ده، چې په عربي دا مرض برص بولي او په اوستا کې (پئیسه) او په پهلوي کې (پسك) وه[۴].

(۹) پمون PAMON یعني گرگ، چې اوس په پښتو کې پم یعني گرگ او پمن گرگین شته.

(۱۰) نامکا NAMKA: یعني نام، دا کلمه په سنسکریت کې (نامن) او په اوستا کې (نامن) او په پهلوي او پارسي کې (نام) ده، په پښتو کې (نوم) بولي، په زړه پارسي کې (نامکا) وه، په هخامنشي کتیبو کې د یوې میاشتې نوم (انامکا) و، یعني (بې

---

[۱] فرهنگ نظام ج ۳ ص ۴۵.

[۲] نمونه ادبیات ایران.

[۳] فرهنگ نظام ج ۲ ص ۱۲۴.

[۴] فرهنگ نظام ج ۲ ص ۱۵۱.

نومه)[1].

(۱۱) مرګا MARGA: یعني مرغ، دا کلمه په سنسکریت کې مرګه (جاندار و چارپا) او په اوستا کې (مرغه) او په پهلوي کې (مروك) وه[2] په زړه پارسي کې (مرګازانا) د یوې میاشتې نوم و، چې د اران په زړو کتیبو کې یې ذکر راغلی دی. مرګا یعني مرغه او (زنا) یعني زوول؛ ځکه چې دا میاشت د مرغانو د زوکړې وخت و؛ نو په دغه نامه یاده شوې ده[3]. د پښتو مرغه (پرنده) او (زوول) دغو قدیمو کلمو ته نژدې دي.

(۱۲) ویاخنا VYAKHNA: دا هم په زړه پارسي کې د یوې میاشتې نوم و، چې په اوسنی پارسي یې اسفند بولي، کلمه داسې معنا لري: وی یعني بی + اخنا یعني یخني او ساړه. لومړی جزو یې هغه د پښتو (یه) = د سنسکریت (۱) دی چې په زړه پارسي کې (وی) هم و. دوهم جزو یې (اخنا) دغه اوسنی د پښتو (یخني) کلمه ده، چې اوس د سرما او زمستان په معناوو مستعمله ده.

دا کلمه په اوستا کې (ایسي) ده، چې (س) په (خ) اوښتی دی؛ نو په سنسکریت (یج) د برېښېدلو په معنا و، چې د یخي صفت دی او د سنسکریت (ج) په اوستا کې په (س) اوښتی و[4].

له دې لنډې مقایسې څخه چې فقط په یو څو لغتو کې وشوه د پښتو نژدېوالی له هغې زړې پارسي ژبې سره هم ښکاري او دا څرګندوي، چې زړې پارسي هم باختري عناصر درلوده.

---

[1] تاریخ عمومي عالم ص ۳۷۷، ج ۱

[2] فرهنګ نظام ج ۵ ص ۱۱۰.

[3] تاریخ عمومي عالم ج ۱ ص ۳۷۷.

[4] فرهنګ نظام ج ۵ ص ۵۴۸.

# دوه نیم زره کلنی شعر په زړه پارسوکي



لـوی داریـوش د ایـران د هخامنشـي کورنـۍ یـو مشـهور پاچـا دی، چـې د (۵۲۲ ق، م) څخـه یـې تـر (۴۸۶ ق، م) پـورې سـلطنت کـړی دی. دده پـه امـر د بغسـتان (بېسـتون) پـر غـره یـو ډېرلیـك کینـدل شـوی دی او پـه څلورم ستون او ۶۴/۶۳ بنـد کـې یـې داسـې یوه اخلاقي حماسه لیکلې ده:

((داریـوش پاچـا وایـي: اورمـزد او نـورو بغـانو (خـدایانو) ځکـه زمـا مرسـته وکـړه، چـې نـه اړیکـه وم، نـه دروهـونکی وم، نـه ځورونکی وم، نه زه نه مې کورنۍ له رښتیا څخه واوښتو.

نـه مـې مریـي، نـه مـې بېـوزلي وځـوراوه. چـا چـې زمـا د کورنـۍ مرسـته وکـړه، هغـه مـې ونـازاوه او چـا چـې زمـا د کورنـۍ ورانـی

وغوښته، هغه مې وځوبلاوه))[1].

دکتـور معـین د تهـران د پوهنتـون اسـتاد وایـي، چـې: پـه دې اخلاقـي حماسـه کـې پـه خـاص ډول یـو درې مسـریز شـعر راغلـی دی داسې په اصلي مېخي خط:

ذغه شعر په اوسنی لیک:

مصراع ۱ : naiy a rai ka ā ham = ٦

نے أ رې که آ هم

مصراع ۲ : naiy drau jo na ā ham = ٦

نے درو جه نه آ هم

مصراع ۳ : naiy zur ka ra ā ham = ٦

نے زور که ره آ هم

ددې شـعر هـره مسـری شـپږ شـپږ هجـاوې (سـپېږ) لـري او داسـې دی؛ لکـه د پهلـوي ژبـې د پاتکـارز رېـران کتـاب شـپږ هجـائي

[1] اولډپرشن ص ۱۲۹ د کنټ تالیف طبع امریکا ۱۹۳۵.

پـه مېخـي خـط د زړې پارسـو لیکونـه، د نـورمن شـاپ تـالیف د شـیراز چـاپ ص ۶۷.

مسري[1].

اوس به دغو مسریو ته ځیر شو او بېلې بېلې هجاوې به یې سره ونښلوو، وګورئ دا خو پښتو دی، چې داسې ویلی کېږي:

| | | |
|---|---|---|
| ۱ــ نی | اړیکه | اوم. |
| ۲ــ نی | دروه جنه | اوم. |
| ۳ــ نی | ځورکړه | اوم. |

# کلمات

لاندې د هرې کلمې شرح هم ولولئ، چې ښه مو یقین شي، چې دا پښتو دی:

۱ــ نی NAIY: په پښتو کې د (نه یې) مخفف دی، (نه) د انکار او نفې توری دی چې په اوستا کې NOIT او په سنسکریت کې NED او پهلوي کې NE و[2] او (یې) فاعلي او مفعولي غایب ضمیر دی، نه یې دوې هجاوې لري؛ خو چې مخفف شي (نی) یوه هجا ده، دا مخففه انکاري او نافیه کلمه په اوسنی پښتو کې هم شته، یوه لنډۍ ده:

نی درکوم نه یې پرېږدمه

د زړه له داغه مې سور ګل ګوره مینه!

وګورئ دلته دواړه شکله راغلي دي، د لومړۍ مسرۍ (نی) او (نه یې) دواړه په یوه معنا دی؛ خ ـ لومړۍ کلمه سپکه شوې ده (نی) په مجهوله (ې) ویله کېږي.

---

[1] کنجکاویهای علمی و ادبی ص ۴۴ د تهران طبع د دکتور معین مقاله.

[2] اولډپرشن، ص ۱۹۲.

مسري خان ګګیاڼی وايي:

نه يې عذر نه حجت وي
د يار امــر ته تيار وي

(دیوان ص ۱۵۴)

۲_ اړيکــه ARAIKA: دا کلمــه ځينــو پوهــانو پــه زور د پارســي ژبې (اریغ) تـه کش کړې ده. حـال دا چې پـه خپلـه دغـه کلمـه هم پـه مختلفـو خطـي نسـخو کـې مشـکوکه او (آزیـغ) هـم راغلـې ده[1]. دوی وايـي، چـې معنـا يـې عـداوت او دښمنـي او نفـرت ده، چـې ازیغ هم رانقل شوې ده[2] پـه هر صورت کـه پـه پارسي کې اریغ هم ثابـت شـي چې شـته؛ نـو بـه هغـه هـم لـه دغـې ریښـې څخـه راشین شـوی وي؛ خـو پـه پښتـو کـې کټ مټ دغـه زړه کلمـه اوس هـم مستعمله ده او معنـا يې هـم مضر، مـانع، پـای بند، مغرض، عـدو او دښمن ده.



لـه دې کلمـې سـره نـور داسـې کلمـات هـم اوس پـه پشـتو کـې شـته، چـې لـه دغـې ریښـې څخـه راوتلـي دي؛ لکـه اړ (ګرفتـار او محتـاج) اړيکـې (پـای بنـد او مـانع او مضـر) اړی، اړتيـا (مشـکلي او احتيـاج) ددې کلمـې اسـتعمال پـه پښتـو ادب کـې خـورا زوړ دی، د (۴۰ هـ) پـه شـاوخوا کـې چـې لـودي کورنـۍ پـه ملتـان کـې پاچـاهي کولـه، لـه دغـې کورنـۍ څخـه يـو شـاعر شـیخ رضـي ويلـي دي:

هغه ګروه دې اوس آړه کړ
چې پــــــلرو دې رڼاوه

---

[1] لغت فرس ص ۲۳۸ د تهران چاپ.
[2] برهان قاطع.

نصر لودي دده په جواب کې وايي:

توراني دښمن چې وايي
زه له ګروهه په آړه يم[1]

اړه هم له دغې قديمې ريښې څخه دی، چې معنا يې په نفرت او عداوت او اړول دی، په پښتو وايي: پلانی اوښتی دی، يعنې په عداوت ملحد شوی او له دينه وتلی دی. اما اړيکه په دې شعر کې شته، سلام قندهای وايي:

کله به ورسېږي ستا د خولې آواز ماته
چې اړيکه مې شو په مينه کې غماز ماته

دلته اړيکه کټ مټ د مخالف او دښمن او مانع په معنا دی.

۳ـ ددې پاړکي د درو مسريو مشترکه سجع (آهم) دی او اوس دا فعل په مختلفو لهجو (وه م، وه مه، اوم، اوه م) يوه يوه هجا ده؛ مګر (وه مه يا اوه م) دوې دوې هجاوې لري، چې د زړې پاړسو له (آهم) سره نژدې دي. په ټولو لهجو کې واو زورکی لري او د زورکي ښکاره کوونکی توری (هـ) ده؛ نو د (آهم) د منځ (هـ) به هم ښايي دغسې آواز ښکاره کاوه او اوس يې موږ ځلورم حرکت يعنې زورکی بولو، دغه کلمه په سنسکريت کې هم آهم او په ګريك کې HOM وه[2].

۴ـ په دوهمه مسره کې (دروجنه) د پارسي مترجمانو په (دروغزن) ترجمه کړې دی[3] خو په پښتو کې کټ مټ (دروجن،

[1] تفصيل يې وګورئ: لوديان ددې کتاب دوهم ټوك، د کنټ په قول ددغه اړيکه ريښه هم د اوستا انګره او د لاتين Anra دی، چې معنا يې شرير او بې عقيدې دی (اولډيرشن ص ۱۷۰) او د پښتو آړه هم دغو ته بالکل په شکل او معنا کې نژدې ده.

[2] اولډيرشن، ص ۱۷۴.

[3] کنجکاويهای علمی و ادبی ص ۴۳.

دروجنه) موجود دی.

(درو) یا (دروه) په پښتو کې فریب، مکر، حیلې ته وایي، جن یا جنه د نسبت کلمه ده؛ لکه: ماڼیجن، کرکجن، درواغجن.

په پښتو درواغ او دروه فرق لري او بېلې بېلې کلمې دي. درواغ یا دروغ له پارسي سره مشترك دی؛ مګر دروه او دروهل یا دروول د (فریفتن) معنا لري، دروهنه، دروهونکی، دروهلی هم له دغې ریښې څخه دي؛ نو د پارسي (دروغزن) ددې تاریخي کلمې حقیقي تعبیر نه دی؛ بلکې (دروجن) د فریبنده) او حیال او مدلس او قلب کار معاني لري.

نصر لودي پخواني پښتون شاعر هم دا کلمه د (۴۰۰ هـ) په شاوخوا کې استعمالوي، وایي:

دا یې تور تاسې دروهوي
زه مومن ستاسې په تله یم[1]

خوشال خان وایي:

په خپله زوی او ورور باور نشته خوشحاله!
غافل مه شه د جهان له مکره دروه

(ص ۳۳۰ دیوان)

یو بل شاعر ویلي دي:

نه په دروه نه په دروغ نه په ریا شي
کار د دین دی سر تر پایه په رشتیا

۵_ په دریمه مسری کې (زور کره) راغلی دی، چې په پارسي یې معنا زورګر ده، په دغه کتیبه او دیارلسم بند کې دوه واره

[1] تفصیل یې وګورئ، په دوهم ټوك کې د لودیانو کورنی.

(زور) راغلی دی؛ خو دري تنه ژبپوهان لکه تولمن او ویسباخ او بارتولومي ددغو دواړو په اشتقاق کې سره مختلف دي، لکه ګیګر چې په اوستایي ښېړنو کې (ص ۲۴۲ طبع ۱۸۷۹ م) لیکلي دي، په اوستا کې زواري، او په سنسکریت کې جوس، او په زړه پارسي کې زوره، په پهلوي کې زور یا زوار، یا زورش، د زور او فشار او ظلم په معناوو.

دوهمه نظریه داده، چې: د اوستا زوره، د سنسکریت هوارس، د زړې پارسي او پهلوي زور، د فریب او نادرست په معنا ددې کلمې اصل دی[1].

نو بارتولومي یې په دواړو ځایو کې معنا (نادرست، خطا کار، تزویر) لیکلې ده؛ خو ویسباخ (زور، ستم، زور چلول) راوړې ده. تولمن یې په لومړي ځای کې معنی خطاکار او مزور او په دوهم ځای کې زور او فشار کښلې ده[2].



اوس به راشو پښتو ته، چې: تر اوسه هم ځور او ځورول شته او معنی یې هغه ده چې په نورو پخوانیو ژبو کې وه. زور د لومړي توري په فتحه (آزار، زحمت) معنا ورکوي؛ خو (ځور) هم د اول حرف په زور (ستم، فشار) ته وايي.

عبدالقادرخان خټک دغه دوې کلمې په بېلوبېلو معناوو داسې راوړې دي:

نه به ستا د ښایست تل وي هسې دور
نه به زړه وي د عاشق مدام په زور
چې دا دواړه بقا نه لري تېرېږي
بېهوده هومره ستم کړې هومره ځور

---

[1] اولډپرشن ص ۲۱۱.
[2] کنجکاویها، ص ۴۱.

په اول بیت کې زور (زحمت او آزار) په دوهم بیت کې ځور (ستم او ظلم) دی او دا دواړه کلمې له (زور) په اول پېښ بېلې دي؛ نو په اصلي زړه کتیبه کې هم ځور کړه (ستمګر، فشار دهنده، ظالم) و، چې د هغه فعل ځورول دي.

اما ددې کلمې دوهم جزو (کره) دی، چې په پښتو اوس (کړه) وایو کړل، کړنه، کړونکی، کړی له دې رېښې څخه دي. دا کلمه هم پوهانو کړه ویلې ده، په دوو هجاوو (کـه_ره) نو چې دا دوې هجاوې شي، ددې مسرۍ ټولې هجاوې به (۷) شي. دلته دکتور معین وایي، چې:

ښایي د وزن د ضرورت لپاره د (کـه_ره) یوه هجا سپکه شوې او په ګرده مسرۍ کې شپږ هجاوې پاتې شوې وي؛ مګر دا مشکل د پښتو صحیح تلفظ په خپله حل کوي؛ ځکه چې په پښتو (کړل) او (کړه) د کاف په سکون او د (ړې) په زورکې تلفظ کېږي او یوه هجا ده، نه دوې. له دې جهته په پښتو صحیح تلفظ کې دا مسرۍ هم شپږ هجاوې ده او حاجت بل تاویل ته نه لري. په اوستا کې هم (کر) مصدر و، چې د پښتو کړ، کړل او د پارسي کردن ورسره نژدې دی؛ خو د پښتو (کړه) یعنې فعل کټ مټ هغه کلمه ده چې په دې کتیبه کې راغلې ده. په پښتو اوس داسې وایو:

د خدای په کړه راضي اوسه!<br>
له بدو کړو څخه توبه وکړه!



# تقطیع او قافیه

د پښتو اشعار لکه نور پخواني آریایي شعرونه د هجا په حساب وو، د ویدا او اوستا او نورو پخواني پهلوي کتابو اشعار، ټول هجایي وزن لري؛ خو د قافیې قید ډېر کم دی او مسجع پارکي دي، چې د ځینو په پای کې یوه قافیه تکرارېږي او دغه قطعه شعر چې درې مسرې لري، د هرې مسرې په پای کې (آهم) راغلی دی.

خو دا د قافیې تکرار عیب نه و او ځینې اوستایي اشعار هم دغسې مکررې قافیې لري[1] حتی چې د پارسي ژبې پخواني اشعار هم دغسې وو مثلاً د ابن مفرغ دغه درې مسریزه پارکی، چې په الاغاني کې راغلی دی:

آبست و نبیذاست
عصارات زبیب است
سمیه روسپیذاست

یا دا شعر چې د خراسان کوچنو به په کوڅو کې د ابو منذر اسد بن عبدالله القصري پر ماته، په ملنډو وایه او طبري راوړی دی:

از ختلان آمذیه　　بروتباه آمذیه　　بیدل فراز آمذیه[2]

د خواجه عبدالله انصاري (متوفی ۴۸۱هـ) دا کلمات همدغسې دي:

اگر بهوا پری مگسی باشی
اگر بر آب روی خسی باشی
دل بدست آر، تا کسی باشی

دغسې شعرونه د پښتو په عوامي اشعارو کې خورا ډېر دي،

---

(۱) کنجکاویها، ص ۴۴.

(۲) د قزویني بیست مقاله ۱_۳۲.

په هر کلي کې یو شاعر وي، چې داسې شعرونه ارتجالاً وایي؛ لکه د سلیم زمینداوري د شرع دا یوه ټوټه:

پر تا مین زه خوار و زار یمه
دا د هجران په غمو بار یمه
په سر تور سر درپسې خوار یمه
جانانه زه پر تا مین یمه

ددې شعر هجاوې په هره مسره کې لس لس دي او قافیه یې کټ مټ لکه د هغو قدیمو شعرونو په ډول غبرګه ده او داسې مسجع جملات د پښتو په قدیمو کتابو کې د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء (۶۱۲هـ) او د پیر روښان خیرالبیان (۹۸۰هـ) او د اخوند درویزه په مخزن اسلام کې خورا ډېر دي؛ بلکې پخوانو خپل نثري آثار هم په دغه ډول لیکله، چې شرح به یې ددې کتاب په دوهم ټوک کې راشي.



له دې څېړنې څخه به تاسې ته دا ښکاره شوې وي، چې د پښتو ژبې وجود تر اسلام دمخه او ددغې ژبې نژدېوالی له نورو ژبو سره ثابت دی، البته زه ددې مدعي نه یم، چې پښتو عین زړه پارسو وه لېکن ددې څېړنې څخه دا خو ضرور ښکاري، چې ښایي د پښتو ځینې ادبي قطعات به په دغو قدیمه ژبو کې د قرابت له جهته ساري او جاري او ګډ وو. یا دا چې زړه پښتو په له زړې پارسو سره دونې نژدې وه، چې په لږ تغییر به له پښتو څخه هغه زړه ژبه جوړېده.

که کوم وخت ددغو ژبو پخواني آثار په تحلیلي ډول مطالعه شي ښایي، چې ډېر نور داسې اسناد هم پیدا شي.

خو دا کار د آینده ګانو دی، چې د علم او پوهې په رڼا کې د پښتو پلټنې پسې اوږدې کاندي.

# د زړو ژبو او پښتو عروض

## VERSIFICATION

په آريايي اقوامو کې زاړه کتب او آثار ټول نظم دي: لکه د کتاب په لومړيو برخو کې چې اشاره وشوه، ريګويدا، او ګاتها دواړه يو راز نظم دي، دا نظمونه په مخصوصو لحنو او وزمو ويل کېده، تر دې حده چې اسلامي مؤرخينو د زردشت کتاب (اوستا) زمزمه باله[1].

علاوه پر دغو کتاب د هند آريايانو ډېر نور منظومات هم درلوده، د دوی قصص او روايات لکه مابهارتا او رامايانا او نور ټول منظوم وو، په دوی کې نظم دونې رواج درلود، چې اکثر علوم لکه طب، نجوم، رياضيات يې منظوم کړي وو او دا منظومات به يې په يادوله، البيروني دا مطلب په ښه ډول تصريح کوي، حتی دی وايي، چې ما د اقليدس، مجسطي او اصطرلاب ترجمه په سنسکريت کې دوی ته وکړه. دوی فوراً په اشلوك يعنې يو راز نظم تبديل کړه[2].

ځکه چې نظم په دوی کې ډېر رواج درلود او اکثر ديني، علمي او ادبي متون يې منظوم وو؛ نو هم له دې جهته د نظم کولو علم (چهند) لکه دمخه چې مو ويلي دي، په ويدي علومو کې ډېر اهميت درلود او پر هر عالم لازمه وه، چې دا علم زده کړي.

---

[1] د مسعودي مروج الذهب.

[2] کتاب الهند ج ۱ ص ۱۸۱.

د آریـایي اقوامـو قـدیم منظومـات، پـه سنسـکریت او اوسـتا او پهلوي ژبـو کې د سلایبل (هجـا) پـه حسـاب وو؛ لکـه اوس چې پـه اروپـایي ژبـو کې هـم دغـه نظمـي اصـول جـاري دي؛ د منظومـاتو د توتـو د سـلایبل (ګـړ) تناسـب او پـه شـمېر کې مطابقـت ضـروري و، قافیه ډېره لازمه نه وه[1].

کـه څـه هـم د سنسـکریت علـم العـروض (چهنـد) ډېـر ارت علـم دی او هـم ډېـر کتابونـه پـه کې کښـل شـوي دي او علامـه البیرونـي پـه خپلـه کتـاب الهنـد کې یـو بـاب ددغـه علـم د تفصـیل لپـاره مخصـوص کـړی دی؛ مګـر اساسـي قاعـده هغـه د سـلایبل (ګـړ) شـمېر دی البتـه د شـعر توتې پـه هـر موقـع کې د ګړ پـه حسـاب بېـل بېـل رنګ مومي او اوزان او بحور هم له دې څخه تغییر کوي.

د پښتـو د خپـل شـعر او نظـم اسـاس د ګـړ حسـاب دی، چې د یـو نظـم او شـعر توتې ددغـه حسـاب لـه رویـه بایـد برابـرې وي او دا ډول اشـعار تـر اوسـه هـم پـه پښتـو کې شـته، تـول عـوامي اشـعار یعنې هغـه شعرونه چې د پارسي او عربي پـه تقلیـد کې نـه دي ویـل شوي دغه رنګ او خاصیت لري.

البتـه پښتـو ځیـنې مـدون او مـردف اشـعار هـم لـري چې د پارسـي د غـزل، قصـیدې رباعي او نـورو بحـورو پـر وزن ویـل شـوي دي: مګـر کـه دقـت وکـړو، هغـه هـم تـر عربـي عـروض چې خلیـل بـن احمد ته منسوب دی، نه شي لاندې کېدای.

نـو ګویـا تـول پښتـو اشـعار چې پـه دیوانـو کې مضـبوط دي، یـا شـفاهي اشـعار چې خلـك یې لـولي او سـینه پـر سـینه نقـل کېـږي، د سـلایبل او ګـړ پـه حسـاب برابـرېږي مـثلاً د پښتـو د عـامي شـعر یـو مهـم وزن لنـډۍ ده. چې ددغـه لومـړۍ مسـرۍ بـه ضـرور (۹) ګـړه او

[1] فرهنګ نظام ج ۴

دوهمه مسرۍ به یې (۱۳) وي چې د یوې لنډۍ مجموع ګړونه (۹+۱۳)=۲۲ کېږي.

د پښتو علم العروض (چهند) هم پر دې اساس بنا کېږي او دا د ګړ حساب یو خاص آریایي عروضي اساس دی، چې په ټولو هندو اروپایي ژبو کې له قدیمه پاتې دی. د پښتو او سنسکریت او اوستا زاړه منظومات ټول دغسې دي او په ټولو اروپایي ژبو کې دا قانون په نظم کې جاري دی.

اما د خلیل بن احمد عروض سامي اصل لري، چې پارسي ژبه یې هم تر خپل اثر لاندې کړې ده او دا کار هم تر اسلام وروسته درې څلور سوه کاله پس شوی دی البته د پارسي زاړه آثار به هم لکه پهلوي پر قدیم آریایي قانون برابر وو.

پای



تر دې ځایه ما د لوی ښښتن په مدد د پښتو ادب لومړی ټوک وکېښ او په دې برخه کې مې هغه ابحاث سره یو ځای کړه، چې د پښتو پر اصالت او قدامت دلالت کوي.

څکه چې دا کتاب په خپل مبحث کې اول کتاب دی او دمخه چا په دې کار ګوتې نه دي پورې کړې او هم مأخذونه او مراجع نشته: نو که زه په ځینو خبرو کې تېروتی یم. ښایي چې پوهان به ما وبخښي.

کابل، جوی شیر، د سهار ۹ بجې، ۲۳ د جوزا ۱۳۲۴

# استدراک

## بد = بت:

په دې کتاب کې د (بد = بت) بحث شته او هلته د البیروني له کتاب الهند څخه د (بده) اصل بیان شوی دی، وروسته چې ما آثار الباقیه وکوت، البیروني وایي چې د ماني په (شاپورګان) کتاب کې هم د هندوستان مشهور داعي (بودا) د (بد) په ډول راغلی دی. د آثار الباقیه فاضل مترجم (صیرفي) په حاشیه کې لیکي، چې (بد) په عربي کې هم د (بت) په معنا و؛ لکه ابوالعلاء معیري چې د دنیا غندنه کوي او وایي:

والقلب من اهوائه عابد
ما یعبد الکافر من بده

(د آثار الباقیه ترجمه، ص ۲۲۹)

## تومان:

د زردشت نوم سپینتمان تحلیل شوی دی. د نامه آخره ټوټه (تومان) دی چې په پښتو یې (تومنه) بولي. دا نوم په صریح ډول البیروني (سفید تومان) لیکلی دی، چې د (سپین تومان) پارسي شکل دی.

د آثار الباقیه فاضل مترجم چې ددغه کتاب ځینې برخې له قدیمو نسخو څخه لاس ته راوړې دي، هلته د زردشت په مبحث کې دا کلمه راغلې ده. (د آثار الباقیه دترجمې آخر).

# ددې کتاب ماخذونه

ددې کتاب له لیکلو کې ما له ځینو کتابو څخه استفاده کړې ده او هر مقصد چې مې له یوه کتاب را اخیستی دی، د مخو په لاندې برخه کې مې هغه کتاب او مخ او ټوک ښوولی دی، دلته فقط د هغو کتابو نومونه بېل راوړم. (حبیبي)




۱. قاموس فیروز آبادي.
۲. اقرب الموارد.
۳. معیار اللغه.
۴. تعریفات سید شریف جرجاني.
۵. دایرة المعارف بستاني.
۶. علم الادب.
۷. جواهر الادب هاشمي.
۸. ارشاد القاصد سخاوي.
۹. روح تنقید، محي الدین قادري.
۱۰. ادبیات انګلیسي بروک.
۱۱. د ادبیاتو زدکړه ـ جان مورلي.
۱۲. عین الادب والسیاسه د ابن هذیل.
۱۳. مقدمهٔ ابن خلدون.
۱۴. طبقات الادباء.
۱۵. معجم الادباء. یاقوت.
۱۶. کشف الظنون. حاجي خلیفه.
۱۷. کشاف اصطلاحات فنون، تهانوي.
۱۸. تاریخ ادبیات ایران ـ جلال همائي.
۱۹. نفایس الفنون.
۲۰. انسایکلوپیډیا بریتانیکا.
۲۱. انسایکلوپیډیا، امریکانا.
۲۲. زبدة الصحایف فی اصول المعارف

۲۳. الفلسفة اللغویه، جرجي زیدان.
۲۴. آرینز، گوډن چایلډ.
۲۵. پښتو ګرامر، راورټي.
۲۶. تمدن ایرانیان خاوري، ګیګر.
۲۷. ایران قدیم، پرینا.
۲۸. کیمبرج هیسټري آف انډیا، ج ۱.
۲۹. ویدک انډیا، راګوزن.
۳۰. تاریخ هیروډوت، مکالي.
۳۱. تمدن هند، ګوستاولوبون.
۳۲. هند قدیم.
۳۳. تاریخ هندیها، هنټر.
۳۴. آثار عتیقهٔ آریایها.
۳۵. هند ریګویدي. داس.
۳۶. هندو اروپایي. دولاواله دوپوسن.
۳۷. تاریخ افغانستان. کهزاد.
۳۸. هند قدیم، پانیکار.
۳۹. اوستا، ډار مستېټر.
۴۰. مبحث خطوط، ویسباخ.
۴۱. مردمان قدیم.
۴۲. مقدمهٔ تاریخ هند قدیم، اکبرشاه.
۴۳. ریګویدا_ ګریفټ.
۴۴. اتهرواویدا_ ګریفټ.
۴۵. ګاتها، پور داود.
۴۶. قاموس پښتو، پښتو مرکه (قلمي).
۴۷. قاموس پښتو، راورټي.
۴۸. تاریخ مرصع، افضل خان خټک.
۴۹. تاریخ ادبیات ایران، براون.
۵۰. تاریخ شرق اقصی.
۵۱. هند مدنیت بخش.
۵۲. ریګویدک کلچر.
۵۳. حیات افغاني_ حیات خان.
۵۴. آریانا، کهزاد.
۵۵. مهابهارت اردو، افق.
۵۶. مطالعات افغاني.
۵۷. جغرافیای هیرودوت، ویلر.
۵۸. جغرافیای تاریخ ایران، بارتولډ.
۵۹. انسایکلوپیدیای اسلام.
۶۰. تاریخ باختر، راولنسن.
۶۱. تاریخ الکامل_ ابن اثیر.
۶۲. تاریخ طبري، ابن جریر.
۶۳. تاریخ سیستان.
۶۴. عمل صالح (شاه جهان نامه).
۶۵. پښتانه شعراء، حبیبي.
۶۶. پټه خزانه_ ناشر حبیبي.
۶۷. متریدیتس_ ج ۱_ ایډلنګ.
۶۸. وقایع کابل_ الفن ستون.
۶۹. ګرامر پښتو_ بیلیو.
۷۰. ترانهای ملی افغان_ ډارمستېټر.
۷۱. ګرامر پښتو_ ترومپ.
۷۲. سلسلهٔ لسانیات اکادیمی لینن_ ګراد ج_ ۴.
۷۳. ګرامر پښتو_ لوریمر.
۷۴. راپورت السنهٔ هند_ ګریرسن_ ج ۱۰.
۷۵. علم ادیان_ فرلانګ.
۷۶. معلومات هندي_ ویبر.
۷۷. مذهب ویدي_ اولډنبرګ.
۷۸. مذهب_ بلومفیلډ.
۷۹. تاریخ ابول لفدا.
۸۰. حدود العالم.
۸۱. ګزیټر افغانستان.
۸۲. نسب نامهٔ افاغنه_ عبدالسلام خان.

۸۳. فرهنگ اوستا.
۸۴. خورده اوستا.
۸۵. قاموس هندي و انګلیسي، ډنګن فوربس.
۸۶. السنه پامیر.
۸۷. طبقات ناصري (قلمي جوزجاني).
۸۸. فرهنګ نظام_ محمد علي.
۸۹. ویدا در ممالک_ شمال لاکمینا.
۹۰. تاریخ ادبیات سنسکریت_ مکډونل.
۹۱. جغرافیای شمال غرب هند.
۹۲. آرین ساختن هند_ دوت.
۹۳. کتاب الهند_ البیروني.
۹۴. بودهست اندیا.
۹۵. تعلیمات ویدا.
۹۶. التنبیه والاشراف_ مسعودي.
۹۷. مفاتیح العلوم_ خوارزمي.
۹۸. المنجد.
۹۹. الصیدله_ البیروني.
۱۰۰. مخزن الادویه.
۱۰۱. فقه اللغه پښتو_ یعقوب حسن خان.
۱۰۲. دساتیر اسماني.
۱۰۳. منو شاستر.
۱۰۴. مجلهٔ آثار عتیقهٔ هند_ ج ۱۱.
۱۰۵. زین الاخبار_ ګردیزی.
۱۰۶. آداب الحرب_ فخر مدبر.
۱۰۷. آثار الباقیه_ البیروني.
۱۰۸. تفسیر الجواهر_ طنطاوي جوهري.
۱۰۹. تاریخ ادبیات ایران، شفق.
۱۱۰. ګرامر اوستا_ جکسون.
۱۱۱. جورنال ایشیاټک سوسایټي ۱۸۷۲.
۱۱۲. مروج الذهب، مسعودي.
۱۱۳. دبستان مذاهب.
۱۱۴. لغت فرس_ اسدي.
۱۱۵. تاریخ عمومي عالم_ رضا اخوي.
۱۱۶. فرهنګ ناصري.
۱۱۷. مجلهٔ آریانا_ کابل.
۱۱۸. تعلقات هند و عرب_ سید سلیمان ندوي.
۱۱۹. فتوح البلدان_ بلاذري.
۱۲۰. چچ نامه، ترجمهٔ الیت.
۱۲۱. کتاب البلدان_ ابن فقیه همداني.
۱۲۲. آثار البلاد_ قزویني.
۱۲۳. مزارات بلخ (قلمي) محمد صالح ورسجي.
۱۲۴. معلومات زرتشتي_ جیکسون.
۱۲۵. ګرشاسپ نامه.
۱۲۶. شهنامه_ فردوسي.
۱۲۷. قانون مسعودي_ البیروني.
۱۲۸. فرهنګ نوبهار.
۱۲۹. فرهنګ انندراج.
۱۳۰. ګنج دانش.
۱۳۱. مجلهٔ کابل.
۱۳۲. سرګذشت الفاظ_ میکس میولر.
۱۳۳. ګرامر ویدي_ مکډونل.
۱۳۴. سخندان فارس_ آزاد.
۱۳۵. آثار العجم، فرصت.
۱۳۶. دروس پهلوي.
۱۳۷. کتاب الهند_ البیروني.
۱۳۸. مطالعات ایراني_ ډار مستېټر.
۱۳۹. نمونهٔ ادبیات ایران.

# د پښتو ادبیاتو تاریخ

## دویم ټوک



د پښتو پخوانی تاریخ تر (۱۰۰۰ه) پورې
او
پر پښتو نظم او نثر تحلیلي څېړنه

لیکوال
عبدالحی حبیبي

دوهمه طبع:

# د پښتو ادبیاتو تاریخ

## دوهم ټوک

په دغه نامه یو کتاب د پښتو ټولنې له خوا په ۱۳۳۸ کال کې خپور شو چې د پښتو ژبې محقق او پیاوړي لیکوال عبدالحی حبیبي څو کاله پخوا لیکلی و او په کابل مجله کې پرله پسې خپور شوی و.



اوس چې دا کتاب دوهم ځل چاپېږي له لومړي ځل نه پکې دومره زیاتوالی راغلی د چې یو نوی مهم تالیف یې ګڼلی شو.

دا کتاب په لومړي چاپ کې ۱۷۶ مخه و او په دوهم چاپ کې د کتاب حجم ۳۶۸ مخه دی.

ددې کتاب په سر کې له دوو عنوانو لاندې (زړه پارسو- دوه نیم زره کلن شعر) څو مخه زیات شوي دي او بیا له لومړي څپرکي نه وروسته د دوهم څپرکي له عنوان لاندې د

لويکانو د کورنۍ يو اهم بحث زيات شوی چې د پښتو ژبې په تاريخ کې ورته نوی کشف ويلی شو.

دا برخه په فارسي ژبه هم د ښاغلي حبيبي صاحب په قلم د يوه مستقل اثر په حيث د (پښتو و لويکانو غزنه) په نامه د تاريخ د ټولنې له خوا چاپ شوه، چې د يوه نوي تحقيق په حيث يې د تاريخ يوه مجهوله برخه روښانه کړه.

ددې کتاب په اخر کې د پير روښان برخه علاوه شوې ده چې د معلوماتو او تحقيقاتو په لحاظ يې په اوس وخت کې وروستنی تحقيق او د پښتو ادب د نوې مهمې دورې څېړنه بللی شو.

انصافاً بايد ووايو چې حبيبي صاحب د پښتو ادبياتو او د پښتو ژبې د تاريخ په روښانولو کې ډېر ستر موفقيتونه ګټلي دي او د لويې برخې خاوند دی.

ددې کار آغاز او ادامه تر ډېره حده دده د همت او زحمت ثمره ده، چې دده د قلمي او علمي خدمت پله يې ډېره درنه کړې ده.

خدای دې دی درون لري او دده د اعمالو پله دې تل درنه وي.

ګل پاچا (الفت)
د پښتو ټولنې مشر
د ثور نولسمه ۱۳۴۲

# لومړی خبرې

ددې کتاب لـه لومړي ټوك كې، تـر اسلام دمخـه د پښتـو پـر وجـود او اصـل مستندې او مفصلې څېړنې وشوې، چې د تـاريخ او ژبپـوهنې پـه رڼـا کې د پښتـو پخوانـۍ ريښـې او زړې ښيـي او دا ښکـاره کـوي، چې پښتـو د ايشـيا د قـديمو ژبـو، زړې پارسـي او اوستا او سنسکریت په څېر زړه ژبه ده.

داسې ښکـاري چې پښتـو د شـرقي او هنـدي ژبـو او غربـي او ايرانـي ژبـو تـر مـنځ يـوه مسـتقله ژبـه وه او لـه ويـدي ژبـې او سنسـکريت سره هغـه نښتـون لـري، کـوم چې لـه پخوانـۍ پارسـي او اوستا او پهلوي سره لري.

دلتـه زه يـو ښکـاره دليـل او قـوي سند راوړم چې د پښتـو رابطـه لـه پخوانـۍ پارسـي سره ښه ثـابتوي او دوه نـيم زره کالـه مخکې د پښتو وجود راښيي.

# زړه پاړسو

لکـه پـه لومـړي ټوك كې چې مـا ليکلـي و، زړه پاړسـو هغـه ژبـه ده، چې دوه نـيم زره كالـه دمخـه د ايـران پـه پـارس كـې ويلـه کېـده او د هخامنشـي پاچاهـانو دربـاري ژبـه وه؛ خـو ددې ژبـې کـوم كتـاب اوس نـه دى پـاتې، فقـط د يـران او مصـر پـر ځينـو غـرو بانـدې ددې ژبـې يـو څـو ډبرليكونـه (كتيبـې) پـه

مېښې خط پاتې دی، چې ټوله (۴۰۰) لفظونه کېږي.

ددې ژبې ځینې لفظونه نه د لومړي ټوك په پای کې ما د پښتو سره پرتله کړي وو، چې بالکل پښتو یا ورنږدې وو؛ خو اوس د هغې ژبې یو شعر راوړم، چې بالکل پښتو دی او تاسې به ورته حیران شئ، چې څنګه دوه نیم زره کاله دمخه هم پښتو اشعار وو او د پاچاهانو پر ډبرلیکونو کښل کېده.

## دوه نیم زره کلنی شعر

لوی داریوش د ایران د هخامنشي کورنۍ یو مشهور پاچا دی، چې د (۵۲۲ ق، م) څخه یې تر (۴۸۶ ق، م) پورې سلطنت کړی دی. دده په امر د بغستان (بېستون) پر غره یو ډبرلیك کیندل شوی دی او په څلورم ستون او ۶۳/۶۴ بند کې یې داسې یوه اخلاقي حماسه لیکلې ده:

((داریوش پاچا وایي: اورمزدا او نورو بغانو (خدایانو) ځکه زما مرسته وکړه، چې نه اړیکی وم، نه دروهونکی وم، نه ځوروونکی وم، نه زه، نه مې کورنۍ له رښتیا څخه واوښتو.

نه مې مریې، نه مې بېوزلی وځوراوه. چا چې زما د کورنۍ مرسته وکړه، هغه مې نازاوه او چا چې زما د کورنۍ ورانی وغوښته، هغه مې وځوبلاوه))[1]

دوکتور معین د تهران پوهنتون استاد وایي چې: په دې

[1] اولډ پرشن ص ۱۲۹ د کنټ تالیف طبع امریکا ۱۹۳۵.

اخلاقي حماسه کې په خاص ډول پو درې مسریز شعر راغلی دی، داسې:

(1) Nê a ri ka á hum
(2) Nê drau ja na á hum
(3) Nê zura ka ra á hum

دا درې مسرۍ داسې لوستلې کېږي:

۱ ـ نې ارې که آ هم
۲ ـ نې درروجه نه آ هم
۳ ـ نې زوره که ره آ هم

ددې شعر هره مسرۍ شپږ شپږ هجاوي (سپږ) لري او داسې دي لکه د پهلوي ژبې د یاتکار زریران کتاب شپږ هجایي مسرۍ[1]

اوس به دغو مسریو ته ځیر شو او بېلې بېلې هجاوې به یې سره ونښلوو، وګورئ دا خو پښتو دي، چې داسې ویلې کېږي:

۱ ـ نې اړیکه اوم
۲ ـ نې دروه جنه اوم
۳ ـ نې ځور کړه اوم

# کلمات

لاندې د هرې کلمې شرح هم ولولئ چې ښه مو یقین شي، چې دا پښتو دي:

۱ ـ نې Nê په پښتو کې د (نه یې) مخفف دی. (نه) د انکار او نفې توری دی چې په اوستا کې NOIT او په سنسکریت کې

[1] کنجکاویهای علمي و ادبي ص ۴۴ د تهران طبع د دوکتور معین مقاله.

NED او په پهلوي کې NE و.[1]

او (یې) فاعلي او مفعولي غایب ضمیر دی، "نه یې" دوې هجاوې لري؛ خو چې مخفف شي (نې) یوه هجا ده. دا مخففه انکاري او نافیه کلمه په اوسنۍ پښتو کې هم شته.

یوه لنډۍ ده:

نې درکوم نه یې پرېږدمه

د زړه له داغه مې سور ګل ګوره مینه!

وګورئ دلته دواړه شکله راغلي دي. د لومړۍ مسرۍ (نې) او (نه یې) دواړه په یوه معنا دي؛ خو لومړۍ کلمه سپکه شوې ده (نې) په مجهوله (ې) ویله کېږي مسري خان ګګیانی وایي:

نه یې عذر نه حجت وي

د یار امـــر ته تیار وي

(دیوان ص ۱۵۴)



۲_ اړیکه ARIKA دا کلمه ځینو پوهانو په زور د پارسي ژبې (اریغ) ته کش کړې ده. حال دا چې پخپله دغه کلمه هم په مختلفو خطي نسخو کې مشکوکه او (آزریغ) هم راغلې ده[2] دوی وایي، چې معنا یې عداوت او دښمني او نفرت ده، چې ازیغ هم رانقل شوې ده[3]. په هر صورت که په پارسي کې اریغ هم ثابت شي چې شته؛ نو بیا هغه هم له دغې ریښې څخه زاشین شوی وي؛ خو په پښتو کې کټ مټ دغه زړه کلمه اوس هم مستعمله ده او معنا یې هم مضر، مانع، پای بند او مغرض او

[1] اولډ پرشن، ۱۹۲.

[2] لغت فرس ۲۳۸ د تهران چاپ.

[3] برهان قاطع.

عدو او دښمن ده.

له دې کلمې سره نور داسې کلمات هم اوس په پښتو کې شته، چې له دغې ريښې څخه راوتلي دي؛ لکه اړ (ګرفتار او محتاج) اړيکی (پای بند او مانع او مضر) اړی، اړتيا (مشکلي او احتياج) ددې کلمې استعمال په پښتو ادب کې خورا زوړ دی، د (۴۰۰هـ) په شاوخوا کې چې لودي کورنۍ په ملتان کې پاچاهي کوله، له دغې کورنۍ څخه يو شاعر شيخ رضي ويلي دي:

هغه ګروه دې اوس اړه کړ
چې پـــــــلرو دې رڼاوه

نصر لودي دده په جواب کې وايي:

توراني دښن چې وايي
زه له ګروهه په آړه يم[1]

آړه هم له دغې قديمې ريښې څخه دی، چې معنا يې په نفرت او عداوت اړول دي، په پښتو وايي: پلانی اوښتی دی، يعني په عداوت ملحد شوی او له دينه وتلی دی.

اما اړيکه په دې شعر کې شته، سلام قندهاري وايي:

کلـــه به ورسېږي ستا د خولې آواز ماته
چې اړيکه مې شو په مينه کې غماز ماته

[1] تفصيل يې وګورئ: لوديان ددې کتاب دوهم څپرکی، د کنت په قول ددغه اړيکه ريښه هم د اوستا انګره او د لاتين Anra دی، چې معنا يې شرير او بې عقيدې دی (اولد پرشن ص ۱۷۰) او د پښتو آړه هم دغو ته بالکل په شکل او معنا کې نژدې ده.

دلته اړيکه کټ مټ د مخالف او دښمن او مانع په معنا دی

۳ـ ددې پارکې د درو مسريو مشترکه سجع (آهم) دی او اوس دا فعل په مختلفو لهجو (وه م، وه مه، اوم، اوه م) دی چې د پارسي (بودم) معنا لري

په دې تلفظونو کې (وم، اوم) يوه يوه هجا ده؛ مګر (وه مه يا اوه م) دوې دوې هجاوې لري، چې د زړې پارسو له (آهم) سره نژدې دی. په ټولو لهجو کې واو زورکی لري او د زورکي ښکاره کوونکی توری (هـ) ده؛ نو د (آهم) د منځ (هـ) به هم ښايي دغسې اواز ښکاره کاوه او اوس يې موږ ثلرم حرکت يعنې زورکی بولو. دغه کلمه په سنسکريت کې هم آهم او په ګريک کې HOM وه[1].

۴ـ په دوهمه مسرۍ کې (دروجنه) د پارسي مترجمانو په (دروغزن) ترجمه کړی دی[2] خو په پښتو کې کټ مټ (دروجن، دروجنه) موجود دی.

(درو) يا (دروه) په پښتو فريب، مکر، حيلې ته وايي. جن يا جنه د نسبت کلمه ده، لکه: ماښجن، کرکجن، درواغجن.

په پښتو درواغ او دروه فرق لري او بېلې بېلې کلمې دي. درواغ يا دروغ له پارسي سره مشترك دی؛ مګر دروه او دروهل يا دروول د (فريفتن) معنا لري. دروهنه، دروهونکی، دروهلی هم له دغې ريښې څخه دي؛ نو د پارسي (دروغزن) ددې تاريخي کلمې حقيقي تعبير نه دی؛ بلکې (دروجن) د فريبنده او حيال او مدلس او قلب کار معناوې لري. نصر لودي پخوانی پښتو شاعر هم دا کلمه د (۴۰۰هـ) په شاوخوا کې استعمالوي، وايي:

---

[1] اولډ پرشن ص ۱۷۴.

[2] کنجکاويهای علمي و ادبي ص ۴۳.

دا یې تور تاسې دروهــوي
زه مومن ستاسې په تله یم[1]

خوشال خان وایي:

په خپل زوی او ورور باور نشته خوشاله!
غــــافل مه شه د جهان له مکره دروه

(دیوان/ ۳۳۰ مخ)

یو بل شاعر ویلي دي:

نه په دروه نه په دروغ نه په ریا شي
کار د دیـن دی سر تر پایه په رشتیا

۵ـ پـه دریمـه مسری کـې (زوره کـره) راغلـی دی، چـې پـه پارسي یې معنـا زورګـر، ده پـه دغـه کتیبـه او دیرلسم بند کـې دوه واره (زور) راغلـی دی؛ خـو دري تنـه ژبپوهـان لکـه تـولمن، ویسـباخ اوبـارتولومي ددغـو دواړو پـه اشـتقاق کـې سـره مختلـف دي لکـه ګیګـر چـې پـه اوسـتايي ځېړنـو کـې (ص ۲۴۲ طبـع ۱۸۷۹م) لیکلـی دی، پـه اوسـتا کـې زو اري، او پـه سنسـکریت کـې جـوس، او پـه زړه پارسـي کـې زوره، پـه پهلـوي کـې زور یـا زوار، یا زورش، د زور او فشار او ظلم په معنا وه.

دوهمـه نظریـه داده، چـې: د اوسـتا زوره، د سنسـکریت هـوارس، د زړې پارسـي او پهلـوي زور، د فریـب او نادرسـت پـه معنا ددې کلمې اصل دی[2].

نـو بـارتولومي یـې پـه دواړو ځـایو کـې معنـا ((نادرسـت، خطاکار، تزویر)) لیکلې ده.

---

[1] تفصیل یې وګورئ په دې کتاب کې د لودیانو کورنی.
[2] اولډ پرشن ص ۲۱۱.

خو ویسباخ ((زور، ستم، زور چلول)) راوړې ده. تولمن یې په لومړي ځای کې معنی خطاکار او مزور او په دوهم ځای کې زور او فشار کښلی ده[1].

اوس به راشو پښتو ته، چې تر اوسه هم ځور او ځورول شته او معنی یې هغه ده، چې په نورو پخوانیو ژبو کې وه. زور د لومړي توري په فتحه (آزار، زحمت) معنا ورکوي؛ خو (ځور) هم د اول حرف په زور (ستم، فشار) ته وایي.

عبدالقادر خان ختک دغه دوې کلمې په بېلو بېلو معناوو داسې راوړې دي:

نه به ستا د ښایست تل وي هسې دور
نه به زړه وي د عاشق مدام په زور
چې دواړه بقا نه لري تېرېږي
بېهوده هومره ستم کړې هومره ځور



په اول بیت کې زور (زحمت او آزار) په دوهم بیت کې ځور (ستم او ظلم) دی.

او دا دواړه کلمې له (زور) په اول پېښ بېلې دي؛ نو په اصلي زړه کتیبه کې هم ځورکړه (ستمگر، فشار دهنده، ظالم) و، چې د هغه فعل ځورول دی.

اما ددې کلمې دوهم جزو (کره) دی، چې په پښتو اوس (کړه) (KRə) وایو، کړل، کړنه، کړونکی، کړئ له دې ریښې څخه دی. دا کلمه هم پوهانو کړه ویلې ده، په دوو هجاوو (که_ ره) نو چې دا دوې هجاوې شي، ددې مسرۍ تولې هجاوې به (۷) شي.

---

[1] کنجکاویها، ص ۴۱.

دلته دوکتور معین وایي:

چې ښايي د وزن د ضرورت لپاره د (که ـ ره) يوه هجا سپکه شوې او په ګرده مسره کې شپږ هجاوې پاتې شوې وي؛ مګر دا مشکل د پښتو صحيح تلفظ په خپله حل کوي؛ ځکه چې په پښتو (کړل) او (کړه) د کاف په سکون او د "ړې" په زورکي تلفظ کېږي او يوه هجا ده، نه دوې. له دې جهته په پښتو صحيح تلفظ کې دا مسره هم شپږ هجاوي ده او حاجت بل تاويل ته نه لري. په اوستا کې هم (کر) مصدر و، چې د پښتو کړ، کړل او د پارسي کردن ورسره نژدې دی؛ خو د پښتو (کړه) يعنې فعل کټ مټ هغه کلمه ده، چې په دې کتيبه کې راغلې ده په پښتو اوس داسې وايو:

د خدای په کړه راضي اوسه!
له بدو کړو ځخه توبه وکړه!

# تقطيع او قافيه

د پښتو اشعار لکه نور پخواني آريايي شعرونه د هجا په حساب وو، د ويدا او اوستا او نورو پخواني پهلوي کتابو اشعار، ټول هجايي وزن لري؛ خو د قافيې قيد ډېر کم دی او مسجع پارکي دي، چې د ځينو په پای کې يوه قافيه تکرارېږي او دغه قطعه شعر چې درې مسرې لري، د هرې مسرې په پای کې (آهم) راغلی دی.

خو دا د قافيې تکرار عيب نه و او ځينې اوستايي اشعار هم

دغسې مکررې قافیې لري[1] حتی چې د پارسي ژبې پخواني اشعار هم دغسې وو، مثلاً د ابن مفرغ دغه درې مسریزه پارکی، چې په الاغاني کې راغلی دی:

آبست و نبیذ است
عصارات زبیب است
سمیه رو سپیذ است

یا دا شعر چې د خراسان کوچنو به په کوڅو کې د ابو منذر راسد بن عبدالله القسري پر ماته، په ملنډو وایه او طبري راوړی دی:

از ختلان آمذیه		برو تباه آمذیه		بیدل فراز آمذیه[1]



د خواجه عبدالله انصاري (متوفی ۴۸۱ هـ) دا کلمات همدغسې دي:

اگر بهوا پری مگسی باشی
و اگر بر آب روی خسی باشی
دل بدست آر، تا کسی باشی

دغسې شعرونه د پښتو په عوامي اشعارو کې خورا ډېر دي، په هر کلي کې یو شاعر وي، چې داسې شعرونه ارتجالاً وایي؛ لکه د سلیم زمینداوري د شعر دا یوه ټوټه:

[1] کنجکاویها، ص ۴۴

[1] د قزویني بیست مقاله ۱_۳۲.

پـر تــا مـــین زه خـــوار و زار یمـــه
دا د هجـــران پـــه غمـــو بـــار یمـــه
پـه سـر تـور سـر درپسـې خـوار یمـه
جانانـــه زه پــر تـــا مـــین یمـــه

ددې شعر هجاوې په هره مسره کې لس لس دي او قافیه یې کټ مټ لکه د هغو قدیمو شعرونو په ډول غبرګه ده او داسې مسجع جملات د پښتوپه قدیمو کتابو: د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء (۶۱۲ هـ)، د پیر روښان خیر البیان (۹۸۰هـ) او د اخوند درویزه په مخزن اسلام کې خورا ډېر دي؛ بلکې پخوانو خپل نثري آثار هم په دغه ډول لیکل، چې شرح به یې په دې کتاب کې راشي.

له دې څېړنې څخه به تاسې ته دا ښکاره شوې وي، چې د پښتو ژبې وجود تر اسلام دمخه او ددغې ژبې نژد ېوالی له نورو ژبو سره ثابت دی. البته زه ددې مدعيٌ نه یم، چې پښتو عین زړه پارسو وه، لېکن ددې څېړنې څخه دا خو ضرور ښکاري، چې ښایي د پښتو ځینې ادبي قطعات به په دغو قدیمو ژبو کې د قرابت له جهته ساري او جاري او ګډ وو. یا دا چې زړه پښتو به له زړې پارسو سره دونې نژدې وه، چې له لږ تغییر به له پښتو څخه هغه زړه ژبه جوړېده.

که کوم وخت ددغو ژبو پخواني آثار په تحلیلي ډول مطالعه شي، ښایي چې ډېر نور داسې اسناد هم پیدا شي.

خو دا کار د آیندګانو دی، چې د علم او پوهې په رڼا کې د پښتو پلټنې پسې اوږدې کاندي.



(۱)

# لومړۍ برخه

## (د پخوانو دوره تر ۶۰۰ هـ)

# لومړی څپرکی

### د اسلام خپرېده او د هېواد دیني او سیاسي حالت:

د ۶۰۰ م کال په شاوخوا کې چې د عربستان له ریګزاره د اسلام لمر راختونکی و، د پښتونخوا پر مځکو له یوې خوا د بودایي دین نفوذ دونې خپور شوی و چې اکثر مراکز او معمور ښارونه ددې دیانت تر اثر لاندې وو، په غربي برخو کې هم د زردشت د دین آخرنۍ وړانګې ځلېدې.

د سیاست له پلوه هم دا غرونه او مځکې تر دوو سلطو لاندې وې، شرقي خواوې د بودایي مذهبو پاچاهانو په لاس کې وې، چې مراکز یې کابل او پېښور او د اباسین د غاړې ویهند وو،

غربي برخې لکه خراسان او سیستان د ایران د ساساني کورنۍ تر حکومت لاندې وې چې دیناً دوی د زردشت پیروان وو.

د لومړي هجري کال ۶۲۲ ع په حدودو کې چې یو چیني سیاح هیون تسانګ په افغانستان کې ګرځي او د پښتونخوا سیمې ګوري، غزنی، زابل، کابل، بګرام، بامیان، بلخ ویني، دی په غزني، کابل، بامیان او بلخ کې ډېر بودایي معابد او بود تونونه راښیي او دده د سفرنامې څخه ښکاري، چې د اسلام په ابتداء کې په پښتونخوا کې هر ځای د بودا د دین بود تونونه موجود وو او خلکو دغه دین پاله او دا سلطه د اسلام د مجاهدینو تر راتګه پورې ټینګه وه[1].

که څه هم رسماً د خلکو دیانت بودایي و او پاچاهانو هم دا دین پاله؛ مګر د سیاست له پلوه د هېواد شرقي او شمالي خواوې متحدې وې او پاچاهان یې هم ددغه ځای وو او تل یې خپل سیاسي او اداري استقلال ساته، تر اسلام دمخه چې د لویو او کوچنو کوشانیانو سلطنت وران شو؛ نو دې هېواد بیا هم د یفتل شاهانو تر اداري لاندې د خپلواکۍ ژوندون درلود او د دوی ډېر لیکونه تر اوسه هم د زابل په روزګان کې شته[2] او بیا نو د کابل او زابل پاچاهانو د رتبیل په نامه اقتدار وموند او هم ډېر عمر په دې ملك کې د سلطنت خاندان وو؛ نو کوشاني او یفتلي او د رایانو کورنۍ هغه پاچاهان دي، چې دوی تر اسلام دمخه او د اسلام د راتګ پر وخت د هندوکش پر جنوبي خوا او کابل او زابل حکمراني کوله او د اسلام تر راتګه پورې څو پېړۍ په استقلال اوسېده او ددې مځکې ثقافت او مدنیت او خپلواك

[1] تفصیل یې وګورئ د هیون تسانګ سفرنامه، د بیل انګرېزي ترجمه.
[2] تصاویر یې وګورئ د موزیم جورنال، پېښور ۱۹۵۳.

ژوندون یې ساته له غربي او شرقي خوا چې پر پښتونخوا خطرات راتله خلك د دغو خپلو پاچاهانو تر سیوري لاندې متحد وو[1].

ځکه چې د دغو غرو خلکو خپل ژوندون په خپلواکۍ تېر کړی او هر کله یې استقلال ساتلی و؛ نو هغه وخت چې تر هجرت ۳۰ کاله وروسته (۶۵۰ هـ) لومړی پلا، د اسلام مجاهدین د سیستان له سیمې څخه پر دې هېواد باندې راغلل؛ ځکه چې دوی ته د اسلام ښېګړې نه وې معلومې؛ نو یې له مسلمانانو سره تقریباً درې پېړۍ مسلسل جنګونه وکړه؛ مګر وروسته چې دوی د اسلام مقدس دین ومانه؛ نو دوی پخپله د اسلام لومړني علمبرداران هم شول.



## خلاصه:

د اسلام ابتداء له ۳۰ هجري کاله دلته کېږي[2] او تقریباً په پنځوس کاله کې د اسلام فاتح لښکر پر سیستان، رخج، داور، زابل، کابل او بست بری مومي او له بلې خوا خراسان او هرات او مرو او مرغاب او پوشنج او بادغیس تر جوزجان او تالقان او فارياب او بلخ پورې فتح کوي او تر ۱۰۰ هـ پورې د اسلام بریالی لښکر تر ختل او خجنده پورې رسېږي او له بلې خوا هم دا فتوحات په سند کې دوام مومي اوله کابله د اټك تر غاړو پورې رسي او هم د سند په سیمو کې ملتان او نیرون او قیقان او قندابیل او نور ټول مشهور ښارونه او کڅونه (بندرونه) د

[1] امپراطوري کوشان، رتیبل شاهان، تاریخ افغانستان ج ۲.
[2] کتاب البلدان الیعقوبي ۵۷.

مسلمانانو په لاس فتح کېږي[1] د اسلام په دوره کې لومړني سل کاله تر ۱۰۰ هـ پورې ددې هېواد د جګړو او مقاومت دوره وه، چې پښتانه ورو ورو د اسلام دین مني او هغو خلکو چې لا دغه دین نه وي منلی؛ نو پر خپل زاړه حالت باتېږي او د اسلام مجاهدین او فاتحین هم په دغه مځکه کې تل په جګړو بوخت و، داسې ښکاري چې د هېواد د غربي خواوو خلك لکه د هرات، سیستان، بست زمینداور، بادغیس، پوشنج او هم د شمالي څنډو اهالي تر بلخه، په لومړۍ اسلامي پېړۍ کې د اسلام په دین مشرف شوي دي؛ مګر د شرقي خواوو اوسېدونکي یعنې د سلیمان غره او سپین غره پښتانه د اباسین تر غاړو پورې وروسته مسلمانان شوي دي د ابن واضح الیعقوبي په قول په (۸۰ هـ) کال عبدالرحمن بن محمد د حجاج له خوا د لسو زرو عربو سره پر سیستان راغې او په (۸۳ هـ) یې رتبیل ته په بست کې ماته ورکړه او بیا قتیبه په (۹۲ هـ) کال د رتبیل سره په سیستان کې مقابل شو[2]. او د خلیفه منصور په عصر کې (۱۴۰ هـ حدود) د بامیان پاچا (شېر) اسلام ومانه، څو چې د الرشید له خوا فضل بن یحیی برمکي ټول کابلستان او طخارستان تر غوربند او شاه بهار (شېبر) فتح کړل او په (۱۷۶) کال یې پر کابلشاه باندې بیا لښکر کشي وشوه. د شاه بهار (شېبر) لوی بت د مسلمانانو په لاس مات کړ شو او فضل برمکي د خلافت له درباره ددې خوا حکمران و[3].

د پېښور په موزیم کې یو عربي ډبرلیك شته چې په (۲۴۳ هـ)

---

[1] د بلاذري فتوح البلدان، ابن اثیر، تاریخ سند.

[2] تاریخ الیعقوبي ۱_۲۳ و ۳_۲۲.

[3] کتاب البلدان د ابن واضح یعقوبي (متوفی ۲۹۲ هـ) اثر د لیدن طبع، ص ۲۹۰.

کال ليکل شوی او د وزيرستان په توچي کې پيدا شوی دی او دا ځنې ښکاري چې په دغه وخت کې اسلام او عربي رسم الخط (ليک دود) او ژبه او ثقافت تر دغو غرو پورې خپاره شوي وو، دغه کتيبه په ساردا او ناګري خط هم ده؛ نو دا ثابتوي، چې د پخواني مدنيت رسم الخط لا نه و ورک شوی، که څه هم په وزيرستان کې د عربي ژبې او خط اثر خپور شوی و؛ اما د کابلشاهانو او مقامي پاچاهانو اقتدار لا له باميانه تر ګرديزه پاتې و، څو چې په ۲۵۶ هـ کال ګرديز او باميان، يعقوب ليث صفاري فتح کړل[1] او د العتبي او حدود العالم (۳۷۲ هـ) له قوله ښکاري، چې پښتانه تر (۴۰۰ هـ) پورې ورو ورو مسلمانېدل او د سلطان محمود تر عصره لا هم په پښتونخوا کې داسې خلك وو چې په تدريج به مسلمانېدل[2].



## د پښتنو تاريخي شهرت په اسلامي دوره کې:

له تاريخي آثارو او پخوانو کتابو له کتنې څخه داسې ښکاري چې د اسلام په لومړيو پېړيو کې پښتانه له بادغيس او هراته، بيا د غور تر غرو پورې مېشته وو، دغسې هم دوی په زابلستان او ګندهارا او د شرقي پښتونخوا په غرو کې اوسېدل، په مدني ښارو کې هم داخل وو، د اسلام د دورې هغه تاريخ ليکونکي او جغرافيا وال چې د دغه هېواد وو، يا يې د دې خوا غرونه او ښارونه ليدلي وو، ډېر د پښتنو ذکر کوي او د پښتو له پخوانو آثارو څخه هم داسې ښکاري، چې پښتانه د اسلام په اوايلو کې مشهور وو او د دوی ژبه هم په دغه وخت کې

[1] زين الاخبار ګرديزي، ص ۶ وګورئ ددې کتاب دوهم څپرکی لويکان.
[2] ابن اثير، آداب الحرب.

یوه داسې ادبي ژبه وه، چې ډېر ښه او پاخه اشعار یې درلودل.

دلته زه غواړم د پښتنو ذکر چې په لومړیو اسلامي پېړیو کې مؤرخینو راوي دي، لنډ بیان کړم، بیا به نور د لومړنیو ادبي آثارو په څېړنه بوخت شم، له دغه لنډ تاریخي تذکاره به تاسې ته ښه ښکاره شي چې پښتانه یو مشهور قوم و او چې دوی موجود او مشهور وو؛ نو طبعاً د دوی ژبه هم موجوده وه او لکه چې ښایي هغسې ادبي موقعیت یې هم درلود.

عموماً په څلورمه هجري پېړۍ کې مؤرخین د پښتنو ذکر په ښه ډول کوي، چې په ښارو کې اوسېدل او خپله ژبه یې ویله، وروسته چې تاسې د لویکانو او سوري او لودي کورنیو حال ولولئ، دا خبره به ښه درته څرګنده شي؛ مګر دلته د ځینو نورو مؤرخینو اقوال هم د پښتنو په باب کې رانقلوم:

۱ــ د اسلامي دورې په جغرافیا لیکونکیو کې لومړی سړی زموږ د هېواد یو مدقق لیکوال جوزجاني دی، چې یو خورا قدیم جغرافي کتاب یې په پارسي ژبه «حدود العالم من المشرق الی المغرب» په نامه په (۳۷۲ هـ) کال کښلی دی، دا لیکوال په هغه ځای کې چې د پښتونخوا ښارونه لکه ګردېز او لغمان او نور ذکر کوي، په "سول" او "بنیهار" نومو ځایو کې د افغانانو استوګنه ښیي[1] او داسې ښکاري چې پښتانه په ښارو کې هم اوسېده او مشهور وو.

۲ــ تر ده وروسته په غزنوي دوره کې ابو نصر محمد بن عبدالجبار العتبي د غزنوي دربار نامتو مؤرخ دی، د (۴۱۵ هـ) په حدودو د سبکتګین په احوال کې لیکي د (جیپال) تر جګړو وروسته افغانان او خلجي (غلجي) د سبکتګین په لښکرو کې

[1] حدود العالم ص ۴۵ـ۴۶.

په زرو زرو داخل شول. بل ځای وايي: ((افغانان په لوړو غرو کې اوسېدل او د سلطان محمود پر لښکر به يې يرغلونه کړل؛ نو محمود له دوی سره سخت جنګونه وکړل))[1].

۳_ ابو ريحان البيروني (متوفی ۴۴۰ هـ) چې د غزنوي دورې معروف عالم او مؤرخ دی وايي: ((ډېر افغاني قبايل د هند په غربي خواوو کې د سند تر څنډو پورې پراته دي[2] او دا مؤلف پخپلو نورو علمي آثارو کې د افغانيه ذکر ډېر کوي[3] او په الصيدله کې د پېښور (پرشاور او دهك)[4] تر منځ د غزنه سره د دوی غرونه او مسکن ښيي[5] چې له دې ځخه هم د دوی شهرت په دغه دوره کې د البيروني له بيانه ښه ښکاري.

۴_ ابن اثير عربي مشهور مؤرخ هم د (۴۰۹ هـ) په وقايعو کې د سلطان محمود جګړې له پښتنو سره بيانوي، چې سلطان د دوی پر غرو يرغل وکړ او له دوی سره يې سخت جنګونه وکړه[6] له دې روايته هم داسې ښکاري چې د پښتنو غرني قبايل لاتر دغه وخته غزنوي حکومت ته نه و اېل شوي او ځکه

---

[1] تاريخ يميني ص ۲۶_۲۶۸.

[2] کتاب الهند، ج ۱، ص ۲۷۷.

[3] کتاب الجماهر ص ۲۳۳_ التفهيم ص ۱۹۹.

[4] د البيروني پرشارو دغه پېښور دی چې پخوا پرشور هم کښل کېده. اما دهك د زکي وليدي توغان (د الصيدلې د ناشر) په قول دغه اوسنی ډکه ده؛ مګر دا خبره د غور وړ ده؛ ځکه چې په غزنوي دوره کې "دهك" د زابلستان يو محبس و، چې مسعود سعد سلمان شاعر هلته بندي و؛ لکه چې وايي: ((هفت سالم بسود سوو دهك)) دا ځای د ابن حوقل او استخري په قول د زرنج او بست تر منځ و.

[5] الصيدله ص ۱۱۰_۱۲۲.

[6] الکامل ج ۹ ص ۱۲۸.

چې دوی په خپل هېواد کې د لوړ حربي او مدني مقام خاوندان وو؛ نو د غزني پاچاهان مجبور وو چې له دوی سره خپلوي ولري او د دوی له متې او توري څخه استفاده وکړي، سبکتګين چې د غزنوي کورنی لويه پاچاهي تاسيس کړه؛ نو يې له دې قوم سره خپلي وکړه او د زابل (زاول) له ملکانو څخه يې د يوه لور ځانته وغوښته، چې د سلطان محمود مور دغه زابلی پښتنه وه او هم له دې جهته سلطان محمود ته زابلی ويلی شي[1] پس له دې چې سبکتګين د پښتنو خپل شو؛ نو دوی د غزنوي سلطنت په مرسته ودرېده او د سلطان محمود د هند په جګړو کې دوی شامل وو او اکثر فتوحات يې هم د دوی په توره کړي دي.

**۵**ـ شريف محمد بن منصور چې په مبارکشاه فخر مدبر مشهور او د غزنوي او غوري دورې مؤرخ دی، ليکي: ((اديرا نومې افغان د سلطان محمود په عصر کې د جيپال له خوا په "نردرې" کې کوتوال و، دا سړی راغی او د سلطان محمود په مخ کې يې اسلام قبول کړ))[2] له دې روايته هم د پښتنو رجالو شهرت او اداري مقام ښکاري او دا هم څرګندوي، چې په دغو وختو کې لا هم ځيني پښتانه په اسلام نه وو مشرف شوي.

دا وو ځيني تاريخي روايات چې د پښتنو د شهرت په باب کې لنډ لنډ رانقل شوه، علاوه پر دې چې د تاريخ پاڼې د دوی نومونه ذکر کوي، پارسي ادب هم له دې ذکره خالي نه دی. مثلاً د فردوسي د شهنامې په ملحقاتو کې د بر ځلې ((اوغان))

---

[1] د حمد الله مستوفي تاريخ ګزيده ص ۳۹۵ طبع ۱۹۱۰ لندن سياست نامه ص ۱۲۶ طبع تهران.

[2] آداب الحرب ص ۱۰۴۳ ديرا دغه اوسنی (ودير) د سافو د يوه قوم نوم دی او معنی يې (هو + دير) يعنې د ښې دېرې خاوند دی.

یادېږي او داسې ښکاري چې په نیم افسانوي قبل الاسلام دورو کې اوغانیان په شجاعت مشهور او د زابل په سیمو کې یې کلاوې او ټینګ مواقع درلودل او کک کوهزاد (غرزی) د دوی مشر پهلوان و، چې له رستم سره یې سختې جګړې کړې دي؛ لکه چې وایي:

چنین گفت دهقان دانش پژوه
مر این داستانرا ز پیشین گروه
که نزدیک زابل بسه روزه راه
یکی کوه بد، سرکشیده به ماه
بیک سوی او دشت خرگاه بود
دگر دشت، زی هندوان راه بود
نشسته در آن دشت، بسیار کوچ
ز اوغان ولا چین و کرد و بلوچ
یکی قلعه بالای آن کوه بود
که آن حصن، از مردم انبوه بود
مر آن حصن را نام مرباد بود
از و جان نا بخردان شاد بود
بدژ در، یکی بد کنش جای داشت
که در رزم با اژدها پای داشت
نژادش ز اوغان سپاهش هزار
همه ناوک انداز و ژوبین گزار
بینا لا بلند و به پیکر ستبر
به حمله چو شیر و به پیکار ببر

بـه نيـرو جـدا كـردی از كـه كمـر
گريـزان ز رزمـش بـدی شـير نـر
و را نـام بـودی كـک كـوهزاد
بگيتـی بسـی رزم بـودش بيـاد [1]

لـه دغـه بيانـه ښكـاري چـې اوغانيـانو ددې كيسـې پـه اصـلي مآخـذو كـې هـم شـهرت درلـود؛ لكـه پـه دغـه كيسـه كـې چـې نـور ځايونـه هـم د اوغـان او د دوی د هېـواد نـوم راوړی، مـثلاً د رسـتم له خولې وايي:

ندارم درنگ امشب ايدر ز كشن
مـگر سوی اوغان و خرگه زمين.

بل ځای بهزاد افغان داسې ستايي:

چو بهزاد اوغان ازو اين شنفت
بدو گفت كاهريمنت باد جفت

بل ځای رستم په قهر وايي:

همه مـــرز اوغان بهم بر زنم
بدين دژ ز كين آتش اندر زنم [2]

شـاعر پـه دې خپـل بيـان كـې (مـرز اوغـان، اوغـان سـپاه) يـادوي او د دوی د مشـرانو لكـه كـك كـوهزاد او بهـزاد نومونـه اخلـي، پـه ښـه ډول دا څرګنـدوي، چـې اوغانيـانو حكومـت او مشـران او سـپاه

[1] د شهنامې ملحقات ج ۱۰ ص ۳۰۶۱.
[2] د شهنامې ملحقات ص ۳۷۵_۳۰۷۴.

درلوده او ښایي چې (دشت خرگاه یا خرگه زمین) هم د پښتنو ورشو وې او مراتع (څر ځایونه) وو، چې دوی به خپلې کیږدۍ په کې درولې.

نور شعرا هم د افغان ذکر کوي. فرخي (متوفی ۴۲۹ هـ) د سلطان محمود په ستاینه کې یوه بولله (قصیده) لري، هلته د اغزیو په صفت کې وایي:

بگونه شـــــل افغانیان دو پره و تیز
چو دسته دسته بهم تیرهای بی سو فار[۱]

دغسې هم د غزنوي دورې یو بل شاعر مسعور سعد سلمان چې د سلطان ابراهیم غزنوي (۴۵۰_۴۹۲ هـ) معاصر دی، پخپلو اشعارو کې د افغان د دلاورانو او جگړو ذکر داسې کوي:



از لشکر ترك و هند و افغان
بر باره هزار شیر نر کرده[۲]

له دغو تاریخي او ادبي تذکارو څخه چې لنډ لنډ مو رانقل کړه، تاسې ته څرگندېږي چې پښتنو په غو وختو کې شهرت درلود.

اوس چې تاسې ته د پښتنو د نامه بولگه په اسلامي تاریخ کې ښکاره شود؛ نو په اصلي مقصد پیل کوو:

---

[۱] د فرخي دیوان ص ۶۳، د شل کلمې شرح به وروسته راشي.
[۲] د مسعود سعد دیوان ص ۴۸۳.

# دوهم څپرکی

## د لویکانو (لاویکانو) کورنۍ

د اسلامي دورې په لومړنیو پېړیو کې د کابل او هندوکش په درو او د پښتونخوا په ښارو کې ځینې محلي د شاهانو کورنۍ پاتې وې، چې دوی د هغو پخوانو هفتالیانو (ابدالیانو) او هونانو (خانانو) او کوشانیانو بقایا وه او غالباً د ابن خرداذبه کابلان شاه او د بامیان شېران شاه او د زمین داور داوران شاه[1] او د زاول هفتالي (ابدالي) چې له دوی څخه د مهر ګل (میر کهول) کتیبه د روزګان په دره شالي کې شته، دا ټول سره خپلوان وو.



ددغو شاهي کورنیو تاریخ ښه نه دی معلوم، فقط له ځینو سکو څخه د دوی یو څو نومونه موږ پېژنو او دا هم نه ده ښکاره، چې د دوی ژبه څه وه؛ خو رسم الخط یې یوناني او سره داناګري، یا کلمه منګولي هم وه.[2]

دلته ددې شاهي کورنیو اصل او تاریخ او وقایع لیکنه مقصد نه ده؛ بلکې د دوی د ژبې څرك اېستل مو په کار دي او دغه دلایل شته چې د دوی ژبه پښتو یا پښتو ته نژدې وه.

---

[1] کتاب المسالك والممالك د ابن خرداذبه، ص ۱۷۰ د لیدن طبع.

[2] د پېښور موزیم په ډېرلیکونو کې یریوه منګولي خط هم شته چې د هونانو (خانانو) عصر دی.

## (ا) د بغلان ليک:

د بغلان په نورو حفرياتو کې چې په يوناني خط او ژبه يا په يوناني خط او بله محلي ژبه ليکونه پيدا شوي دي، تر اوسه ددې کتيبو د محلي ژبې ليکونه ئه دي لوستل شوي او نه ده معلومه چې هغه کومه ژبه وه؟

خو داسې ښکاري چې په مسيحي لومړيو پېړيو کې لا هم هلته د اور پرستش و او په بغلان کې د سره کوتل پر غونډۍ چې له پل خمري څخه (۱۵) ميله د ايبك خوا ته پروت دی، يوه آتش کده کشف شوې ده.

فرانزالشيم روټ شنتيل الماني د بغلان د کتيبې هغه يو څو ليکي لوستي دي، چې په يوناني ليک کښلې دي او يوه جمله يې داسې ده:

((کيرودومي بغولانګ))[1]



پروفيسر هننګ انګليسي وايي، چې په دې کتيبه کې د بغلان قديم نوم بغولنګ دی چې سغدي شکل يې بغدنګ يا بغدنج و، دال په لام تبديل شو او اخرنی جزو (انګ) (آن) واوښت او بغلان څنې جوړ شو او په زړه پارسي کې هم (بغدانګ) د آتشکدې او اورتون معنا لرله.[2]

اوس په موږ دا کلمه تحليل کړو: بغه يا بګه په ټولو قديمو آريايي ژبو کې د (خدای) نوم و. د اوستا: بغه د زړې پارسي: بګه. د سنسکريت: بهګه. د روسي: بګ. د يوناني باګوس ټول له دغه اصله دي[3] او دا لغت په قديمو نومو کې خورا ډېر دی؛

---

[1] د شرق او غرب ايټالوي مجله، نومبر ۱۹۵۷.
[2] آريانا، اسد ۱۲۳۶ ش.
[3] اولډ پرشين ص ۱۹۹.

لکه بغ پور (معرب فغفور) یعني (د خدای زوی) بغستان (بېستون یعني د بغ ځای) بغداد، بغشور، بغني، بغلان (د ښارو نومونه) بغان یشت (د اوستا یو څپرکی) بغار (بهسود دایزنگي) بغاوي (سرپل) بغك (سمنگان) بغیار (وادي کرم).

په پښتو کې دا کلمه اوس هم شته؛ خو شکل یې د اوستا په رنگ (بغه) نه دی؛ بلکې د داریوش د بېستون د کتیبې په ډول بگه[1] ته نژدې دی.

بگ اوس (لوی، عظیم) ته وایي، چې د خدای صفات دي، وایي پلانی بگ سړی دی، یعني لوی دی، قوي دی، توانا دی. ښایي بغه یا بگه هم له صفاتي اسماوو څخه و، نه ذاتي. او وروسته د اسم ذات په ډول مشهور شوی وي، لکه رحمان، غفور، غني او نور صفاتي اسماء الله. دا پښتو (بگ) هم په ځینو قدیمو نومو کې تر اوسه شته لکه بگرام، بگرامي (کابل) بگل (هرات) بگلا (غزني) بگ لك (دایزنگي) بگه پای (تالقان) بگی (ترنگ).

په پښتو ادب کې هم بگ د عظیم په معنی و، شمس الدین کاکړ د کندهار شاعر د (۱۲۵۰ هـ) حدود وایي:

هسې شوم طالع زما دی          باطن ووړ په ظاهر بگ

د افغانستان په فارسي ادب کې هم دا کلمه په دغه معنی موجوده وه، مولوي بلخي وایي:

از چه دم از شاه و ازبك میزنی    در هوا چون پشه را زگ میزنی[2]

اما د کلمې دوهم جزو (انگ) هم د قدیمو ښارو د نومو په پای کې خورا ډېر وینو، مثلاً سالنگ (د کابل شمال ته دره)

---

[1] یسنا ۱ _ ۲۴۰۴، اولد پرشین ۱۹۹.

[2] د شمس الدین دیوان ص ۶۶ او د مولوي مثنوي، لومړی دفتر ص ۴۸.

یکاولنګ (په دایزنګي کې) بشلنګ (د هلمند د ناوې ښار) الیشنګ (د لغمان یوه دره) اولنګ (د سالنګ په منځ کې) مستنګ (بلوچستان کې) زرنګ (د سیستان ښار) پوشنګ (د هرات غربي خوا ته) ګیرنګ (د مرو ښار) وررنګ (د غور یو رباط) چې عربي جغرافیاوالو دغه اخیرني جزو (انګ) په انج اړولي او دا ښارونه یې فوشنج، بشلنج، مستنج، زرنج، جیرنج هم لیکلي دي[1] او لکه پروفېسر هننګ چې وایي، دغه (انګ) او د عربو (انج) د آتشکدې معنا لرله او د بغولنګ اوسني کشف شوې آتشکده یې هم ښکاره دلیل دی او د کابل او هندوکش د درو کوم پاچاهان چې د اسلام د ظهور په پېریو کې وو، د اکثرو په سکو باندې هم اورخانې لیکلې شوې دي.

دغه انګ (آتشکده او اور) وروسته په پهلوي ژبه اتهر، آذر بلل شوي دي، چې معنا یې هغه (اور) ده. د بندهشن په (۱۷) فصل کې درې لویې آتشکدې یادې شوې دي، چې یوه (آذر فربغ) وه او ددې آتشکدې ځای د کابل پر "روښان غره" و[2].

که څه هم په یقیني ډول نه ده معلومه چې دا "روښان غر" چېرې و؛ خودنامه له پهلوي شکله چې هغه قدیم انګ په پهلوي آذر، او بغودبغ په کلماتو کې لري، باید دا ووایو چې هغه به دغه د بغلان آتشکده وه او ښایي چې بغلان لکه اوس په هغو وختو کې هم له کابله سره مربوط و[3].

په هر صورت: انګ په پهلوي آذر یعنې اور تعبیر شوی او بغ

[1] احسن التقاسیم ص ۳۰۶_۳۱۲_اصطخري ۳۳۹.
[2] یسنا ۱_۱۳۲، کیانیان ص ۱۴۰.
[3] د رشوان غر اوس د بدخشان په جرم کې په دغه نامه شته، ښایي چې پخوا به دا نوم پراخ و او تر بغلانه به رارسېده.

پخپله په پهلوي کې هم په هغه معنا و.

دغه (انګ) يقيناً د اور معنا لرله او اورتون او آتشکده هم انګ بلل کېده.

وګورئ په اوستا کې د ژانګه (د ژ يعنې بد + انګ: اور) چې دوهيشته (بهشت) مقابل او ضد و او دغه اوسنی کلمه (دوزخ) هم له دې څخه جوړه شوه[1] ځکه چې د اور پرستش د زردشت له عصره بيا تر اسلامه پورې څو زره کاله د اباسين او آم او دجلې تر منځ د خلکو عام دين و او په هر ځای کې اورتونونه وو؛ نو دغه (انګ) د اکثرو ښارو په پای کې دلالت کوي، چې هغه ځايونه د آتشکدې او معبد په نامه مشهور شوي دي.

په پښتو کې د (انګ) دغه زړه ريښه تر اوسه هم ليدله کېږي. انګار او انګاره ډېر سره او کوټه او اور ته وايي، چې د کلمې لومړی جزو (انګ) دی. انګل هم په پښتو شور او جدت او تېزي ته وايي، چې د اور صفات دي، ددې کلمې اول جزو هم (انګ) دی او لام له ظرفي اداتو څخه و؛ لکه بورجل، کتل، زاول، کاول، انګازه هم د تېزي او جدت په مناسب په اول سر کې (انګ) لري. انګولا هم تېز او سوځوونکی ږغ دی.

ښايي چې د انګرېزي ANGER (خشم) او ANGRY (خشمناك) هم د جدت او تېز والي په مناسب دغه ريښه ولري او ANGEL (فرشته) د رڼا او روښنۍ په مناسبت هم له دغې ريښې څخه وي د ملا فيض الله کاکړ په شعر کې دا کلمه عيناً داسې راغلې ده:

زړګی بند کړمه په منځ د پاڼ و پړانګ
سوځي زړه لکه پېلوځې په بلانګ

---

[1] يشتها ۲_ ۱۷۰.

دا بلانګ مرکبه کلمه ده. بل (مشتعل، بلېدونکی) انګ (اور) یعني بل اور[1]. دلته دا خبره هم باید هېره نه کړو، چې د بغولنګ (سغدي بغدنګ) او د زړې پارسي (بغدانګه) د بغ او (انګ) تر منځ یو (د) هم شته، چې دا دال په پښتو کې هم کله په لام اوړل لکه: دیوار = دېوال، غرېبل = غلبېل او نور.

نو دغه نوم په اصل کې (بغودانګ) او دا (د) د پښتو اضافي دال دی، چې اوس یې موږ تر مضاف الیه دمخه وایو (د بغوانګ) یعني (د خدای اور)؛ نو د پښتو د ابدال پر اصولو سم، دغه (بغودانګ_ بغدنګ) بغولنګ شو.

اما وروسته ددغې کلمې (انګ) په (آن) واوښت او دغه (آن) هم د ځایو په نومو کې تر اوسه مستعمل دی؛ مګر دا تحول وروستنی دی. مثلاً ګلران (د هرات) شملان (د هلمند ناوې) بغلان (هغه زوړ بغولنګ) او داسې نور د ځایو نومونه چې اخر ته یې (آن) راځي.

ددې خبرې یو تاریخي ټینګ دلیل، بل هم شته، چې په چیني کتابو کې د بدخشان نوم دوه قرنه تر میلاد دمخه (تسه_ نګ_ لنګ) راغلی او بیا د (۶۳۰ م) کال په شاوخوا کې د هیوان تسنګ په سفرنامه کې (پو_ تو_ چنګ_ نه) او بیا په یوان شي کې (په_ ده_ هه_ شنګ) ذکر شوی دی[2] په دې نامه کې هم د (انګ) ټوټه وروسته په (آن) بدله شوې او بدخشان شوی دی.

بل مثال یې دادی: چې د ګوزګانان په غرو کې یو ځای سنګ

---

[1] د کابل په فارسي کې هم بلنګس د اور د اشتعال حال ته وایي.

[2] په چیني منابعو کې د منځنیو پېړیو پلټنې. د پترچ میدر تالیف، د لندن طبع ۱۸۸۷م.

چارك شته، چې دغه سنګ هم پخوانو جغرافیاوالو (سان) راوړی دی[1].

اوس چې تاسې ته د بغولنګ (بغلان) زړې ریښې په پښتو کې ښکاره شوې، نو به زه دا هم ووایم، چې د بغلان د آتشکدې د کتیبې نورې ویلې شوې کلمې هم پښتو ته نژدې دي.

**کیردومي:**

دا کلمه هم دوې ټوټې ده: کیردو ـ مي.

له (کیردو) څخه په لږ صوتي تغییر اوسنی پښتو (کړی دی) جوړېږي دا نکته مه هېروئ، چې پښتانه د صوتي حروفو په تلفظ کې ډېر سره مختلف دي. خو زما په خیال هغه تلفظ چې د غرو پښتانه یعنې اپریدي او وزیر او مسید او وزدك یې کوي، پخواني تلفظ ته نژدې دي. ښارو ته نژدې ژبې په ډېرې مهذبې او تراشلې شوې دي. د بېستون د کتیبې د صوتي حروفو تلفظ هم ددغو قبیلو تلفظ ته نژدې و.

د بغلان د کتیبې د ږغیزو توریو ږغونه هم دغسې دي. (کړی دی) د غرو پښتانه تر اوسه په مختلفو لهجو ادا کوي: کاکړان یې (کړېې دی) وایي. ځینې پښتانه یې (کېړه ده، کېړای دو، کېړیه ده) او ځینې یې کټ مټ هغه (کېړدو) وایي. وروستنی (مي) منفصل فاعلي ضمیر دی، چې اوس هم په پښتو کې ژوندی او مستعمل دی او تر مفعول وروسته راځي؛ نو (کېړدومي) کټ مټ پښتو فعل دی او ټوله جمله داسې کېږي:

کیردومي بغولنګ = کړی دی مې بغلان.

دا خبره هم واورئ: د کړل = کول فعل په پښتو کې ډېرې

---

[1] اصطخري ۲۷۰، حدود العالم ۱۹ـ۶۰.

معناوې لري. چې يوه زړه معنا يې هم (جوړول، ابادول، تعمير) ده. کاکړان وايي: مړی دې کړيې ده؟ يعنې ډوډۍ دې خوړلې ده؟ سنك هلته کور کړی دی.

يعنې: سنگ در آنجا خانه يې ساخته است.

د کړل، په ريښه کې (د اوستا کر) او د پهلوي او فارسي (کردن) ورسره نژدې دي او د آبادولو او تعمير معنا له پخوا په کې پرته ده.

د خرده اوستا په آتش بهرام نيايش (۲۰ فقره) کې د آتشکدو په نومو کې (مينيو کردو) هم راغلې ده (خرده اوستا ص ۱۳۷) مينيو يا مينو (د پښتو د منل له ريښې ښځه) د فارسي (خرد) معنا لري (يسنا ۱، ۲۰۷، مزد يسنا و شعر پارسي ص ۳۰) او کردو هم کټ مټ دغه (کيردو) ده چې د آباد کړي او جوړ کړي معنا ورکوي او دغه آتشکده مينو آباد کړې وه.



د اسلامي عصر په لومړنيو پېړيو کې چې اوسنۍ فارسي له پهلوي ښځه زېږېده، هم (کردن) د جوړولو او ساخت په معنا کله کله استعمالېده، مثلاً: خواجه عبدالله انصاري هروي ليکي نايو ترسا امير، چې د شام په رمله کې و، له صوفيانو ښځه پوښتنه وکړه چې: ((شمارا جاى هست کى آنجا فراهم آيند؟ گفت نه. گفت: من شمارا جاى کنم، تا با يک ديگر آنجا فراهم آييد، آن خانقاه رمله بکرد))[1] دلته کنم او بکرد دواړه دآبادولو په معنا دي. په زړه پارسي او پهلوي کې هم (کرته، کرد) د ښارو په نومونو کې د (اباد کړي) په معنی وه، مثلاً پارسه کرته (پازار کاد او يوناني پرس پوليس په فارس کې) او نور ښارونه لکه

---

[1] طبقات الصوفيه خطي، د استانبول نسخه.

بلاش کرد، خسرو کرد، یزد کرد؟ بغکرد[۲] چې معنا یې ده هغه (کړي دي) یعني (آباد کړي) بلکې د جمشېد اول آباد کړی ځای په اوستا کې ورجم کرت بلل شوی دی.[۱]

یعنې هغه واره چې جم آباد کړې ده.[۲]

نو د بغلان د کتیبې کیردومي بغولنګ هم پښتو (کړی دی مې بغلان) دی، یعنې آباد کړی مې دی بغلان او جوړ کړی مې دی بغلان او د (مې) منفصل فاعلي ضمیر موږ ته د ژبې پخوانی ګرامري شکل هم رابښیي، چې تر اوسه هم ځینې قبایل دغه (مې) دغسې استعمالوي. یعنې د فعل په منځ کې نه راولي او په اخر کې وايي.

ځکه چې تر اوسه ټولې راپیدا شوې کتیبې نه دي لوستلې شوې، ښايي چې د ټولو تر تحلیل او لوستنې وروسته ځینې نور حقایق هم کشف شي؛ خو ددغو اوسنیو الفاظو څخه په لوړو دلایلو موږ د پښتو بلګه اېستلای شو او وایو:

ښايي چې د پښتونخوا ددغو شاهي کورنیو ژبه به پښتو وه. یا به یوه ژبه وه، چې پښتو ته به ډېره نژدې وه.

## (۲) د روژګان دبېرلیک:

دوهم دلیل چې موږ ته د پښتو څرک ددغو شاهانو په کورنیو کې راکوي، د دوی نومونه دي. مثلاً یوه کورنۍ شاهان چې د هیوان تسنګ چیني سیاح په وخت (۶۳۰ م) او دوو کونګ بل چیني سیاح (۷۶۰ م) په عصر کې، ګندهارا او اټک تر ټکسیلا

---

[۲] سبك شناسي ۱ ـ ۳۱.

[۱] وندیداد، ۲ فرګرد.

[۲] کیانیان ص، ۱۱۹.

پوري مسلط وو ((کشتریان)) دي، چې دا نوم د مارکوارټ په قول (کشته تریه) او په زړه پارسي او سنسکریت کې هم و[1].

لکه چې ما په مفصل ډول ددې کلمې شرح په لومړي ټوک کې کړې ده، اصل یې د پښتو (کښه توره) او د پیر روښان د خیرالبیان په ډول (تورکښ) دی[2] او له دغو څخه د یوه پاچا نوم (لکه تورمان) و، لکه تورمن یعنې شمشېر زن.

نور برهمني پاچاهان چې د مسیحي اوومې پېړۍ په اوله برخه کې پر کابل او د هغه پر نژدو ځمکو حکمرانان وو دادي:

**کلر مشهور په للیه**: (کوي لر = لاندې ذکر شوی کوي، کي، کاوه یعنې هوښیاري او سرداري لرونکی) اما للیه د پښتو لالا او د مشر لقب دی.

**سامند**: لومړی جز یې (سا) په ساهو کې شته چې ساها هم په مسکوکاتو کې راغلی دی، دوهم جز له مندل څخه دی یعنې سامیندونکی چې سامنته هم راغلی دی او معنی یې هغه د پښتو ساهو ده یعنې حر او آزاد او د تشخص خاوند.

**کمرو یا کملو**: رې په لام اوښتې ده یعنې رنګین او رعنا او ښایسته، چې تر اوسه هم کمرو نوم په پښتو کې شته، یوه پښتو ناره ده:

کمره مېړو لاړه پر ډبره

راشه خولګۍ راکه؛ نامېنده شې د لوی باري له دره.

**جیه پاله**: ځیه = زیې پالونکی یعنې قوم پالونکی.

**اننده پاله**: انند یعنې عیش پالونکی خوشحال خان وایي:

هوښیارانو څخه ډېرې اند ښنې دي

چې ملنګ د مصلې، هغه انند کا

[1] دایره معارف اسلامي ۱_۶۴۳ د ایرانشهر په حواله.

[2] د کشتریه نوره شرح به وروسته راشي.

**تروجن پاله**: توروجن پالونکی یعنې توریالی پالونکی.
**سپاله پتي**: سپاه له پت ساتونکي او د لښکر پتي او مشر د پارسي سپهید.[1]
**پدمه**: په دمه یعنې په شوکت او دمدمه، مجلل.
**خودویه که**: د اپریدو خدوی او د تجلیل کاف، خدایك.
**ونکه**: ورك، د ور یعنې فاتح تجلیلي شکل.
ددغو پاچاهانو فقط نومونه د سکو څخه معلوم شوي دي[2].
هم په دغو وختو کې چې د لوی کوی شوانګ (کوشان) انحطاط د دریمې مسیحي پېړۍ په اوایلو کې شروع کېده، په باختر کې کیدارا د کوچنو کوشانیانو د سلطنت ستېه ټینګه کړه.
(کوي) د پښتو په ادب کې (کاوه) راغلی دی، چې په ویدا کې د سردارا او پوه او دنا او په اوستا کې د پېشوا معناوې لري[3] دا لغت د اکثرو زړو نومو په سر کې و؛ لکه کوشان، کیخسرو. کیکارس، کاوه اونور؛ نو کیدار هم (کي دار= کي لار= کي لرونکی یعنې پېشوا او سردار او هوښیار) و، دا کلمه تر اوسه هم په نورستاني ژبه کتور پاتې ده او د قندهار د غربي خوا د غره پر سر چې کومې زړې آبادۍ دي هغه (کیتور) بولي. ملا عبد الباقي کاکړ وایي:
پر کیتور باندې وخېژه څو دې دید شي نندارې دي.
د کیدار یو زوی پیرو نومېده[4] او (پیرو، پیرا، پیر، پیرك)

---

[1] د پتي شرح وګورئ: د پښتو ادبیاتو لومړی ټوك، ص ۷۵ مخ.
[2] اسلامي دایرة المعارف د افغانستان آرټیکل، د لنګور ته ډیمز سکه شناس لیکنه.
[3] تفصیل یې وګورئ د پښتو ادبیاتو تاریخ لومړی ټوك ص ۱۰۲_ او ددې کتاب د لودیانو څېرکي او کیانیان د کرستن سن ۲، ۶۳.
[4] د افغانستان تاریخ ۲_۴۳۷.

نومونه تر اوس هم په پښتوکې شته او بیا چې پس له (۴۲۵م) د هفتالیو (ابدالیو) دولت جوړ شو، د دوی لوی پادشاه (اخشنور) و (۴۶۰ م) چې دده نوم په خودای نامو او عربي کتابو کې اخشنوار، اخشوان یا خشنواز راغلی دی؛ خو د کریستن سن په قول، ددې کلمې اصل له خشیون سره نښلي، چې په سغدي کې د پادشاه په معنا و[1].

د افغانستان د تاریخ لیکوال ښاغلی کهزاد وایي چې دا اخشنور د "پرګهر" معنا لري[2]؛ خو ده د کلمې تجزیه او شرح نه ده کړې، چې دا معنا له کومه راوتلې ده؟ او کوم علمي دلیل نه لري. د کریستن سن قول صحیح ښکاري او کلمه داسې تجزیه کېږي:

خش = کش = کښ د هغه قدیم کش تري = کښ توری له ریښې څخه دی، چې اخشن = خشن = کښن څنې جوړ شوی دی.

دوهم جزو یې (وړ = وڼ) دی، چې په پښتو فاتح او وړونکی دی؛ نو کښښنوړ = کښېوڼ خشیون = اخشیور تول یوې ریښې ته ورځي، چې معنا یې په پښتو کښن وړ یعني کشتریه فاتح (توره کښونکی فاتح) ده او ددې (تورکښ وړ) پاچا جنګونه له ساساني فیروز سره مشهور دي[3].

له دغو هفتالو (ابدالو) څخه چې په زابل کې پاچاهان وو او په سکو کې ځانونه جاولي = زاولي بولي، تورامانا (تورمن) او دده زوی مهراکولا (میرکهول = لمر کهول) د (۵۰۰ م) په شاوخوا کې مشهور د هند فاتحان دي.

---

[1] ساسانیان ص ۳۸۵ د میولرد متون سغدي ۱_۸_۱۰۸ په حواله.

[2] تاریخ افغانستان ۲_۴۵۷.

[3] ساسانیان، ص ۳۸۴.

دغـه مهراکـولاد ابـدالیو مشـهور فـاتح دوي کتیـبې لـري چـې د روزګان د شالي په دره کې پر ډبرو لیکلی شوي دي

د آکسـفورد پوهنتـون د تـاریخ استاد ښـاغلي بیـور دغـه کتیـبې کـتلې او یـوه مقالـه یـې د پېښـوز مـوزیم پـه مجلـه کـې پـرې لـیکلې ده. دی وایـي، چـې: دغـه د روزګـان کتیـبې لـه هغـو درو نـورو هفتـالي کتیبـو سـره چـې پـه تـوچي (وزیرسـتان) کـې پیـدا شـوې او س د پېښـور پـه مـوزیم کـې خونـدي دي، ډېـر مشـابهت لـري: خـو تـر اوسـه دغـه د وزیرسـتان کتیـبې نـه دي لوسـتلې شـوې. چـې پـه یونـاني رسـم الخـط او پـه منګـولي خـط او دوې پـه دوو ژبـو دي. د پېښـور مـوزیم نمبـر ۴۱ وزیرسـتان کتیبـه پـه کـوفي رسـم الخـط خیـنې عربـي کلمـات هـم لـري، چـې (الله) او (محمـد) پـه کـې ښکاري او نور منګولي توري دي.

پروفېسـر بیـور وایـي: د روزګـان یـوه کتیبـه چـې ښـه روښانـه ده، په یوناني رسم الخط دا الفاظ پکې لیدل کېږي:

"باګوس، شاهو، زاولو، مهروزکي"

بیـور وایـي دغـه پاچـا چـې نـوم یـې دلتـه راغلـی دی، هغـه د هـون پاچـا میراکـولا بـه وي چـې د (۵۰۰ م) پـه شـاوخوا کـې یـې پاچـاهي لرلـه او دده اصلـي نـوم لاتـر اوسـه نـه دی معلـوم چـې څـه و؟ ددې الفاظو ترجمه داسې ده:

((خدایي مقدس پادشاه زابل مهرا))[1]

اوس موږ دا الفاظ په ژوره کتنه ګورو چې څنګه دي؟

۱ــ بـاګو هغـه بګـه = بغـه او د پښتـو بـګ دی. چـې معنـی یـې عظـیم او خـدای ده (شـرح یـې تېـره شـوه) پـس لـه دې کلمـې (س) لیـدل کېـږي، چـې ښـاغلی بیـور (ري) ورسـره زیـاتوي او کلمـه

[1] د پېښور موزیم مجله، دستمبر ۱۹۵۳م

(سري) لوري؛ مګر ښايي چې دغه (س) د (باګو) سره يو ځای او کلمه (باکوس) = (باګویس = باګوین) وي او دا د پښتو (ایز = ایږ = ایس) او د نسبت لاحقه ده معنی یې کېږي: (خدايي، الهي، مقدس).

موسیو مریك فرانسوي د بغلان په کتیبه کې دا څو کلمات لوستي دي: (بګوشاوو کنشکي) چې دلته د کنشکا له نامه سره بګوشاوو یعنې خدا شاه راغلی او دا کټ مټ د روزګان د کتیبې باګوس شاهو دی.

۲ـ شاهو یا ساهو په پښتو کې شته، چې کله علم وي او کله صفت. وايي دغه کلمه او شاه او شار او شېر او شهر ټول له هغې قديمې کشتريه (کښ تور) څخه راوتلې دي[1] چې شار د غرجستان او شېر د باميان د پاچاهانو القاب وو.[2] او د زابل او کابل د پاچاهانو معاصر وو په پښتو کې تر اوسه شاهوزي او شاهوخېل شته.

۳ـ (زاولو) منسوبه کلمه ده زاول ته، چې جاول او جاوله هم تلفظ کېده او زابل يا زابلستان له غزني څخه د هلمند تر غاړو پورې ځمکه وه او دغه جاغوري او اجرستان او روزګان يې مرکزي ځمکې وې، چې کتيبه هم په دره شالي کې ده، چې له قندهاره د روزګان پر لار اجرستان او جاغوري ته ځي[3] او دلته یوه قبيله زاولي تر اوسه هم شته چې په ۱۸۴۲ کې زر کوره وو (کابل سکندر برنس ص ۲۳۰).

۴ـ بله کلمه په دې کتيبه کې مهرز کې MIHROZAKI ده،

---

[1] د شار او شېر حواله ايرانشهر د ماز کوارټ تاليف.

[2] البلدان د يعقوبي او مسالك د ابن خرداذبه.

[3] برزاول او کاول زما یوه مقاله د آریانا په (۶۱) شماره کې وګورئ.

چې د بیور په خیال دا نوم هغه مهراکولاپ دی.

لکه ما چې د پښتو ادبیاتو په لومړي ټوک کې تشریح کړې ده (ص ۷۵ ج ۱) کولا په ویدي ژبه کې د کورنۍ او خاندان معنا لري، چې اوس موږ (کهول یا کول) ورته وایو، دا کلمه د شیخ رضي او شیخ نصر لودي په شعر کې (کول) او د سلیمان ماکو په تذکره (۶۱۲ هـ) کې هم کول وه[1].

(مهر) هم په پښتو (مېر، مر، لمر، نور) دی. د لورلایي ترینان تر اوسه لمر (مېر) بولي؛ نو مهراکولا= مېر کول = د لمر کهول = د لمر له خاندانه دی.

دا نوم تر اوسه هم په پښتنو کې ډېر مستعمل دی؛ لکه میر خان، میرو، میرا (مونث مورا) او هغه زوړ میر کهول هم اوس میرګل شوی او هغه زوړ مفهوم یې له اذهانو ځخه وتلی دی.

مګر دلته باید دا خبره هم وڅېړو: زوړ (مهرا کولا) چې په سنسکریت کې هم و او ددې کورنۍ پر مسکوکاتو لیکلی دی، څنګه دلته (مهروزکي) شو؟

دا مشکل هم پښتو په ښه ډول حل کوي: په پښتنو کې له پخوا څخه یو بل نوم دغسې شته (میرویس) چې د مردان په مځکه کې د پېښور شمال شرقي خوا ته یو ځای (میروس) دی او د هوتکو مشهور مشر میرویس قندهاري خو هر څوك پېژني.

دا نوم هم د پخوانو یادګار دی او پښتانه تجلیلاً کاف وراچوي، میروسکي = میروڅکي وایي او دا شکل کټ مټ هغه دی، چې د روزګان پر ډبرلیك شته.

میر هغه مهر، لمر، آفتاب دی، ویس یا ویسه یا ویسیا د کلي، قبیلې، کورنۍ په معناوو په سنسکریت او اوستا کې هم

[1] په دې کتاب کې ددغو اشخاصو احوال او اشعار په خپلو ځایو کې وګورئ.

وه او (ویس پتي) د کورنۍ پتي او ساتونکي و[1] او د ګیګر الماني محقق په قول په ریګویدا کې هم ویس (ټبر، کورنۍ) ته ویل کېده[2].

نو میرویس هم کټ مټ هغه (مهرا کولا) او مېر کول دی، چې معنا یې هغه د لمر له کورنۍ څخه ده او میروسکي ددې کلمې مجلل شکل دی، چې داسې تحبیبي مجللات پخوا ډېر وو او شرح به یې وروسته واورئ.

له دې کتیبې څخه داسې ښکاري، چې میراګل مهروسکي= د پښتنو هفتالیو (ابدالیو) یو خدایي او مقدس پاچا و او دوی خپل پاچا ته د تقدس په نظر کاته او القاب یې (خدایي، الهي) وو.[3]

دا چې زه دغه کتیبه پښتو یا پښتو ته نژدې بولم، یو بل ګرامري دلیل هم لري. ددغو کلماتو ترکیب او نښلونه د پښتو پر اصولو سمه ده، تر اوسه هم د پښتو ګرامر یوه مسلمه قاعده داده، چې صفت یا صفات تر موصوف دمخه راځي؛ خو په

---

[1] کمبرج هیستري ۱ _ ۹۱.

[2] د شرقي ایرانیانو تمدن ۱ _ ۲۶۶. ددې کلمې تفصیل وګورئ تاریخ ادبیات پښتو ۱ _ ۷۷.

[3] ددې کتیبې تفصیل د بیورو د مقالې په فارسي ترجمه کې وګورئ. آریانا کابل طبع ۱۳۴۰ ددې ډبرلیک پر لوړه خوا یو څو عربي توري هم ښکاري، چې (حسن) یې لوستل کېږي؛ خو بله کلمه هم خرپول یا خرپوست ښکاري. ګومان کوم چې دا به هغه ملك تاج الدین حسن سالار خرپوست وي، چې د غور د تولك حکمران و او په (۶۲۱ هـ) قاضي منهاج سراج دده په امر اسفزار ته تللی و؛ (طبقات ناصري ۱ _ ۶۹۸) مګر دا توری ښایي چې تر ۶۰۰ هـ وروسته لیکل شوي وي؛ ځکه چې د خط ډول یې ددغو وختو دی.

فارسي کې دا قاعده بالعکس ده. په پښتو وایو تور آس، چې په فارسي ((اسپ سیاه)) ورته وایي په دغه کتیبه کې هم ټول صفات تر خپل موصوف دمخه دي:

((خدایي    شاه زاولي    میروڅکي)).

دري صفته تر خپل موصوف دمخه دي او دا هم ښایي چې د ژبې د ساختمان اثر وي. ددغې کتیبې په مقابل کې د بغ ذت بن پغ کرت د پارس د یوه پادشاه (۲۲۰ ق، م) د سکې لیک وګورئ، چې صفات ټول تر موصوف وروسته دي:

((بغ دت_ پرترکه_ زي بغي_ بغ کرت))[1] یعني بغکرت (خدایي بغکرت، چې د پلار نوم یې دی).

دا وو زموږ هغه دلایل چې د پښتو څرک مو د اسلام په لومړیو زمانو کې څنې واېستلی. اوس به نو راشو خپل اصلي مطلب ته چې د لویکانو یا لاویکانو کورنۍ ده:

## لویکان څوک وو؟

ددې کورنۍ تاریخ هم لکه هغه نورې کورنۍ ډېر څرګند نه دی. فقط د (لویك یا لاویك) نوم ذکر شوی دی.

لنګور تېپه ډیمز مشهور انګلیسي سکه شناس مؤرخ لیکي:

د (۲۶۰ هـ) په شاوخوا کې د غزني محلي حکمران (شاه لاویك) بلل کېده؛ خو دده شخصیت مجهول دی. د کابل د هندو شاهانو سره متحد و او دا ګومان کېږي، چې دی به هم هندو و.

بیا نو بلکاتګین د سامانیانو له خواېر غزني غالب شو او په (۳۵۹ هـ) یې لومړی پلا دلته سکه ووهله. تر بلکا وروسته پیری

[1] سبك شناسي ۱ _ ۱۳۰.

د غزني پاچا شو، چې دلاویك او د كابلي هندو شاه سره متحد و، څو چې سبکتګین په (۳۶۷ هـ) له پروانه پر ده حمله وكړه او غزني يې څنې ونيو[1].

دغه لويك يو سړی نه و؛ بلكې لويه كورنۍ وه، چې په غزنه او ګرديز او نورو شاوخوا ځايو كې يې سلطنت كاوه او د كابل شاهانو او د زاول د رتبيلانو سره متحد وو او مؤرخانو يې ذكر داسې كړی دی:

(۱)

ابو سعيد عبدالحی بن ضحاك بن محمود ګرديزي چې د (۴۴۰ هـ) په شاوخوا كې ژوندی و، د يعقوب ليث صفاري په احوال كې داسې ليكي: يعقوب غزني ونيوه او بيا ګرديز (ګرديس) ته ولاړ او د ابو منصور افلح بن محمد بن خاقان د ګرديز له امير سره يې جنګ وكړ: څو دې امير، لس زره درهمه خراج ومانه. بيا نو يعقوب بلخ په (۲۵۶ هـ) كال ونيوه او د هغه ځای نوشاد (نوشار) يې وران كړ[2].

دغه افلح د ګرديز امير هم ددغو لويكانو د كورنۍ و، چې شرح به يې وروسته راشي.

(۲)

د نظام الملك په سياست نامه كې چې د (۴۸۵ هـ) تاليف ده، د الپتګين جنګونه له كابلي او غزنوي اميرانو سره راوړي او وايي چې الپتګين د باميان له امير سره چې (شبرباريك) نومېده جنګ وكړ او دغه ښهر يې ونيوه، بيا يې وباخښنه، وروسته يې پر كابل حمله وكړه او د كابلشاه زوی يې ونيوه، دا

[1] اسلامي دايرة المعارف د ليدن طبع ۲_۱۵۴.

[2] سياست نامه، ص ۱۲۲.

د کابل شهزاده د لویک زوم و او د غزنین امیر لویک هم وتښتېد، سرخس ته ولاړ.

له دې روایته ښه معلومېږي، چې ددې کورنۍ نوم (لویک) واو د دوی خپلوي له کابلشاهانو سره هم ښکاري. الپتکین په (۳۵۱ هـ) غزني له لویک څخه نیولی و او بیا چې په (۳۵۲ هـ) دی مړ شو او زوی یې اسحاق د غزني پاچا شو؛ نو لویک بیا پر غزني حمله وکړه؛ خو ساماني پاچا منصور بن نوح د اسحاق په مرسته و؛ نو غزني بېرته اسحاق ونیوه.

د اسحاق تر مرګ وروسته په (۳۶۵ هـ) امیر پیری دده پر ځای په غزني کې کښېناست؛ مګر د غزني خلکو بیا امیر لویک راوغوښت او لویک د کابلشاه د زوی په کومک پر چرخ (د کابل جنوبي خوا ته د لوګر پر مځکه) حمله وکړه؛ خو دلته امیر سبکتګین دوی مات کړل او پخپله په ۲۷ د شعبان ۳۶۶ هـ د غزني پر تخت کښېناست.[1]

(۳)

منهاج سراج جوزجاني (۶۵۸ هـ) د سبکتګین په احوال کې داسې لیکي:

الپتګین غزني او زاولستان فتح کړه او امیر لاویک یې له غزني څخه واېست. تر اتو کالو وروسته چې الپتګین مړ شو او زوی یې اسحاق پاچا شو؛ نو دی له لاویک سره وجنګېد؛ خو مات شو او بخارا ته ولاړ. ده له منصور بن نوح څخه کومک واخیست بیا راغی او غزني یې ونیوه او تر ده وروسته ملکاتګین پاچا شو او تر ملکا وروسته امیر پیری (پری)

[1] افغانستان تر اسلام وروسته (خطي) ص ۶۹ د حبیبي لیک او دایرة المعارف اسلامي ج (۱) د افغانستان ماده زین الاخبار. (۶) (۲) افغانستان الخ.

کښېښناست؛ خو خلکو لاويک راوغوښت لاويک د کابل شهزاده (په کومک) له ځانه سره راوست؛ مگر په چرخ کې امير سبکتگين پر دوی حمله وکړه او ډېر يې ووژل، دوه پيلان يې هم ځنې ونيول.[1]

د طبقات ناصري په مختلفو خطي نسخو کې دغه نوم انوک هم راغی دی، چې صحيح نه ښکاري او دغه اخيرني لويک چې په چرخ کې د سبکتگين له لاسه مات شو، هم په دوو نومو ابوبکر او ابو علي لاويک بلل شوی دی او داسې ښکاري چې مسلمان و؛ خو له دغو درو ډولو (لاريک ـ انوک ـ لويک) څخه وروستنی املا صحيحه ده.

(۴)

محمد بن علي بن محمد بن حسين بن ابو بکر شبانکاره يې چې مجمع الانساب يې په ۷۲۵ هـ ليکلي دي، هسې وايي:

«الپتگين د باميان تر نيولو وروسته کابل ته راغی، په دې وخت کې د غزني ملك يو کافر و چې (لويك) نومېده، د ه خپل زوی د درو زرو لښکرو سره مقابلې ته راواستاوه؛ خو الپتگين د لويك زوی ونيوه، خلعت يې ورکړ، خپل پلار ته يې ولېږه، چې زه ستا سره اړه نه لرم، د هندوستان غزاله ځم؛ خو هغه کافر سلامي نه شو؛ نو الپتگين هم غزني محاصره کړ، پس له دوو مياشتو يې ونيوه او پس له څلورو مياشتو لويك او دده زوی چې د غزني په کلا کې وو هم ونيول شول؛ مگر چې دوی ظاهراً مسلمانان شول؛ نو الپتگين هم ايله کړل؛ خو د دوی زړه پاك نه و، هندوستان ته وتښتېدل او له هغه ځايه يې لښکر راوست. ددې پلا الپتگين د دوی د مقابلې لپاره سبکتگين ورولېږه او

[1] طبقات ناصري ۱ ـ ۲۶۸ د حبيبي طبع.

دوی یې مات کړل، د پرش پیله یې هم ځنې ونیول او لویك وتښتېد)).

دا انتخاب د مجمع الانساب له یوې قلمي نسخې څخه دی، چې د لویك پر ځای یې د غزني د ملك نوم لویل لیکلی دی؛ مگر دا نوم هم کاتبانو مسخ کړی دی، اصل یې هغه لویك و[1].

**(۵)**

عبد الحی گردېزی علاوه پر ابو منصور افلح چې دمخه یې بیان تېر شو، له دې کورنۍ څخه د یوه بل سړي نوم هم اخلي او هغه نو ابو سهل مرسل بن منصور بن افلح گردېزی دی، چې د سلطان محمود او مسعود د دربار له مخو ورانو څخه و، په

[1] دا تاریخي پښتو کلمه (لویك) هر کله د نابلدی په سبب د کتابو کاتبانو مسخ کړې او رنگ رنگ یې لیکلې ده. د دهلي د سلطان ناصر الدین په دربار کې یو مشهور فارسي شاعر ملك الکلام فخر الملك عمید الدین لویکي (متولد ۶۰۱هـ) تېر شوی دی، چې ددغې لویکي کورنۍ له پاتې خلکو څخه و او د ټول هند مستوفي هم و او پخپل عصر کې عمید لویکي بلل کېده؛ مگر دا کلمه هم کاتبانو مسخ کړه او په کتابو او تذکرو کې نونکي- تولکي- بومکي- لویکي- دیلمي وکښلـه شوه (وگورئ بزم مملوکیه ص ۲۰۳) د منتخب التواریخ مؤلف عبد القادر بن ملوکشاه بدواني، خو دغه کلمه صحیحه (لویکي) لیکلې وه؛ مگر په چاپي نسخه د (کلکتې چاپ ۱۸۶۸ م) په جلد ۱ ص ۷۵ تولکي او په ۹۶ صفحه کې نونکي او په دریم مخ کې لویکي چاپ شوه. په کراچۍ کې د کرنل رشید څخه یوه د منتخب التواریخ مصوره صحیحه نسخه شته، چې غالباً د مؤلف په عصر کې لیکلی شوې ده، هلته پر (۱۵ ورق) باندې عمید لویکي او بیا مکرر دا نسبت دغسې لیکلی دی؛ نو ښکاري چې نورو تذکره لیکونکو غلطه لوستلې ده، حتی ځینو ویلي دي چې دا کلمه تولکي ده او تولك د دیلم یو ښار و(؟) صحیحه خبره خو داده چې نه تولك په دیلم کې و او نه عمید تولکي دی؛ بلکې د کلمې صحیح شکل (لویکي) دی.

۴۲۱هـ کال چې سلطان محمود مړ شو او امیر مسعود زوی یې پر ځای کښېناست؛ نو د بغداد خلیفه القادر بالله له خوا عهد او لواء دغه ابو سهل بن منصور بن افلح ګردېزي راوړه او سلطان مسعود دی ډېر ونازاوه.[1]

د ګردېزي له دې لنډ بیانه ښکاري چې د لویکانو د کورنۍ پاتې خلك د غزنویانو په دربار کې هم وو او د سفارت کارونه یې کول؛ نو د ګردېزي په سند موږ د لویکانو دغه سړي پېژنو:

سهل (تولد د ۴۰۰هـ حدود) بن مرل (تولد د ۳۵۰هـ حدود) بن منصور (تولد د ۳۰۰هـ حدود) بن افلح (د ۲۵۶هـ حدود) الخ چې د دوی د نسب سلسله به ددې مبحث په پای کې راوړم.

## لویک

دا نوم د پښتو (لوی) تجلیلي او تحبیبي ډول دی، چې په مختلفو لهجو کې بېغیز توري اوړي (لوای- لاوي- ل وي) ویل کېږي.

د طبقات ناصري لاویك او د سیاست نامې لویك دواړه صحیح دي او د یوې کلمې دوې لهجې دي؛ مګر (انوك) ښایي چې د کاتبانو غلطي وي.

لوی په پښتو عظیم او بزرګ او مشر او سردار ته وایي، اوس هم لویان د قوم مشران او سرداران بولي او دا هم لکه رتبېل او شېر او کیدار او کشتري د کورنۍ لقب او تجلیلي نوم و.

وروسته چې د لویك پښتوشعر راوړم، تاسې ته به معلومه شي، چې په هغه کې لویان، لویا هم راغلی دی او دا نوم (لویك)

[1] زین الاخبار، ص ۷۶.

د لوی تجلیل او تحبیب دی، چې دا ډول هم په پخوانو زمانو کې عام رسم و او خاص بیا د شاهي کورنیو په نومو کې رواج و.

د بختیاپښتنا نه تر اوسه هم پاینده نوم پایندك بولي په تاریخي نومو کې دغسې ډېر دي.

بارك، اڅك، سنك، ختك، هوتك، شیتك د پښتنو د نیکونو نومونه دي. زمرك، شېرك، ببرك، خیرك او داسې نور ډېر نومونه تر اوسه هم په پښتنو کې شته. د سلطان محمود مشهور وزیر حسنك دغسې نوم و. ددغو لویکانو زمانې ته نژدې ځینې تاریخي نومونه هم داسې وو مثلاً فور د هندوستان شاه و[1]، چې د مجمل التواریخ مؤلف ملك الملوك هندوان بللې دي[2] او البیروني هم په "تحقیق ما للهند" او فردوسي په شهنامه او رشیدالدین په "جامع التواریخ" کې هم فور راوړی دی. دا نوم د مها بهارت په ترجمه کې پرج و، چې پلوتارك یوناني مؤرخ (پروس) لیکلی او عربي مؤرخانو هم فور ملك الهند راوړی دی[3] ابوالفرج روني د غزني د یوه پاچا په مدح کې وایي:

تیغ تو بقهر بستده باج از خیل و ختا و خان ایلك

ادرار تو خورده خان و قیصر مامور تو بوده رای فورك[4]

بل دغسې تجلیلي نوم مهروزکي (میرویسك) دی، چې دمخه مو د روزګان د کتیبې په شرح کې د هغه اصل او کیفیت ولوست دغسې هم خودرویکه (خدایك) هم دمخه ذکر شو او ابن خرداذبه هم د قدیمو شاهانو په نومو کې غوزك، نیزك، فورك

---

[1] تاریخ بیهقي ۱ـ ۱۰۰.

[2] مجمل التواریخ ص ۱۰۸.

[3] تاریخ الیعقوبي ۱ـ۱۱۶ طبع نجف ۱۳۵۸ هـ.

[4] دیوان روني ص ۶۵ طبع تهران ۱۳۰۴ ش.

راوړي دي[1].

نو په دغه ډول لويك هم د لوی تجليلي شکل دی، چې د پښتنو د نوم اېښوولو له عامه رواجه سره هم سم دی دا چې دوی شاه ته شاهك يا شاهو وايي، يا بابا ته بابك او بابکو وايي، دا سپکتيا نه ده؛ بلکې د عزت او احترام او تجليل او تحبيب علامه ده.

# د لويکانو پښتو بيت

مرحوم باز محمد قندهاري چې د کراچۍ په ملېر کښې يې خانقا وه، ده د ډېره اسماعيل خان په بلوڅو مريدانو کې يو فارسي کتاب ګوتې موندلی و، چې د سر او پای پاڼې يې لوېدلې وې؛ نو ځکه د کتاب د مؤلف نوم او د ليکلو تاريخ يې نه و ښکاره؛ خو د خط او کاغذ له ليدنې څخه ما دا تخمين کاوه چې بايد د (۹۰۰ هـ) په شاوخوا کې ليکلی شوی دی. خط يې اخرنی نسخ و، اکثرو حروفو يې ټکي نه درلوده، هره چ په (ج) او پ (ب) او ګ (ك) ليکلی و او داسې ښکارېده چې ليکونکی به يې په فارسي نه پوهېده او ډېر کلمات يې مسخ کړي وو، يا دا چې منقول عنها نسخه به دغسې مغلوطه وه.

دا کتاب ګوتی يو څو حکايات وو، چې موضوع يې د شيخ سخي سرور د کراماتو بيان و، چې اوس يې فقط ۳۳ پاڼې پاتې وې.

د کتاب ژبه او د فارسي ليکلو ډول يې داسې و لکه د غزنوي او غوري دورې فارسي نثر، چې ښايي تر ۶۰۰ هـ دمخه

[1] المسالك الممالك د ابن خردازذبه ص ۴۱.

په تالیف شوی و.

ددې کتاب نورو حکایاتو د تاریخ له نظره کوم اهمیت او قیمت نه لاره، صرف د هغه شیخ د کراماتو حکایات او هغه هم له عقله لېرې غرایب وو. دا کتاب په سنه ۱۹۵۷م ماته د کتلو لپاره هغه مرحوم راکړ او چې ما وکوت بېرته مې ورکړ، نه پوهېږم چې بیا څه شو؟ ددې کتابګوټي پر (۱۵) پاڼې باندې یو حکایت لیکلی و، چې د تاریخي لحاظه ډېر مهم و؛ نو هغه ما کټ مټ نقل کړ او پس له اوږدې مطالعې او پلټنې موفق شوم چې هغه په حقیقي ډول ولولم او مبهم کلمات یې سم ولیکم. دلته هغه حکایت لومړی په هغه اصلي املا راوړم او خپلې څېړنې پرې زیاتوم، چې زما په فکر د پښتو ادب په تاریخ کې ډېره بها لري او یو قیمتي ګران اثر دی.



## حکایت (په اصلي املا)

«ابو حامد الراولی را در تاریخ غزنه از حسن صنعانی روایت است، که در بلده غزنه بر داب بامیان مسجد یست عظیم که آنرا مرلت افلخ لویک خواندندی و این بیحانه عظیم بود که وحولر لویک بر خدمت رسل و کابلساه کرده بود.

چون بسرش خانان به مسلمی امد، صنم لویک را نیارست شکستن و آنرا در ان مرکت بزمین اندر کرد و تبالوت سیمینه در نهاد. کابلان سان خجل این بیت فرستاد بلسان خلجیه که لویک گفت:

بزم کزن سحید لویک لوی انو بویلالو ما
کسه تر ببرا غلوم بلوم مملا تیز یو بملا

خانان باز بکش هندان ساه شد. و جون نیسه او افلخ بشانی بنست بحانه لویک بر کند و مزلت بکرد.

جنین روایت کنند: چون سلطان سخی سرور باین مزلت شد کفت:

بوی صنم شنوم، نیک دید و کشف سدس، زمین بر کافت و صنم لویک بر کشید، در مالوت سیمینه نهاده. آنرا بشکست وسیم رابنای مسجد داد و بکرامت آن ولی الله، بوی کفر و هند وئی از شهر غزنه بر جاست)) (ورق ۱۵ خطی) څکه چې ددې کتاب نوم ماته نه دی معلوم او نې مؤلف څرګند دی؛ نو زه د موضوع په لحاظ دا کتاب (کرامات سخی سرور) بولم او هر ځای چې (کرامات) یاد شي، مقصد به دغه کتاب او دغه حکایت وي.



اوس ددې حکایت یوه یوه کلمه شرح کوم:

۱ـ ابو حامد: دا کنیت ښکاره ویل کېږي؛ خو زه ابو حامد نه پېژنم چې څوك و؟ د رجالو او تاریخو په کتابو کې هم ماته نه شو معلوم.

۲ـ دوهمه کلمه په اصل کې (الراولي) ده، چې زما په خیال صحیحه (الزاولي) ده زاول یا زابل د غزني د مځکې قدیم نوم و، د الزاولي په نسبت ډېر مؤلفان او مشاهیر تېر شوي دي، مثلاً قاضي شهاب الدین بن دولت آبادي مشهور عالم او مفسر د عمر الزالولي لمسی و[1] او دا هغه قدیم زاول دی چې د روزګان په ډبرلیك کې هم راغلی دی؛ نو ابو حامد زاولي د زابلستان د ځمکې و.

۳ـ تاریخ غزنه: په دې نوم کوم کتاب ماته نه شو معلوم، د

[1] سبحة المرجان، ص ۳۹.

کتاب شناسی اکثر کتب ما وکتل؛ خو د تاریخ غزنه په نامه کوم کتاب مؤلفانو نه دی ذکر کړی او نه ابو حامد زاولي پېژنو؛ ښایي چې دا یو نوم ورکې کتاب او مؤلف وي، چې د هند په مځکه کې به لیکل شوی وي؛ ځکه چې حسن صغاني هم د هند یو مشهور عالم او ژبپوهاند و، چې شرح به یې وروسته ولیکم.

یو کتاب د تاریخ ملا محمد غزنوي په نامه ماته معلوم دی، چې شیخ عبد الرحمن بن عبد الرسول چشتي (متوفی ۱۰۹۴هـ) دغه کتاب درلود او ده په (۱۰۳۲هـ) په خپل کتاب مرآت مسعودي کې له دغه کتاب څخه اقتباسات وکړه، دی وايي چې ملا محمد غزنوي د سلطان محمود سره یو ځای هند ته راغلی او دغه تاریخ یې لیکلی دی[۱].

دا شیخ عبد الرحمن چشتي د هند مشهور مؤلف او د مرآت الاسرار او مرآت مسعودي او نورو ډېرو کتابو خاوند او ثقه صوفي دی، چې درواغجن نه ښکاري او دده په وخت کې هم تاریخ ملا محمد غزنوي موجود و، چې مرحوم شبراني یې هم ذکر کړی دی[۲].

مگر داسې ښکاري چې د ملا محمد غزنوي تاریخ به له دې تاریخ غزنه څخه بېل وي؛ ځکه شیخ عبد الرحمن چشتي تصریح کوي، چې ملا محمد د سلطان محمود معاصر و، یعنې د (۴۰۰ هـ) په شاوخوا کې به ژوندی و؛ مگر دغه ابو حامد خو له حسن صاغاني څخه دا حکایت اورېدلی دی او امام صاغاني د (۶۰۰ هـ) د شاخوا سړی دی.

۴ـ حسن صاغاني یا صغاني: د هند یو خورا لوی عالم او د

---

[۱] پرشین لټرېچر ۱۰۷۲ د ستوري تالیف د لندن طبع.
[۲] تنقید شعر العجم، ص ۵۷ د دهلي طبع.

عربي ژبې امام تېر شوی دی. د کرامات په اصلي نسخه کې (صنعاني) لیکل شوی او دا نسبت غلط دی، صحیحه املا یې صاغاني یا صغاني دی، چې د چغاني معرب دی او دغه چغان یا چغانیان د آمو دریا شمالي خوا ته یوه لویه ناحیه وه[1].

امام حسن صاغاني (صغاني) په (۵۷۷ هـ) په لاهور کې زېږېدلی او په غزني او بغداد کې یې د علومو تحصیل کړی او مخصوصاً په عربي ژبه کې امام و، چې په عراق او مصر او حجاز کې هم شهرت درلود او ډېر مولفات لري. دی په (۶۵۰ هـ) په بغداد کې وفات شو او قبر یې په مکه کې دی، مشهور تالیفونه یې دادي:

کتاب الشوارد فی اللغات، شرح القلادة السمطیه، کتاب الافتعال، کتاب العروض، مشارق الانوار، مصباح الدجي، الشمس المنیره، شح البخاري، درة السحابه، کتاب الفرایض، العباب الزاخر چې د عربي یو لوی نا تمام قاموس دی[2] د کرامات په دغه حکایت کې چې د حسن صغاني څخه رانقل شوی دی، دا ثابتېږي، چې دا کتاب د (۶۰۰ هـ) په شاوخوا لیکلی شوی دی؛ ځکه چې دغه وخت د حسن صغاني د ژوندون زمانه ده.

اما دا چې حسن صغاني د غزلي په احوال خبرو او دده روایت به ثقه وي که یه؟ له دې سببه ثقه ښکاري، چې امام حسن صغاني د خپل علمي تحصیل یوه دوره په غزني کې تېره کړې

---

[1] حدود العالم ص ۶۶.

[2] سبحه المرجان، ص ۲۸، او تذکره علمای هند، ص ۴۸، او بزم مملوکیه ص ۲۸.

او د غزني په مدرسو کې (یې) لوست کړی و[1].

د امام صغاني یو ډېر مهم کتاب العباب دی، چې خطي نسخې یې په استانبول کې دي، امام صغاني په دې کتاب کې د عربي لغاتو په مقابل کې ځینې فارسي کلمات هم راوړي او وایي چې په "لسان غزنویه" یې دا یا دا بولي او ما په غزني کې له خلکو څخه اورېدلی دی[2].

له دغو خبرو څخه ښکاري، چې امام صغاني په خپله په غزني کې اوسېدلی او د دغه ښار په احوال او ژبه ښه بلد و؛ نو ځکه دده روایت ثقه ګڼل کېږي.

**۵ـ برداب بامیان؟**

دا کلمات کاتبانو مسخ کړي دي، زما په خیال صحیح یې داسې دی:

"بر درب بامیان" یعنې د بامیان پر دروازه، چې د غزني ښار پخوا څلور دروازې درلودې او یوه یې "باب البامیان" وه[3] داسې ښکاري چې د غزني هغه شمالي دروازه "باب البامیان" یا "درب بامیان" بلله کېده، چې بامیان ته به له دغې دروازې څخه لار تله.

**۶ـ مرلت؟**

دا کلمه په دغه حکایت کې لومړی پلا (مرلت) او بیا (مرکت) لیکلې ده. ګومان کوم چې دواړه ډولونه یې غلط دي او د نسخې د کاتبانو د ناپوهۍ له لاسه مسخ شوې ده او اصل یې

---

[1] وګورئ د حسن صاغاني احوال؛ معارف اعظم ګډه (۱۹۵۹م) د مولوي عبدالحلیم په قلم او معجم المطبوعات ۲ـ۱۲۸.

[2] العباب، د خطي نسخې عکس.

[3] احسن التقاسیم د مقدسي ص ۳۰۳.

(مزګت) دی، د (مسجد یست عظیم) لـه تعبیره هم دا ښکاري، چې دا کلمه اثلاً (مزګت) وه او دوه نور شکلونه یې منسوخ دي.

مزګت په قدیمه فارسي کې د عربي (مسجد) په معنا راغلی دی؛ نو ښایي چې مسجد هم ددغې کلمې معرب وي او ددې کلمو ریښه هم د پښتو مزدك سره مشترکه ده[1] اسدي طوسي وایي: ((مزګت بپارسي مسجد باشد))[2].

مروت پښتانه تر اوسه هم مسجد مزدك بولي. په پخوانیو فارسي کتابو لکه تاریخ طبري او تقسیر طبري او حدود العالم او نورو کې دا کلمه ډېره د (مزګت) په شکل راغلې ده.

۷_ افلخ لویك؟

د کرامات ددې حکایت په استناد یو لوی مسجد د غزني د بامیان په دروازه کې و، چې (مسجد اقلخ لویك) یې باله او دا مسجد لومړی پلا د افلخ نیکه خانان جوړ کړی و او د لویك له کورنۍ شخه لومړی پلا دغه (خانان) مسلمان شوي وو؛ خو دی بېرته مرتد شو او تر ده وروسته بیا دده لسمي (نبسه افلخ) دا مسجد د غزني د بامیان په دروازه کې جوړ کړ او دا ځای دمخه بتخانه وه.

دا اقلخ لویك، ظاهراً هغه افلخ دی، چې دده ذکر دمخه ما د زین الاخبار ګردیزي په حواله وکړ؛ مګر د ګردېزي په خطي نسخه کې دا نوم الفخ بن محمد بن خاقان راغلی دی چې کنیت یې ابو منصور و[3].

---

[1] شرح یې وګورئ: د پښتو ادب تاریخ ۱_۶۹ او په دې کتاب کې د ښکارندوی غوري حال.

[2] لغت فرس ۵۱.

[3] زین الاخبار، ص ۶.

له دې څخه ښکاري چې د دغه افلخ (اقلخ) پلار محمد پوره مسلمان شوی او اسلامي نوم يې و؛ مګر د محمد پلار خاقان (چې په دې حکايت کې خانان راغلي دي) اولاً بت پرست و، چې بيا مسلمان او وروسته بېرته مرتد شو. که څه هم ګردېزي دغه ابو منصور افلح د لويکانو له کورنۍ څخه نه دی بللی؛ خو د کرامات روايت دا ښکاره کوي چې دی هم لويک و. اما د دې لويک نوم د ګردېزي په نسخو کې افلح او د کرامات د ناقصې نسخې په املاء (افلخ) دی. ښايي چې د ګردېزي ضبط صحيح وي؛ ځکه چې افلخ نه په عربي، نه په پښتو او نه په فارسي کومه معنا لري او نه داسې نوم بل ځای ليدل شوی دی.

ښايي چې د دې کورنۍ د لومړنی پلا اسلام قبلولو په مناسبت دده نوم افلح اېښوول شوی وي، چې د عربي "فلاح" څخه ريښه لري او هم ګومان کېږي، چې دا مسجد د غزنې د اسلامي زمانې لومړی مسجد وي.

۸ـ بيحانه؟

دا کلمه دوه واره بيحانه او بيحانه لېکلې شوې ده، چې غالباً بتخانه ده، قرينه يې هم وروسته د "صنم لويك".

دا نکته مه هېروئ، چې په دغو زمانو کې شاهانو د معبودانو رنګ موندلی و او د دوی مجسمې او بتونه به په بتخانو او معبدو کې پراته وو. د بغلان په اورتون کې هم د شاهانو بتونه او مجسمې ولاړې وې او د روزګان له کتيبې څخه هم ښکاري چې پاچا، الهي القاب درلوده او خلکو د تقدس په سترګه ورته کتل؛ نو ښايي چې دغه بت هم د لومړي لويك و، چې يو قسم معبود ګڼل کېده او چې مسلمانان غالب شول او خانان يا خاقان مجبوراً مسلمان شو، ده به د خپل سلف بت نه

شو ماتولای؛ نو یې په سیمین تابوت کې هلته ښخ کړ، چې هم د بت شکنو مسلمانانو له لاسه محفوظ پاتې شي او هم یې خاورې ونه خوري.

۹ـ و حویر لویك؟

د کرامات په خطي نسخه کې داسې لیکلي دي؛ خو زه ګومان کوم چې دا کلمه به (وجویر) وي، چې ښایي دا لویك به هم د کابلشاهانو او رتبېلانو معاصر او د دوی له خپلوانو څخه و.

ددغه لویك په نامه اوس هم یوه لویه مځکه د غزني جنوب غربي خوا ته پرته ده چې اجرستان یې بولي او منهاج سراج جوزجاني "وجیر" او "وجیرستان" لیکلې ده، چې په غوري دوره کې د غوري سلطنت یو مشهور ولایت و[1] په غزنوي دوره کې هم یو ځای د غزني له نواحیو څخه ((هجویر)) و، چې د کشف المحجوب لیکوال او مشهور صوفي علي بن عثمان هجویري غزنوي (متوفی حدود ۴۹۵ هـ) هم دغه ځای ته منسوب و او په دغه کتاب کې ځان مکرراً هجویري غزنوي بولي[2] او د شهزاده داراشکوه په قول هجویر د غزني له محلاتو څخه و[3]؛ نو (وجویر ـ هجویر ـ وجیر) د یوه اوسني اجرستان مختلفې املاوې دي، چې دا ځای دوجویر لویك په نامه مشهور دی او تر اوسه هم شته. یا ښایي چې دغه نوم قدیم وي او دغه لویك ورته منسوب وي.

ځکه چې د محل په نامه تسمیه تر اوسه هم په پښتنو کې شته او پښتانه د کابل، غزني، مقر نومونه پر ځان ږدي.

---

(۱) طبقات ناصري ۱ ـ ص ۲۹۳ـ۳۶۲ـ۴۱۶ وغیره.

(۲) کشف المحجوب د لېنن ګراد طبع.

(۳) سفینته الاولیا، ص ۵۶.

دا خبره مو ږ ته نه ده ښکاره چې (وجویر) کوم حرکات لرل؛ خو ژوکوفسکي د کشف المحجوب ناشر او نکلسون د دغه کتاب مترجم او نورو پوهانو دغه کلمه (هجویر) د اول توري په پېښ لوستلې او چاپ کړې ده او ښايي چې په اصلي خطي نسخو کې به هم دغسې وه؛ نو په دغه دلیل زه (وجویر) هم د واو په پېښ لولم، چې کله کله دغسې مضموم واو په (مضموم الف) هم بدلېږي، مثلاً د اوستا هومه (د سنسکریت سومه) په پښتو (اومان یا اوم) دی او هویه (بیضه) کله په پښتو (ویه) ده.

نو پر دغه قیاس وجویر او هجویر د یوې کلمې دوه صورتې رنګونه دي، چې د منهاج سراج په طبقات ناصري کې (وجیر) په تخفیف راغلی دی او اوس یې (اجرستان) بولي.

دلته دا نکته هم مه هېروئ چې دغه کلمه په لږ تغییر (هجیر) کېږي، چې د فارسي هژیر سره برابره ده او په فارسي کې د ښه او نېك او خوښ شوي په معناوو بوالفرج روني دا کلمه د صفت په ډول داسې راوړي:

هجیر پرخرد آزاده منعمی که نگشت
بجاه و نعمت با او برابر آتش و آب

منو چهري وايي:

نوروز فرخ آمد و نغز آمد و هژیر
با طالع سعادت و با کوکب منیر

(دیوان منو چهري ص ۳۳)

په شهنامه کې هجیر د ګودرز زوی دی، چې د سهراب په لاس اسیر شو:

هجیر دلاور میان را به بست
بدان بارهٔ تیز تگ بر نشست

قطران هژير او ناهژير په دې بيت کې داسې راوړي دي:

همیشه وعدهٔ او نادرست و نا ز درست

همیشه عـــادت او ناهژیر و نازه ژیر

منو چهري د خوبانو پر ځای هژيران راوړي دي:

دست به می شاه راو دل به هژیران

دیده بروی نکو و گوش به قوال[1]

لـه دغـو مثـالو څخـه ښکـاري چې هجيـر يـا هژيـر کلـه صـفت و او کله علم، خو په هر صورت خراساني کلمه ده، چې معنـا يې هغـه د منو چهري خوب او خوبان راځي، په دې تفصيل:

ددې کلمـې اول تـوك (هـو = وو) د (بلـې، بسـيار خـوب) پـر ځـای ايجاباً وايـو، د فارسـي پـه هـروي لهجـه کـې هـم و، مـثلاً هوبخـت (نېکبخـت) هونـامي (نېکنـامي) چـې د (۴۸۰ هـ) پـه حـدودو کـې د خواجـه عبـد الله انصـاري پـه هـروي لهجـه کـې وه[2] او دغـه (هـو = هو) د ځينو تاريخي کلماتو په سر کې هم راځي مثلاً:

هو سروه HAUSRAUAH (خسرو[3] = هو = خه + سروه = زړه.

خـه زړه = خوشـدل) هومايـا HUMAYA[4] هـو = خـه + مايـه = همـای يـا خمـای د گشتاسـپ لـور) هـو وخشـتره د نينـوا مـادي فـاتح ۶۱۲ ق. م او د یونانیـانو سـیا گـزارو[5] چـې لومـړی جـز يـې هـو = خـه او دوهـم خشـتره = کښتـور دی. دغسـې هـم د مـزد يسـنا د آيـين درې غـټ اصـول د اوسـتا هومتـه ـ هوختـه ـ هورشـته، دی، چـې پـه

---

[1] فرهنگ نظام ۵. ۶۹۸.

[2] طبقات السوفيه فارسي خطي نسخه.

[3] كيانيان ۶۳.

[4] كيانيان ۴۱.

[5] ميراث ايران ۳۱.

پهلوي هومنش هوګبشن ـ هوکنش ـ او په فارسي پندرا نیک، ګفتار نیک، کردار نیک دی[1] دغه کلمات په پښتو کې اوستا ته ډېر نږدې هومننه ـ هوخته، هورشه، دي او دغسې هم په اوستا کې هورمك (خوب رمه) د جمشېد صفت دی[2] او په فارسي کې آهو د عیب په معنی و، (آ= نا ـ نفی+ هو "خوب" یعنې نا خوب نابنه) فردوسي وایي:

گر آهوست بر مرد موی سپید
تراریش و سر گشت چون برگ بید[3]

نو ددغو کلماتو یو جزو (هو= هئو = خو = ښه = خوب) دی، چې د هجیر په سر کې هم دغه (هو= ه) شته.

اما دوهم جزو یې (جویر = جیر = ژیر) دی، چې په پښتو کې ځیر ځېره شته.

دا کلمه په اوستا کې چیثهره او په سنسکریت کې چیتره وه، چې په پښتو او زړه پارسو کې سیکه CIKA هم کټ مټ دغه د شکل او اصل معنا لري[4] او د فارسي چهره هم له دې ریښې څخه ده، فرخي وایي:

مردیکه سلامی بکشد چهرهٔ آن مور
در دیدهٔ من خوبتر از صد بت مشکوی

دغه کلمه د اوستا په منوش چیثهره MANUSH- CHITHAR (یعنې منوچهر) کې پاتې ده او په کیاني پاچاهانو کې د منوچهر

---

[1] ګاتها ۷۵ مزد یسنا و تاثیر آن در ادب فارسي ۴۰۰.
[2] وندیداد فرګرد ۲ ص ۲۱۰.
[3] شهنامه ج ۱ بیت ۲۶۴۴.
[4] اولډ پرشن ۱۸۴

لـه نسـله یـو بـل هـم (وهیجـرو) نومېږي [۱]، چـې د نـوم اخـر جـز یـې دغـه څېـر دی، یعـنې وهـو = خـه. جـرو = څېـره. خـه څېـره. او مـوږ د منـو چهـرې پـه لـوړ بیـت کـې ولوسـتل چـې هژیـران (خوبـان) او پـې مخـی او ښایسـته وه؛ نـو "وجـویر = هجـویر = وجیـر" پښتـو (هـوځېر) وهـو (نیکـو) جـویر= جیـر، ژیـر، چهـر = څېـر (یعـنې شـکل او قافت) او معنا یې جمعاً داسې ده:

نیکو روی، ښکلی، خوب، چهره، منوچهر.

ددې کلمـې یـو بـل نظیـر پـه تـاریخي نومـو کـې پـوڼروجیره PAURUAJIRA دی [۲] یعـنې (پـوره_ ځیـر) چـې ډېـر هوښیـار او ښـه سړی او د مزدا پرسـتانو لـه پښتـه و؛ بلکـې پـه یشت کـې دغـه کلمـه کلـه د صفت پـر ځـای د "ډېـر هوښیـار" پـه معنـی هـم راغلـې ده [۳] نـو کـه مـوږ دغـه (وجیـر= هژیـر = هجـویر) د هوښیـار او خردمنـد پـه معنـا واخلـو؛ نـو بـه یـې دوهـم جـز (جیـر) د پښتـو (ځیـر) وګڼـو، چـې معنـا یـې هغـه دقیـق او بصیـر او هوښیـار ده او څکـه چـې د (وزیـر) کلمـه هـم علمـاوو پـه عربـي کـې دخیلـه ګڼلـې ده او اوسـتایي شـکل یـې ویچیـرا VICHIRA و [۴] نـو دا هـم ویـلای شـوای چـې هجویریـا وجیریـا هژیـر ټولـه ددغـې کلمـې پخـواني اشـکال او لهجـوي ډولونـه دي.

۱۰_ بر حدمت رسل و کابلساه:

دا کلمـات هـم زمـا پـه خیـال مسـخ شـوي دي او صـحیح ډول یـې داسـې و ((بـر خـدمت رتبیـل و کابلشـاه)) یعـنې وجـویر لویـك دغـه

---

[۱] کیانیان ۲۳.

[۲] داتسنان دنییك فصل ۳۸ بند ۳۳_ یشت ۱۳ بند ۱۳۱.

[۳] کیانیان ۱۱۴.

[۴] تمدن ایاني ۱۸۴ د هنري ماسه مقاله.

بتخانه د کابلشاه او رتبيل لپاره جوړه کړې وه. رتبيل د هغو شاهانو يو عمومي لقب و، چې د دوی سلطنت د عربو د فتوحاتو په وختو په لومړۍ هجري پېړۍ کې له زابله تر سيستانه رسېده او د سبکتګين تر عصره يې دوه نيم قرنه مسلسل په دغه مځکو کې د اسلامي لښکرو سره جنګونه کول. داسې ښکاري چې د رتبيلانو او زاولي شاهانو او کابلشاهانو په منځ کې خپلوي او دوستي وه؛ ځکه هغه وخت چې چيني سياح هيون تسنګ زابلستان ته راغی؛ نو کابلشاه له ده سره تر زابلستانه ولاړ او بيا بېرته د خپل مملکت سرحداتو ته وګرځېد لکه کنتګهم چې حسابلي دی، هيون تسنګ له هنده بېرته د اټك او بنو او اپوکين (افغان) پر لار غزني ته په ۲۵ جون ۶۴۳ م کال راوسېد[۱] چې د هجري سنې (۲۴ هـ) کال دی؛ نو ښايي چې د غزني د لويانو پاچاهي هم د اسلامي هجري سنې په ابتداء کې شروع شوې وه، چې د سبکتګين تر عصره (۳۶۵ هـ) پورې موجوده وه.

مګر د رتبيل کلمه مؤرخانو په ډول ډول رانقل کړې او د هر کتاب ناسخ بيا هم پسې مسخ کړې ده: رتيل، رتپيل، رتال، زنبيل، زنيل وغيره، چې د تاريخ سيستان او مجمل التواريخ محشي مرحوم ملك الشعراء بهار خراساني دغه کلمه د فارسي (زده پيل) څخه جوړه شوې (زنتبيل پازنبيل) شمېرلې ده[۲] مګر راورټي وايي: دا نوم د هندي "رنتهبيل يا رتن پال" تصحيف دی[۳] خو عربي مؤرخانو لکه بلاذري يعقوبي او طبري او

[۱] د هند پخواني جغرافيا ۱_۲۶۶.

[۲] د تاريخ سيستان حواشي ص ۹۱_ او د مجمل حواشي ص ۴۲۲.

[۳] پر افغانستان ځيني ياداشتونه، ص ۶۳.

مسعودي دغه کلمه (رتبیل) ضبط کړې ده، چې د کلمې اصلي شکل هم دغه دی او جمع یې رتابله ده؛ لکه قیاصره، نمارده، کیاسره، فراعنه، تراکمه، افاغنه او نور... حتی دا نوم په عربو کې هم مشهور و، د عربي شاعر فرزدق چې د رتبیلانو معاصرو د سلیمان بن عبدالمالك اموي په مدح کې وایي:

و تراجـــمع الطرداء اذو تقوا
بالامن من رتبیل والشحر[1]

ددغه بیت په استناد دا نوم یقیناً (رتبیل) و، نه بل څه. چې وروسته عربو دا نوم د عَلَم په ډول پر خپلو زامنو هم ایښود، مثلاً رتبیل بن صالح یو مشهور محدث و، چې دده نوم زبیدي د قاموس په شرح کې ده "الرتبل" تر مادې لاندې راوړی دی[2] او علامه ذهبی له ده څخه ډېر احادیث رانقل کړي دي[3].

رتبیل ځینو خلکو د اول حرف په پېښ لوستی دی؛ خو د فرزدق په دیوان کې د اول حرف په زور و او همداسې چاپ شوی دی. ددې حرکت د صحت دلیل هم دادی، چې ابو منصور موهوب بن احمد جوالیقي (۴۶۵/ ۵۴۰ هـ) رتبیل په خپل کتاب کې ملك سجستان بللی دی، چې دده د کتاب په خطي نسخو کې هم اول حرف زور درلود او دغسې لوستل کېده.[4]

له دغو روایاتو څخه ښکاري، چې د کلمې اصلي شکل هم (رتبیل) و، نه بل څه ځکه (زنتبیل) په لوړ بیت کې نه ځایېږي او د قصیدې وزن خرابوي او که یې (زنبیل) فرض کړو؛ نو بیا د

---

[1] دیوان الفرزدق ۳۲۵.

[2] تاج العروس، د الرتبل ماده.

[3] مشتبه النسبه د علامه ذهبی.

[4] المعرب من الکلام العجمي ص ۱۶۳ د مصر طبع، ۱۳۶۱ هـ.

"الرتبل" په ماده کې نه راځي؛ بلکې دغو لغويانو د زنبيل ماده جلا راوړې او هلته يې زنبيل کوم ـ عَلَم يا لقب نه دی ښوولی.

ګومان کوم چې: ددغې کلمې اخرنی جز (بيل) به لکه راوړتې چې وايي د هغه "پال" سره نژدې وي او (رتپيل) به وي؛ څکه د ديمو نومو د اخر "ال" له پالل څخه دی؛ خو پالل او پيلل دواړه د پښتو په لهجو کې شته او (رتو) هم په هندي نومو او هم په اوستا کې ليدل کېږي. رتو RATU په ګاتها کې د روحاني مشر او بزرګ مينوي په معنا وه او د زرتشت لپاره هم د صفت په ډول استعمال شوې او په خپله زرتشت هم (رد جهان) بلل شوی دی[1] په فارسي کې هم (رد) د هوښيار او خردمند په معنا و، فردوسي وايي:

بپوشيد درع سيا وش رد
زره را گره بر کمربند زد



او همدغه کلمه ده، چې په سنسکريت کې د مينې رب النوع او زهره ستوري او عشق او محبت ته وايي[2].

وايي چې زردشت لومړی پلا د نېکنې فرښته وهومنه وليدله او په ريتا RITA معتقد شو او دغه ريتا د معنوي عالم د نظم او عدالت مظهر و[3] همدغه ريښه د تاريخي نومو په سر کې شته؛ لکه راته ـ ستخمه RAOTHA- STAXMA چې د نامه اول جز دغه راته دی او وروسته (رستم) شو او وايي چې دده موررت ـ آيت (روزابذ) بلل کېده او د رستم نوم هم دې ته منسوب دی[4].

---

[1] فرور دين يشت، ۱۵۲ بند.
[2] هندي قاموس د ډنکن فوربس ۴۲۶.
[3] تمدن ايراني ۸۲ د دومناس مقاله.
[4] کيانيان ص ۲۰۳.

کلـه کلـه دا کلمـه د (ارت) پـه شـکل هـم راغلـې ده مـثلاً ارت خشـتر ARTA- XSHATR د یونـاني آرتـاګزر_ ګـس او د فارسـي ادرشـیر[1]، چـې اول جـز یـې هغـه راتـه او دوهـم خشـتر (کښتـور = تورکښ) دی، یعنې رادتورکښ.

* پـه پښتـو کـې ددې کلمـې ریښـه پـه راتـو کـې شـته چـې د ښځـې نـوم دی، یعنـې روحـاني محبوبـه او مینـوي معشـوقه او د نـرو نـوم راتګـل هـم دغسـې دی. (رات = رت = روحـاني مشـر او محبـوب. ګـل = هغـه تـاریخي کـولاو کهـول) چـې معنـی یـې ده د محبـوب مشـر لـه کهولـه؛ خـو ملایـانو دا نومونـه معـرب کـړي دي راحتـو؟ راحت ګل؟

نـو ددغـه تـاریخي لغـوي تحلیـل پـه سیوري کـې (رتپـېـل) ډېـر ښکلـی پښتـو نـوم دی. یـعـنې د عشـق پـالونکي، مینـه ور مشـر، یـا د میـنـې د رب النـوع پـالونکی او عربـانو حـق درلـود، چـې دا ښکلی ادبي نوم واخلي او پر خپلو زامنو یې کښېږدي.

۱۱_ بسرش خانان؟

د کرامـات حکایـت د وجـویر لویـك زوی خانـان بـولي او پـه ناقصـه خطـي نسـخه کـې دا نـوم خانـان دی؛ خـو د ګردېـزي د زیـن الاخبـار پـه خطـي دوو نسـخو کـې چـې اوس پـه لنـدن کـې موجـودې دي، دا نوم لکه دمخه چې وویل شول خاقان دی.

په پښتنو کې د خاقان نوم نه دی رواج، مګر خانان ډېر دی، خاص بیـا د ارګون او زاولستان په ملاخېلو قبیلو کې. ښایي چې کاتبانو خانان په ګردېزي کې خاقان کړی دی، چې یو مشهور نوم و.

پـه هـر صـورت خانـان یـا خاقـان د وجـویر لویـك زوی و، چـې لومړی پلا لـه دې کورنـۍ څخـه مسـلمان شـو او د غزنـي د بامیـان

---

[1] کیانیان ۲۱۰ څخه وروسته.

د دروازې بتخانه یې مسجد کړې او د لویك بت یې هلته ښخ کړی و؛ خو دی بېرته مرتد شو. په دې جمله کې بسرش د فارسي (پسرش) دی.

۱۲_ کابلان ساه؟

چې صحیح یې کابلنشاه دی دا هغه د کابلان شاه یو بل شکل دی، چې کله کله په ځینو تاریخي کتابو کې هم دغه شکل راغلی دی، مثلاً ابن خرداذبه د شاهانو په سلسله کې د "کابلان شاه" لقب هم یادوي لکه داوران شاه، کشمیران شاه، هندوان شاه[1] چې ددې نومو اخرنی (آن) د نسبت ادات دی، چې په پهلوي کې هم و.

۱۳_ خجل؟

د کرامات په ناقصه خطي نسخه کې دغسې لیکلی شوي دي او داسې ښکاري چې دا له کابلشاهانو څخه د یوه نوم و، دا نوم د تامل وړ دی، چې اصل یې څه و، زه داسې گومان کوم، چې دا نوم (خنچل) و.

ځکه چې پخوانو مورخانو هم دا نومو راوړی دی، احمد بن واضح یعقوبي (متوفی ۲۹۲ هـ) لیکي، چې المهدی خلیفه په (۱۶۳ هـ) کال ځینو شاهانو ته سفیران واستول او دوی یې خپل اطاعت ته راوغوښتل، چې اکثرو یې د المهدی اطاعت ومانه. یو له دغو شاهانو څخه ملك کابلشاه و چې دی یې خنحل باله[2].

دا کابلشاه چې د (۱۶۳ هـ) په حدودو کې ژوندی و د یعقوبي په تاریخ کې دد نوم (حنحل) دی، چې د کرامات په نسخه کې

---

[1] المسالك والممالك د ابن خرداذبه ص ۱۷۰.

[2] تاریخ ۱ یعقوبي ۳_۱۳۱ د نجف طبع ۱۳۵۸ هـ.

(خجل) لیکلی او دواړه سره لېرې نه دي او داسې ښکاري چې کاتبانو تصرف په کې کړی دی.

لومړی توری په کرامات کې (خ) او دوهم په یعقوبي کې (ن) او دریم (ج) او اخرنی په دواړو کې لام دی؛ نو له دې څخه (خنجل) جوړېدای شي، چې زما په تخمین به دا کلمه اصلاً خنچل وي؛ ځکه چې په عربي او فارسي قدیمو نسخو کې د (ج) او (چ) فرق په رسم الخط کې نه و.

که دا نوم تجزیه کړو داسې به شي: خن چل، خن د خان مخفف دی؛ لکه په پښتو کلمه ختنماکي. دا نوم په کاکړانو کې تر اوسه شته. خان تما یعني د خان له تومني او پښته څخه. (تما) پخوانۍ کلمه ده، چې په اوستا کې هم وه؛ لکه ګئوتما (د ګئوله تومني = بودا)[1] او مرتم = مردم (مړ_ تما) یعني د مړو له تومني، چې په اوستا کې هم مرته (مردني) و[2] یا سپین تما چې د زردشت د کورنۍ نوم و[3] دغه (تما) کټ مټ په زړه پارسو کې هم وه، چې ۲۵۰۰ کاله مخکې د بېستون پر ډبرلیك او پر ځینو پخوانو مهرو لیکلې ده او معنی یې هغه کورنۍ FAMILY وه او د اوستا توخمن او د سنسکریت توکم او د فارسي تخم هم له دغې رېښې څخه دی[4] او په پښتو کې تر اوسه هم تما_ تومنه_ توکم د نژاد او کورنۍ او اصل په معناوو موجود او مستعمل دی.

دغسې نور ډېر کلمات شته، چې په اخر کې تما (تومنه،

---

[1] بودا، د دکتور جولیوس طبع ۱۹۰۵ م.

[2] یشتها ۲_۴۲.

[3] یسنا ۱۹، کیانیان ۵۱.

[4] اولډ پرشن ۱۸۵.

ختـه، کورنـۍ) راغلـې ده؛ نـو ختنمـا هـم د خـان تـومني او د خـان لـه ختـې او متکبـر او مغـرور او اصـیل پـه معنـا دی، چـې د پښتـو خانګـل (خـان + کهـول) هـم عینـاً دغسـې نـوم دی. پـر دغـه اسـاس د خنچـل لومـړی توتـه هـم (خـن) د خـان مخفـف دی؛ لکـه چـې ځینـې پښتانه خانمړي هم ختمړي او خانګل هم خنګل بولي.

دوهمـه توتـه یـې (چـل) دی، چـې پـه پښتـو طـرز، سـلوك، رفتـار ته وایي، ملا میران ویلي و:

نه په چل د عشق پهېږي نه یې زده دی
لغوړن مــــچ دی بوڼېږي رقیب تل تل

دا کلمـه پـه پخوانـو نومـو کـې ده، مـثلاً راجـه او چـل د کشـمیر پاچـا (۱۱۰۱_۱۱۱۱ م) د (۵۰۵ هـ) پـه شـاوخوا کـې ژونـدی و،[۱] چـې دا نـوم هـم هـو (ښ) + چـل و، یعنـې نیـك کـردار او د ښـه چلاو خاوند.



نـو خنچـل هـم د لـوړ او عـالي او خـاني سـلوك خاونـد معنـا لـري، چـې داسـې سـړی حتمـاً بایـد پښتـون او پښتـو ژبـی وي. امـا د خـان کلمـه مـوږ تـه د مغولـو سـره نـه ده راغلـې؛ بلکـې دا کلمـه د (هـون = هـان = خـان) یعنـې د آریـایي هفتـالیو (ابـدالیو) لـه نومـه څخـه جـوړه شـوې ده؛ لکـه د تـور خـان کلمـه چـې ترخـان او بیـا معربـه طرخـون یـا طرخان شوه.

۱۴_ بلسان خلجیه که لویك ګفت؟

دا لویـك نـه دی معلـوم چـې نـوم یـې څـه و؟ خـو داسـې ښکـاري چـې خنچـل کابلشـاه دا بیـت د لویـك لـه خـولې راالېـږلی دی او ښـایي چـې دغـه لویـك لـه خنچـل سـره پـه کابـل کـې و؛ ځکـه چـې ددې دوو کورنیـو خپلـوي پـه تـاریخي روایـاتو کـې دمخـه ثابتـه

[۱] راجه ترنګني د کلهنه تالف، ۸ ترنګ، ۳۷۹_ اشلوك ج ۲ ص ۲ څخه وروسته.

شوه؛ نو ممکنه ده، چې دا لويك هم د خنچل خېل وي.

اما دلته د غور خبره داده، چې لسان خلجيه کومه ژبه وه؟ زما سره ډېر تاريخي او ژبني دلايل شته چې خلجي دغه اوسني غلجي دي، چې له قديمه د غزني په غرو او رغو کې اوسي او د زاولستان پخواني خلك دي. دلته به زه په لنډه يو څو دليله راوړم، چې لږ څه دا خبره ښکاره شي:

خلجي او غلجي يا غلزي په اصل کې (غرزي = کوهزاد) دي[1]، يعنې د غرو خلك، چې دا کلمه په غرج، غرچه او غلچه او نورو ډېرو تاريخي کلماتو کې شته او کله (غ) په (خ) هم اوښتي دي او غلجي، خلجي شوي دي.

د هند خلجيان چې په پېړيو يې هلته سلطنت کړى دى هم دغه پښتانه غلجيان وو؛ د دوى په نوم ډېر ځايونه هم شته؛ لکه خلج (په روزګان کې) خلج[2] (د هلمند د ناوې) خلج (د غزني) چې ياقوت هم په معجم البلدان (۲_۳۸۱) کې خلج غزني ته نژدې د زابلستان له لتو څخه ښوولى دى.

د قبايلو او ځايو په نومونو کې کله (خ) په (غ) اوړي، مثلاً خرخيز = غرغيز او د غور اوسني ساغر، چې منهاج سراج ساخر ضبط کړى دى او اصلاً سور غر و[3].

دا خبره چې خلجيان د چنګېز خان د زوم خالج خان له نسله دي او محمد قاسم فرشته د نظام الدين احمد بخشي هروي له

---

[1] د شاهنامې په ملحقاتو کې د کك کوهزاد حال شته، چې ددغو افغانانو مشر و او دوى د زابل د سيمو په غرو کې پراته وو. دغه کوهزاد کټ مټ د (غرزي) فارسي ترجمه ده. (د شاهنامې ملحقات ج ۵، ص ۳۳).

[2] دا خلج اصطخري هم د هلمند په ښارو کې ياد کړى دى (اصطخري ص ۲۵۴).

[3] طبقات ناصري ۱_۳۸۷ د حبيبي طبع.

طبقات اکبري رانقل کړې ده[۱] تاریخي صحت نه لري؛ ځکه دا ممکنه ده، چې پس له (۶۲۰ هـ) د چنګېز خان له عصره بیا تر اوسه په (۶۰۰) کاله کې د یوه سړي له نسله په ملیونو خلك او قبایل پیدا شي.

خلجیان یا غلجیان خو درې قرنه تر چنګېز دمخه په دغو ځایو کې ساکن و او ډېر شهرت یې لاره. د حدود العالم مؤلف په (۳۷۲ هـ) کې وایي: د غزني په اطرافو کې خلخ (صحیح یې خلج دی) پراته دي او تر بست او ګوزګان او بلخ او تخارستانه پونده دي اورشووې او د څر ځایونه او ډېر پسونه لري[۲] تر ده دمخه بل اسلامي جغرافیا وال ابن خرداذبه (۲۳۰_۲۳۴هـ) هم د خلجیه نوم اخلي او وایي چې خرلخ تورکان طراز ته نژدې د ژمي هستوګنې لري او هم دوی ته نږدې د خلج (خلجیه) د ژمي اورشووې دي[۳].

ابراهیم بن محمد اصطخري (۳۴۰ هـ) وایي: خلج یوه ډله وه، چې خورذا پخوا د هند او سیستان تر منځ د غور شاته راغله، پسونه یې لرل، کالي او ژبه او کړه وړه یې لکه د تورکانو داسې وو[۴].

ځینې مستشرقان په دې عقیده دي، چې دغه غلجي د هفتالیو بقایا دي، مارکوارټ وایي: خلچ یا خولچ د فهتالیو قبایلو پاتې برخې دي، چې په شامي منابعو کې په (۵۵۴م)

---

[۱] تاریخ فرشته ۱_ ۸۸.
[۲] حدود العالم ص ۶۴.
[۳] ابن خرداذبه ص ۲۸.
[۴] اصطخري ۲۴۵.

راغلی[1] او بیا په (۵۶۹ م) کال سفیر ایمرخوس دغه کلمه خولیر راوړې ده او دا نظریه مونږ کټ مټ د محمد بن احمد خوارزمي په کتاب کې (۳۷۰ هـ) هم وینو، دی وایي: خلج او کبجیه[2] (په اصل کې کنجینه غلط چاپ شوی دی) د هیاطله له پاتېشونکو څخه دي، چې په تخارستان کې د شان او شوکت خاوندان وو[3]. دا خلجیان له افغانانو سره یو ځای مؤرخانو یاد کړي دي او داسې ښکاري چې دوی ډېر سره نژدې او یو قام و، ابو نصر محمد بن عبدالجبار عتبي (۴۱۵ هـ) د سبکتګین په فتوحاتو کې لیکي:

افغانیه او خلج ده ته اېل او په زور یې په خدمت کې داخل کړه شوه[4] چې ابن اثیر هم کټ مټ دغه روایت راوړی دی[5].

منارسکي په صراحت سره وایي: دغه خلج د اوسنیو غلجو افغانانو اسلاف وو او بارتولد او هیګ هم په اسلامي دایرة المعارف کې داسې ویلي دي[6].

دا خبره یقین ته نژدې ده، چې خلجي یا غلجي به له پخوانو

---

(۱) ایرانشهر تر ص ۲۵۱ وروسته.

(۲) دا د بیهقي کبچي او د منهاج سراج کوچي او د عربو قفص او د شهنامې د ملحقاتو کوچ او د ارمني مؤرخ موسس کلن کتوتس: ګن چك هفتالیت او اوسنی کوچي دی. دا کلمه ډېره زړه ده، ۲۵۰۰ کاله دمخه د فرس قدیم په مېخي ډبرلیکو کې اکوپاچیه Akoupaciya راغلې ده، چې په اکادي ژبه Aku- pi- i- is وه او معنا یې کوه نشین ـ کوهزادـ غرزی ده (اولډ پرشن ۱۶۵ سبك شناسي ۲ـ ۶۷) له دې څخه ښکاري چې د آریایي هونانو تر اختلاط دمخه هم دغه غلجي کوچیان موجود وو.

(۳) مفاتیح العلوم ص ۷۲.

(۴) تاریخ یمیني ص ۲۶

(۵) الکامل ۸ـ۳۴۸.

(۶) د مینارسکي حواشي پر حدود العالم ص ۳۴۸.

هفتالیانو او زابلي پاچاهانو سره نژدېوالی لري؛ ځکه چې دغه هفتالیان هم په دغه زابلستان کې چې اوس غلجي اوسي پاچاهان وو او پر سکوچي د دوی د پاچاهانو شکلونه کښل شوي دي. هم کټ مټ ددغو اوسنیو غلجیانو کړه وړه ته ورته دي. جګې پزې. غټې سترګې، ګڼ وېښتان. قوي بدنونه یې عیناً د غلجیو دي.

نو خلج یا غلجي د هغو تورکانو او غزانو له نسله نه دي، چې په غزنوي دوره کې او بیا د سلجوقیانو په زمانو کې افغانستان ته راغلي وو؛ بلکې تر اسلام دمخه چې کوم هفتالي آریایي اقوام په تخارستان او زابلستان کې وو، زموږ غلجیان به د هغو سره ګډ شوي وي او ددې غلجو حملې پر هند د هفتالیو سره شروع شوې او تر (۸۰۰ هـ) پورې دوام لري، چې د دوی غټې شاهنشاهۍ هم په هند کې وې او اسلام یې تر بنګاله خپور کړی و او د دوی له نومو سره د خان لقب هم د هون د کلمې اوښتی شکل دی؛ ځکه چې (هـ) په خ) اوړي لکه قدیم هوارزم، اوسنی خوارزم. د تور کوهانم او زموږ خانم.

ددې خبرې لپاره هم موږ تاریخي سندونه لرو:

مثلاً د تورکو معروف لغوي محمود کاشغري (۴۶۶ هـ) لیکي: او تورکان ۲۲ قبیلې دي مګر د خلجیانو دوې قبیلې په دوی کې خانونه نه شمېري او بېلې دي[1] او دغه مؤرخ د تورکانو په قبایلو کې د خلج یا خلجیانو ذکر کورټ نه کوي او ځکه چې دی پخپله تورك او په ژبو او عنعناتو یې پوه و؛ نو دده قول په دې بابت کې مستند او قدیمتر دی.

بل دا چې: محمد بن نجیب بکران (د ۶۰۰ هـ حدود) داسې لیکي:

---

[1] د یوان لغات الترك ۳_۳۰۷.

خلـخ قـومی از ترکـان از حـدود خلـخ بحـدود زابلسـتان افتادنـد، و در نـواحی غـزنین صحرایسـت آنجـام مقـام کردنـد. پس بسبب گرمی هـوا، لـون ایشـان متغیـر گشـت و بسـیاهی مایـل شـد، و زبـان نیـز تغییـر پـذیرفت و لغتـی دیگـر گشـت، و خلـخ را مردمان به تصحیف خلج خوانند[1].

لـه دې څخـه ښـه ښکـاري، چـې دغـه خلجيـان لـه تـورکي قبـايلو څخـه پـه دې وخـت کـې بېـل وو او د خلـخ او خلـج تـر مـنځ التبـاس او تصحيف موجود و.

منهاج سراج هـم پـه طبقات ناصري کـې د خپـل عهـد ډېـر ملوك پـه هنـد کـې ښيـي: خـو هغـه چـې تورکـان دي، هغـه تـرك بـولي او هغـه چـې خلجيـان دي، خلجـي يـې بـولي، چـې د غـور لـه ګرمسـيره هلتـه تللي او پادشاهي يـې جـوړې کـړې وې، لکـه ملـك خـان خلـج، محمـد بختيـار خلجـی، محمـد شـېران خلجـی، علـي مـردان خلجـی، حسـام الـدين عـوض حسـين خلجـی. غيـاث الـدين خلجی[2] او ډېر نور خلجي مشاهير چې له ترکانو بېل وو.

حتـی ضيـاء برنـي د هنـد مـوَرخ (د ۷۵۸ هـ حـدود) پـه خپـل تـاريخ فېـروز شـاهي کـې يـو خـاص فصـل لـري، چـې بايـد شـاهي د تورکـانو وي: خـو هغـه وخـت چـې ملـك جـلال الـدين خلجـي د دهلـي پـر تخـت کښېناسـت: نـو دی ليکـي، چـې خلـك ډېـر متـاثره وو، چـې څنګـه يـو خلجـي د تورکـانو پـر تخـت کښېناسـتلای شـي؟ دلتـه داسې ليکي:

((ملك خلجيان شهريان را بغايت دشوار نمود))[3].

---

[1] جهان نامه، ورق ۱۷. خطي د مينارسکي په حواله.

[2] طبقات ناصري ۱_۴۹۵ څخه وروسته.

[3] تاريخ فېروز شاهي د برني. ص ۱۷۳

له دغې خبرې څخه هم دا ښکاري، چې خلجیان تورکان نه وو، که نه وي نو ولې به خلکو د ترکانو د تخت و تاج پر ضیاع افسوس کاوه[1] بلکې دغه خلجیان چې په هند کې د مدنیت او سلطنت یو ښکلی اثر برېښي دي. په اصل او نسب د افغانستان څخه وو[2].

بارتولد وایي، چې: له څلرمې هجري پېړۍ څخه موږ خلجیان د افغانستان په جنوب کې د سیستان او هند تر منځ وینو او دوی د هغو ترکانو پښتانه شوي بقایا دي، چې د اصطخري په قول په قدیمو زمانو کې دلته راغلي وو او دغه اوسني پښتانه غلجي چې د ترنك او ارغنداو په لوړه وادي کې اوسي، هم له دغه نسله دي (اسلامي دائرة المعارف ۲_۸۷۶).

زما په عقیده دغه تورکان بلل شوي اقوام چې په قدیمو زمانو کې زابل ته راغلي وو، هغه هفتالیان وو، چې یو نیم زر کاله دمخه له پښتنو کوچیانو سره ګډ او دلته د پښتنو د اکثریت په سبب بالکل پښتانه شوي وو او کوم وخت چې دوی په هند کې سلطنتونه جوړ کړل، بالکل پښتانه وو او پښتنو دوی دغه خپل غلجي ګڼل. مثلاً خوشحال خان ختك سلطان جلال الدین خلجی (۶۸۹_ ۶۹۵ هـ) په صراحت سره غلجی ګڼي او وایي:

بیا سلطان جلال الدین پر سریر کښېناست
چې په اصل کې غـــــلجی د ولایت و

(کلیات ص ۶۶۹ د قندهار طبع)

---

[1] خلجیان تورکان نه وو، ددې تفصیل وګورئ د هند د تاریخ د ګانګري رویداد ۱۹۳۹.

[2] تذکره بهادران اسلام ۲_۳۳۱.

# تورک که تورکښ؟

دلته باید دا نکته هم تصریح شي، چې دغه هفتالي (ابدالي) سپین اریایي قبایل د تخارستان له خوا پر کابل و زابل راغله؛ نو دوی د خپلو نورو آریایي ورونو سره چې د ویدي زمانو څخه دلته د پکهت (پښت ـ پښتون) په نامه اوسېدل او خپله ژبه او دودونه یې لرل ګډ شول، د دوی مشتران کشتریه = خشتریه = کښتور او د پیر روښان د خیرالبیان په تعبیر تورکښ بلل کېده (اوس په پښتو دا نوم تورباس یعني شمشېر باز دی) او موږ ددې کلمې قدامت ته دمخه اشاره وکړه، چې لومړی جز (توره) د ډېرو تاریخي نومو په سر کې شته، اما دوهم جز (کښ) د پښتو (ښ) ږغ درلود، چې ددې خاص ږغ د تعبیر لپاره هندیانو او یونانیانو خاص ږغونه استعمال کړه، مثلاً پښت په ویدا کې پکهت[1] شو، او (ښ) په (که) ښکاره کړ شو او دغه (ښ) لکه د ننګرهار په لهجه په اوستا کې (خ) شوه، چې په بخد او بخدي[2] کې شته او د یونان هیرودوت (۴۸۴، ۴۲۵ ق، م) دغه نوم پکتویس PAKTVES ولوست[3].

دغه دتورکښ کلمه پخوا (کښ توری = کشتریه) وه، چې جنګي خلکو او مشرانو ته ویل کېده او د هند دخلکو په کاستي په وېشلو کې هم عسکري طبقه (کشتریه) وه، ددې کلمې پښتو بل شکل (تورکښ دی) او څکه چې د (کښ) تعبیر په بله ژبه او خط مشکل و؛ نو له قدیمي زماني څخه دغه (تورکښ) د

---

[1] ویدا، ج ۲ ص ۱۷، بند ۱۸ فرد ۶، ۷.

[2] وندیداد، لومړی فرګرد.

[3] د ایران تاریخي جغرافیا ۷۴۰ تاریخ ادبیات پښتو ج ۱، ص ۲۶.

مشرقي پښتو پر لهجه برابر چې هند ته نژدې وه، (توروښکه = له وښکل مصدره څخه) رواج شوه. مثلاً په اوهند (هنډ) کې د اباسین پر غاړه یوه کتیبه په سنسکریت پیدا شوې وه، چې د غښتلو غوښو خورو حمله کوونکي ذکر د تورشکه TURSHCAS په نامه په کې شوی دی.

دا کتیبه په ۸/۷ مسیحي قرن اړه لري او سري تلکه TILLAKA کښلې ده[1] دلته د پښتو (ښ) په (SHE) ښکاره شوی دی.

او بیا د راجه ترنګیني د کشمیر تاریخ چې کلهڼه په (۱۱۴۸م ۵۴۳هـ) تالیف کړی دی، دی هم مکراراً للیه شاهان دردرد او توروشکه په منځ کې بولي (ترنګ ۵ ـ شلوک ۱۵۲) او وایي چې توروشکه TURUSKA به تل خپله وسله پر شا تړلې وه او نیم سر به یې خرېیلی و او پر کشمیر به یې حملې کولې (ترنګ ۴، شلوک ۱۷۹) او د دوی پاچا هرشه د کشمیر ټول معابد او بتخانې ونړولې (ترنګ ۷ـ شلوک ۱۰۹۵) سر اورل ستاین د راجه ترنګیني انګلیسي مترجم هم دغه توروشکه په (ترک) ترجمه کړی دی. او داسې ښکاري، چې دا التباس قدیم دی او پښتو توروښکه (توربـاس) او د خیرالبیان تورکښ د (تورك) له کلمې سره د نژدېوالي په سبب یو ګڼل شوې دي.

او څکه چې د کشتریه = خشتریه کلمات په ویدي او فرس قدیم او پخوانو نومو کې ریښه لري او عمر یې تر ۳۰۰۰ کاله پورې رسېږي او د پدشاه، کشور، شهر، شار، ښهر کلمات ټول له دغه څخه راوتلي دي؛ نو سړی دا هم ویلای شي، چې د (تورك) کلمه به هم دغه ریښه لري؛ څکه چې تورکان هم له دغو

[1] کابل د سرالکسندر برنس ۱۲۰

مځکو څخه خپاره شوي وو.

دلته دا خبره مه هېروئ چې د دغو پښتنو هفتالیو (ابدالیو) ژبه هم نه تورکي وه او نه هندي. کننګهم انګلیسي محقق وايي: په اوومه مسیحي پېړۍ کې چې هیون تسنګ چیني زائر له ۲۰ جون تر ۲۵ جون (۶۴۴ م) د اپوکین (افغان) او غزني ولایتونه د هند تر اوږده سفر وروسته وکتل، دی وايي چې د دغو خلکو ژبه او رسم الخط له نورو مملکتو سره اختلاف لري؛ خو لږ څه هندي ته ورته وه؛ ځکه چې هیون تسنګ په هندي ا تورکي ژبو پوره پوهېده؛ نو که د اپوکین (افغان) ژبه هندي یا تورکي وای، ضرور به ده ویلي وای. له دې جهته باید ووایو، چې د دغه ځای ژبه نه هندي او نه تورکي؛ بلکې پښتو وه، چې له هندي ژبو سره لږ مشابهت لري[1].

له دغو ټولو تاریخي اسنادو څخه دا ثابتېږي چې خلجیان پښتانه وو او دغه اوسني د غزني د غرو لو رغو غلجیان دي، چې د جهان نامې د مؤلف په قول یې ژبه هم بیله وه او هغه نو دغه پښتو وه، چې تر اوسه هم د ټولو غلجو ژبه ده او د کرامات په دغه حکایت کې هم "لسان خلجیه" بلله شوې ده او د دغه لویك ژبه هم پښتو وه؛ ځکه چې دغه بیت پښتو دی او وروسته به یې تاسې ولولئ:

## ۱۵ـ هندوان ساه؟

دا کلمه هندوان شاه ده، په پهلوي او قدیم فارسي ادب کې هندوان، هند ته ویل کېده[2] د شاهنامې په ملحقاتو کې چې د زابلي افغانانو او د دوی د مشر کك کوهزاد کیسه راغلې ده

[1] د هند پخواني جغرافیا ص ۸۹/۴۱.

[2] سبك شناسي ۲ـ۲۷.

داسې وايي:

که نزدیک زابل بسه روزه راه
یکی کوه بد سر کشیده بماه
بیکسوی او دشت خرگاه بود
د گردشت زی هندوان راه بود
نشسته در ان دشت بسیار کوچ
ز افغان ولاچین و کرد و بلوچ[1]

دلته مقصد دغه د ارگون او وازې خوا لوی دښت دی، چې د هند و خوا ته یې د گومل او کرم له درو څخه لارې وې او کوچ هم هغه کیچي او کبجینه دي، چې تر اوسه هم غلجیان کوچي بلل کېږي او د دوی کیږدۍ (خرگاه) له دغه دښته د اباسین غاړو ته کوچ کوي.



ابو منصور موفق بن علي هروي (د ۴۳۰ هـ) په حدودو کې وايي:
"و آن دیگر داروها کی به هندوان موجود است ازین دیگر اقلیمها نیابند"[2]

۱۶_ نیسه؟

دا کلمه نبسه ده، چې اوس یې په فارسي نواسه او په پښتو لسمی، نمسی بولي. بیهقي ددغې کلمې مفرد نبسه او جمع یې نبسگان راوړی دی[3] د یوه زاړه تفسیر په خطي نسخه کې چې په کمبرج کې ده[4]، هم نبسه راغلې ده: واورا فرزند دادیم و

[1] د شاهنامې ملحقات ج ۵ ص ۳۳.
[2] الابنیه عن حقایق الادویه ص ۱.
[3] تاریخ بیهقي ص ۲۲۱، ۶۷۳.
[4] آر: شته.

نبسه بر سر (ورق ۳۴ ب) فخر مدبر مبارکشاه لیکي: ((سند نبال نبسه شاه کابل از پایان هندوستان باز آمده)) بود[۱].

امیر خسرو وایي:

صفت ذات او همین نه بس است
که رسول خدای را نبس است

څکه چې افلح د ګردېزي په سند د خاقان (خانان) لسمی و: نو دا کلمه حتماً نبسه ده او د اصل (نبیسه) معنی نه لري او د بیهقي له استعماله هم ښکاري چې په غزني کې مروجه وه.

۱۷ ـ بشانی بنست؟

دا جمله غالباً داسې وه؟ بشاهی بنشست، یعنې پر پادشاهي کښېناست او پادشاهي په پهلوي او لومړنۍ فارسي کې د سلطنت او مملکت په معنا هم وه[۲] وروستني کلمات داسې دي:

((بتخانه لویک بر کندو مزګت بکرد)) یعنې د لویک بتخانه یې ورانه کړه او پر ځای یې مسجد جوړ کړ.



۱۸ ـ سلطان سخي سرور:

دا سړی د هند او پنجاب په مځکو کې ډېر شهرت لري او د مشهورو اولیاوو په ډله کې شمېرل کېږي. مفتي غلام سرور لاهوري لیکي، چې: دده نوم سید احمد او مشهور په سخي سرور سلطان و؛ د ملتان له اولیاوو څخه دی، چې خلك یې "لکه داتا" بولي، او نسب یې حضرت علي ته رسېږي. د پلار نوم یې سید زین العابدین و، چې د ملتان په کرسي کوټ کې ساکن و او د عایشې کهوکهرې سره یې واده وکړ او سید احمد او عبد الغني دوه زامن څنې پیدا شول. دغه سید احمد په بغداد

(۱) آداب الحرب والشجاعه ص ۲۸.
(۲) سبك شناسي ۱ ـ ۴۲۹

کې د عبدالقادر جیلاني او شهاب الدین سهروردي حضور ته ورسېد او بیا یې په لاهور کې له محمد اسحاق لاهوري څخه علوم ولوستل. وروسته مفتي لاهوري دده کرامات شمېري او د شهادت تاریخ یې د شاه کوټ د غره سره چې اوس یې مزار هم هلته دی په (۵۷۷ هـ) کښي[۱].

دا سید احمد د خپل روحاني سطوت او شکوه له رویه په سلطان مشهور شوی و. دی پس له شیخ هجویري د هند په خاوره کې د اسلام خورا لوی مبلغ دی، حتی چې د هندوانو ډېر قبایل په جالندهر کې خپل ځانونه تر اوسه هم سلطاني او ده ته منسوب بولي[۲].

او په میلادي پنځلسم او شپاړسم قرن کې دغه سلطاني فرقه ډېره مشهوره وه او د پنجاب جاټ سلطاني وه، چې دوی به د فرورۍ په منځ کې د سخي سرور زیارت له ډېره غازي خان ته تله؛ خو د سکهانو د حکومت په وختو کې دیوان ساون مل د ملتان حاکم دوی منع کړل.

تر نولمسې پېړۍ پورې چې د لودهاني او جالندهر ګزیټرونه لیکل کېده، دغه سلطاني هنود موجود وو[۳].

دا سخي سرور چې د حضرت عبدالقادر جیلاني (۴۷۰_۵۶۱) او د شیخ شهاب الدین سهروردي (۵۳۹_۶۳۲ هـ) معاصر بلل شوی دی، په هغو مځکو کې چې د افغانستان د خلکو د تګ او راتګ لارې وې، یعني په ملتان او

---

[۱] خزینة الاصفیاء ۲_۲۴۸. دده مزار د بابر په وختو کې هم مشهور و او بابر یې پخپل تزک کې ذکر کوي.
[۲] د جالندهر ګزیټر، ص ۱۲۱
[۳] آب کوثر، ص ۹۱ څخه وروسته

د پره غازي خان کې اوسېږ: نو ځکه پښتانه هم دده مریدان وو او ښایي چې دی پخپله هم د لوست لپاره غزنې ته راغلی وي؛ ځکه چې دغه وخت د غزنویانو دوره وه او غزنی د علم او ثقافت او تصوف مرکز و.

د کرامات ددغې ناصې نسخې څخه ښکاري، چې دغه کتاب خاص دده پر کراماتو لیکل شوی و او ټول حکایات یې هم دده په خوارقو اړه لري. چې یو مثال یې دغه موجوده حکایت او د غزنې په مسجد کې د لویك د بت کشفول او له محکې څخه را اېستل دي.

۱۹ـ باین مرلت؟

دا کلمه هم یقیناً مزګت ده، مرلت معنی نه لري.

۲۰ـ کشف سدس: دا کلمه شدش ده یعنې ده ته کشف شوه.

۲۱ـ درمالوت؟ صحیح یې در تابوت ده.

۲۲ـ از شهر غزنه برجاست؟ برجاست دلته معنی نه ورکوي دا کلمه برخاست ده.

اوس دا حکالت په صحیح ډول په اوسنی املا ولولئ:

((ابو حامد الزاولی را درتاریخ غزنه، از حسن صغاني روایت است که در بلدۀ غزنه بر درب بامیان مسجدیست عظیم، که آنرا مزګت افلخ (افلح؟) لویک خواندندی، و این بتخانۀ عظیم بود که وجویر لویک بر خدمت رتبیل کابلشاه کرده بود چون پسرش خانان (خاقان؟) به مسلمی آمد صنم لویک را نیارست شکستن، آنرا در ان مزګت بزمین اندر کرد، و بتابوت سیمینه در نهاد.

کابلان شاه خنچل این بیت فرستاد بلسان خلجیه که لویک گفت (صورت صحیح بیت بعداً می آید) خانان (خاقان؟)

بازبکیش هندوان شاه شد و چون نبسهٔ او افلخ (افلح؟) بشاهی بنشست، بتخانهٔ لویک بر کند و مزگت بکرد. چنین روایت کنند: چون سلطان سخی سرور باین مزگت شد گفت:

بوی صنم شنوم نیک دید و کشف شدش زمین بر افت و صنم لویک بر کشید در تابوت سیمینه نهاده. آنرا بکشست وسیم را (به) بنای مسجد داد، و بکرامت آن ولی الله، بوی کفر و هند ویی از شهر غزنه برخاست))

(ورقه ۱۵ خطی)

## د خلجي ژبې (پښتو) بیت

اوس به دغه د لسان خلجیه د بیت الفاظو ته ځیر شو، گومان کوم چې دا پښتو دې داسې وي (د کتاب اصلي غلطه املا دمخه تېره شوه)

په زمـــي گز نه ښخېد لویك لویانو بویله لویا
کښه تور به براغلوم (بلوم؟) مملە تېزیو په ملا

ددې بیت هره مسری پینځلس هجاوې لري:

د کتاب د ۶۳ مخ د جدول انځور

په اوسنی املا داسې کېږي:

په زمـــي غزنه ښخېد لویك لویانو بایله لویا
کښه تـور به براغلو (بلوم؟) مملە تاریو په ملا

# د کلماتو تحلیل

**۱ـ زمی:**

دغه اوسنی ځمکه او د فارسي زمین ده، دا کلمه عیناً په فارسي پخواني ادب کې په دغه شکل شته. فخر الدین گرگانی (۴۴۶هـ) وايي:

چو این مایه نبودی رتسنی را
نبودی جانور روی زمی را[۱]

نظامي وايي:

اساسیکه در آسمان و زمی است
بـــاندازه قدرت ادمی است



اسدي طوسي (متوفی ۴۶۵ هـ) وايي:

زمـــین جای آرام هر آدمی است
همان خانهٔ کردگار از زمی است[۲]

په اوستا کې زم (مځکه) او په پهلوي زمیك د اسمان په مقابل کې وه[۳] او زمیاد د ځمکې د ودانۍ فرشته وه[۴] داسې ښکاري چې زمي پخوا په پښتو کې د اول حرف په سکون وه، چې وروسته زمکه یا مځکه د پهلوي زمیك ته نژدې ځنې جوړه شوه.

[۱] ویس ورامین ۳.
[۲] فرهنگ دهخدا. ص ۶۶.
[۳] پشتها ۸، ۱۳، ۹۵.
[۴] مزد یسنا و تاثیر آن در ادب فارسی ۴۳۲

**۲_ گزنه:**

په اصل کې (کزن) ده، چې د (گزن) او گزنه = غزنه ناقصه املا ده، دا کلمه په سغدي ژبه (گزنک) او د ماني په کتابو کې گزن او معنی یې خزان ده[۱] او په سنسکریت کې جگن یا کجن وه چې عربو دغه کلمه معربه کړه ابو منصور موهوب بن احمد بن محمد الخضر جوالیقي (۴۶۵_۵۴۰ هـ) لیکي. الکنز: فارسي معرب و اسمه بالعربیه مفتح (المعرب من الکلام العجمی، دارالکتب مصریه (۱۳۶) نو د عربي کنز د فارسي گنج معرب دی (سواء السبیل الی معرفة المعرب والدخیل، طبع لاهور (۱۹۰۳ ع) چې قدیم شکل یې گزنه = گنزه_ غزنه و او په فارسي کې د مرغوزن (گورستان) یا مرغزن په کلماتو کې پاتې ده، مرغوزن یا مرغزن (مر + غزن = خزانه مردگان = گورستان) په هراتي فارسي کې وه[۲].

امامي هروي وایي:

آن جهانداری که گشت اندر نبرد
مرغزار از زخم تیرش مرغزن

منوچهري وایي:

وقت صلحش کس نداند مرغزن از مرغزار
وقت خشمش کس نداند مرغزار از مرغزن[۳]

نو گزن = غزن، مجمع او مخزن ته وایي، چې د غزنه قدیم نوم گزنه په پښتو کې و او غزنه یې وروستنی لغوي تحول دی او

---

[۱] د پروفیسر بن و نیست په حواله.
[۲] طبقات الصوفیه ۲۱۳ خطي.
[۳] دیوان منو چهري ۶۶.

هیون تسنگ هم دغه نوم (هو ـ سي ـ نه) ضبط کړی دی[1] او داسې ښکاري چې (گه ـ زه ـ نه) هم درې هجایي تلفظ لاره.

موږ ته د طبقات ناصري او د مسعود سعد سلمان محبوس شاعر له اشعارو دا ښکاري چې په غزنوي دوره کې ځینې د غرو کلاوې موجودې وې چې هلته به شاهانو خپلې خزانې خوندي کولې یا به محبسونه وو؛ ځکه چې د غزني کلا هم لوړه او خورا ټینګه وه؛ نو د گزن (خزانې) لپاره استعمالېده، کننگهم وایي چې په اوومه مسیحي پېړۍ کې د هیون تسنگ په قول غزني ډېره ترقي درلوده او محیط یې ۳۰ لي و (۵ میل) او نوم یې له GAZA څخه جوړ شوی دی، چې معنا یې خزانه ده، دا ښار د نانوس (۵۰۰ م حدود) او د یونیسیوس (۳۰۰ م حدود) په قول ډېر ټینګ او جګ او د تسخیر ناوړه ښار و[2].



## ۳ـ سعید لویک؟

دا کلمه هم د لویك پت د ښخولو او مځکې کینلو په قرینه چې په دې حکایت کې ذکر شوی دی، د پښتو (ښخېد) ده، له ښخ او ښخول څخه چې د مفرد غایب صیغه ښکاري او اوس موږ وایو (ښخ شو) گومان کوم چې د (ښخېدل) مصدر پخوا پخپله مستقیم مشتقات درلوده او (ښخ کېدل) د ژبې د وروستني فتور نخښه ده او د صیغې اخیر (ید) د فارسي له هروي لهجې سره ډېر نژدې دی چې پخوا د مفرد غایب لپاره راته.

مثلاً: وی نان خوردید (وی نان خورد) احمد استاد محمود

---

[1] د هیون تسنگ سفرنامه ۱۲ باب.
[2] د هند پخوانی جغرافیا ص ۴۲.

اید (احمد استاد محمود است) نو ښخېد لویك هم دغه معنی لري: ښخ شو لویك د خواجه عبدالله انصاري په طبقات الصوفیه کې چې په هروي لهجه دی، ډېر داسې د مفرد غایب صیغې شته[1].

**۴_ لوی انو:**

په اوسنی املا (لویانو) ده، له دې څخه هم ښکاري، چې د (لویك) ریښه هم لوی وه او پښتنو دوی (لویان) هم بلل. دا کلمه اوس هم شته، مثلاً: د کلي مشران او لویان سره راغونډ شول. کریمداد وایي:

پر غــــریبو چې تېری کا لوی دې نه شي هسې لوی

**۵_ بویلا:**

دا هم د اوسني (بایله) قدیم تلفظ دی، بایلل او بویلل (باختن) په یوه معنا وه، تر اوسه هم د غرو پښتانه (بویلا) وایي (باخت) او دا د پښتو د لهجو اختلاف دی، چې د ډېرو تورو په ویلو کې لري او لکه چې ما دمخه وویل، په قدیمو ښنانو کې د مسیدو او وزیرستان او اپریدو د لهجو او ادا ډېر آثار ښکاري بویلا (بایلووله، بایلو، بایله) ماضي صیغه ده، چې په فارسي (باخت) ورته وایي.

**۶_ لویا:**

اوسنی لویي د هغه لوی ریښې څخه پر قدیم ډول اسم حالت دی. پخوا داسې کلمات ډېر وو: خو اوس خورا لږ دي مثلاً اوس

[1] د طبقات الصوفیه فرهنگ د حبیبي لیك.

موږ خندا، ژړا، ږړا، نڅا وایو؛ خو خغلا، شنیا، خلا، زرغا، زلما، ښکلا، ملا نه وایو. حال دا چې دغسې ډېر کلمات په پخوانی پښتو کې وو او په پخوانو اشعارو کې مستعمل دي[1] وګوری په لومړی مسری کې لویان. لویا دواړه له یوې رېښې دي او دا ثابتوي چې د (لویك) لقب هم له دغې رېښې څخه راوتلی دی.

## ۷_کسه تر؟

دا کلمه کښه تر او کښه تور وه. لومړی توته یې کښه له کښل څخه ده او دوهمه کلمه (توره) ده، چې په ترکیب کې (هـ) خذفېږي؛ لکه تورن. توريالی.

د (تورې) کلمه په قدیمو علامو کې خورا ټینګه ریښه لري؛ لکه دمخه ذکر شوې (توراماڼا = تورمن) او تروجن پال (تورجن پالونکی) او کشتریه چې په سنسکریت او زړه پارسي او سغدي او اوستا ګې عموماً د پاچا او حکمران او جنګي او توريالي په معناوو وه او د شاه او شار او کشور کلمې هم له دغې څخه راوتلې دي او د پیر روښان په خیرالبیان کې (تورکښ) راغلې ده[2].

سر الکسندر برنس تر ۱۸۳۶ع کال دمخه د باسین په هند (پخواني وهند) کې پر سنګ مرمر یوه سنسکریت کتیبه موندلې وه. چې د میلاد په ۷_۸ پېړی کې کښلې شوې وه، پر دې ډېره لیکلې وو. چې یو غوښې خوړونکی قوم تورشکه

---

[1] پټه خزانه. ص ۲۳۴. ۲۳۹.

[2] شرح یې وګوری د پښتو ادبیاتو تاریخ او د خیرالبیان په خطي نسخه کې دا کلمه مکرره راغلې ده.

TURSHCAS (تـورکښ) پــر دې ســیمه مســلط وه. دا لیــک یــوه بــرهمن SERI TILLAKA ســري تلکــه کښلــی دی[1] او داســې ښکــاري، چــې دا غــوښې خــوړونکي تورکښــان هغــه هفتالیــان (ابــدالیان) وو او دوی یــې د دلاورۍ او توریــالي تــوب پــه سبب تورښك تـر = کښـه تـور بللـه. چې پـه دې پښتـو بیت کې کټ مټ دغه کلمه راغلې ده.

کشـتریه او کـښ تـور د لښکـر او عسـکر پـه معنـا لـه قدیمـه پـه پښتـو ادب کـې موجـود وو او دلتـه هـم پـه دوهمـه مسرۍ کـې دغـه پښتـو کښـه = کښـه تـور دی، چـې مقصـد ځنې فـوج او عسـکر دي. او لکه چې تاسو ولوستل دغه کلمه پـه هندي هفتـالي منـابعو کـې توروښکه ده، چې دغه شکل او معنا لري.

## ۸ـ بېراغلوم:

دا کلمـه غالبـاً (بـه براغلـوم) ده، چـې د بیـت د هجـایي وزن پـه تجزیـه کـې (بـرا ـ غـل ـ وم) ویلـه کېږي او بایـد مصـدر یـې براغلـول یـا برغلـل وي. لـه موقعـه داسـې ښکـاري، چـې براغلـول بـه د فارسـي لـه (آغـال او بـر آغالیـدن) سـره یـوه ریښـه لـري. اسـدي طوسي لیکـي: ((آغـال چنـان باشـد کـه کسـی را بـر کسـی طیره کنند تـا تنـد شـود، آن فعـل را آغـالش خواننـد و سـگ را کـه بـر مـردم جهانند، بر آغالیدن گویند. فرالا وی گفت:

من ز آغالشت نترسم هیچ
ور بمن شـیر را بر آغالی[2]

[1] ددې کتیبې انګرېزي ترجمه وګورئ کابل د لیدن طبع ۱۸۴۳ ص ۱۲۰ـ۱۲۱ چې اصلي ډبرلیك برنس د ایشتاتك سوسایټی. د کلکتې موزیم ته وړی و
[2] لغت فرس ۳۲۵.

دا مصدر په فارسي کې برغلانیدن او ورغلانیدن هم راغلی دی چې اوس یې په پښتو شکارل بولي او په فارسي یې "کسی را بر جنگ تیز گردن" معنا لیکلې ده[۱] بیهقي لیکي:

((اندیشید این پادشاه که ما بترسیدیم و بگریختیم و دم ما بگیرد، و بنامه ولایت داران را بر ما بر آغالانیدن گیر دوناچار دوست بر ما دشمن شود)) بل ځای وایي. که بنده بورتگین را برین قوم آغالید و او بخواهد آمد.[۲]

نو په دې پښتو مسرۍ کې هم کښنه تور به براغلوم داسې معنا کوي: عسکر به وګومارم او فوج به پاڅوم، یعنې زه به ستا په مرسته خپل لښکر درولېږم.

په پټه خزانه کې د امیر کروړ یو شعر دی، چې په هغه کې ((په ژوبله یو نم یرغالم پر تښتېدونو باندې)) راغلی دی[۳] هلته ما دا کلمه یرغالم لوستې وه؛ ځکه چې د خوشال خان او نورو متوسطینو په اشعارو کې یرغل او یرغال هم د حملې په مفهوم موجود وو: مګر ښایي چې د امیر کروړ دغه یرغالم هم برغالم وي. د برغلل له لازمي مصدره، چې دغه قدیمه رېښه لري.

او امیر کروړ هم ددغو لویکانو د زماني پاچا دی، چې د دوی د سلطنت غربي خوا ته پر غور او زور او بادغیس حکمران و او د ژبې نژدېوالی یې ضروري دی.

## ۹_ بلوم؟

د بیت د هجایي تقطیع څخه باید دا کلمه دوې هجاوې وګڼو

---

[۱] برهان قاطع ج ۱.

[۲] تاریخ بیهقي ۲ ص ۷۵۲، ۸۰۵.

[۳] پټه خزانه ص ۳۳.

(بـه ــ لـوم) مګر مـا چې هـر څـه فکـر او مطالعـه وکـړه. د دغـې کلمـې حـل مـې ونـه مونـد او داسـې کلمـه چـې معنـا یـې لـه موقعـه سـره ونښلـي او منطقـي هـم وي، مـا نـه کـړه پیـدا؛ ځکـه دا کلمـه دغسـې پټه او ناحل شوې پاتې شوه.

**۱۰_ مملا:**

دا کلمـه ظـاهراً نهـي ده (مـه ملـه) یعـنې ملتیـا مـه کـوه: ځکـه چـې وروسـته هـم د بیت پـه پـای کـې (مـلا) راغلـې ده، مـل تـر اوسـه پـه پښتـو، ممـد او معـاون او رفیـق تـه وایـي، ملتیـا، ملتـوب، تعـاون او رفاقـت او همراهـي ده. مـلا پـه پخوانـۍ پښتـو کـې لکـه لویـا د ملتـوب پـه مفهـوم وه، شیـخ اسعد سـوري د پښتـو یـو قـدیم شاعر (۴۲۵ هـ) وایي:

نه به لاس واخلې له ځوره نه به لورې
نه به مـلا کړې له بې وزلو له ترار[۱]

ملکیار غرشین (۵۷۱ هـ) وایي:

غازیانو راشئ تول شاوخوا شئ د شهاب په ملا شئ[۲]

کلـه (ملـی) د پاتېـدو او اقامـت او بـاقي بـودن پـه معنـی هـم راغلی دی.

عبدالقادر خان ختك وایي:

ای یوه خدایه ژر وران د دنیا سرای کړې!
چې اشـــنا عالم ترې ځي، نا اشنا ملی

بل ځای وایي:

ناپوهـان به یې باور په ودانۍ کا

---

۱. پټه خزانه ۴۱، ۲۳۴.
۲. پښتانه شعرا، ۱_۵۶.

چې په طمع د سېلاب د اوبو ملی

یا دا چې وایي:

د دنیا په ســــرای کې مخ و اخرت ته
کاروانو ته ملی لېږدي یو شاپوش دی

نوښایي چې دلته هم (مه مله) یعنې مه پاتېږه، دوام مه کوه وي.

اما د کلمې اخرنی الف د (هـ) پر ځای اوس هم د غلجو او وردګو او اپریدو په لهجو کې شته مه کوا، مه خورا، مه ځا وایي.

## ۱۲_ تیز یو؟

دا کلمه د هجایي تقطیع لپاره (تې_ ز_ یو) باید ولوستله شي، ګومان کوم چې دا هم د پغیزیو توریو د اوښتلو د سیستم په اثر له (تازیو) څخه (تیزیو) شوې ده.

(تازي) له د قدیمه عربي ژبې او عربي قوم ته ویل کېده. په اوسنۍ محاوره باید ووایو (مه مله د تازیو په ملا) یعنې مه خه یا مه پاتېږه د تازیو او عربو په ملګرۍ کې.

څکه چې د غزني لویك خانان، جبراً مسلمان شوي وو؛ نو یو د بل لویك له کابله ده ته په دې بیت کې وکښل، چې: ((های افسوس! لویك بت د غزني په ځمکه کې ښخ شو او لویانو پخپله لویي بایلوده، زه به لښکر درواستوم، ته د تازیانو (عربو) ملګري مه کوه)). تازي چې پښتانه مسید او وزیر به یې حتما (تیزی) وایي. د عربي اقوامو لپاره قدیم نوم دی. چې په پهلوي او فارسي کې هم مستعمل و. فردوسي په شاهنامه کې د عربو او سعد وقاص د حملې پر وخت دغه د مطلق عرب په معنا

استعمالوي مثلاً

نه تخت و نه ديهيم بيني نه شهر
کز اختر همه تازيان راست بهر:
از ايرانيان و از ترک و ز تازيان
نژادی پديد آيد اندر ميان
نه دهقان، نه ترک و نه تازی بود
سخنها بکردار بازی بود

بيا وروسته تازي عربي ژبه هم بولي:

بتازی يکی نامه پاسخ نوشت
پديد آوريد اندر و خوب و زشت[1]

اکثر محققان وايي، چې دغه تازي نوم له (طايي) څخه اخيست شوی دی؛ ځکه چې د بنوطي قبيله ايرانيانو ته خورا نژدې او ورځرمه عربي قبيله وه؛ نو ټول عرب يې په دغه نامه وبلل[2].

دا چې يو ملت د يوې قبيلې په نامه وبلل شي، په تاريخ کې نور مثالونه هم لري لکه يونان د يوې قبيلې يونيا په نامه. يا فرس (د عربو ايران) د پرسه قبيلې په نامه، چې يونانيانو (پرسيا) وبلله او بيا (پرشيا) شوه[3] او بل مثال يې دادی. چې په دغه حکايت کې د پښتنو ژبه يوازې د غلجو په نامه "لسان خلجيه" بلله شوې ده او دا د کل تسميه په جزو سره ګڼله شي.

مګر دا تازي نوم د عربو لپاره ډېر قديم دی، حتی چينيانو هم د تانګ د کورنۍ په سلطنت کې (۶۱۸ـ۹۰۷ م) په خپلو

---

[1] شاهنامه فردوسي ج ۵ ص ۳۰۲ څخه وروسته.
[2] بارتولډ په اسلامي دايرة المعارف کې ج ۲ د تاجيک ماده.
[3] د شاهنامې فرهنګ. ص ۸۴.

کتابو کې دا نوم TA- SHI ذکر کړی دی چې په (۹۶۰ هـ) د تاشي TA- SHI امیر المؤمنین له خوا شل ډلې سفیران د چین د سنګ SUNG شاهانو ته راغلل او د لیوشي LAIO- SHI چین امپراطور حضور ته هم یو تاشي (تازي) سفیر راغی[1].

# نتایج

ددې مبحث او لساني او تاریخي نتایج دادي:

۱ـ لویکان یوه شاهي کورنۍ وه، په زابلستان او غزني کې، چې د کابل شاهانو سره یې خپلوي لرله. د دوی نوم له پښتو (لوی) څخه جوړ شوی و او ژبه یې پښتو وه او قدیمتر لویک وجویر (هجویر) نومېده د (۱۲۰ هـ) حدود.

۲ـ دغه یو بیت د لویکانو د ژبې نمونه پاتې ده.



۳ـ د دوی د ژبې لهجوي سیستم د وردګو او مسېدو او وزیرو اوسنۍ ادا ته ورته و.

۴ـ دوی بتان درلوده؛ خو وروسته مسلمانان شول.

۵ـ د دوی جګړې له صفاریانو او غزنویانو سره څو قرنه جاري وې.

۶ـ د دوی نژادي تقارب له غلجیانو (خلجیانو) سره ښکاري؛ ځکه چې ژبه یې (لسان خلجیه) بلل شوې ده.

۷ـ د غزني قدیم نوم (ګزنه) لکه په سغدي او فارسي کې چې ریښې لري، په پښتو کې هم (ګزنه) و.

۸ـ د پښتو د یوه قدیم نظم ویونکی لویك، چې د خانان لویك او خنچل کابلشاه معاصر و، په ۱۶۳ هـ) کې به ژوندی و؛

---

[1] په چیني کتابو کې د ایشیا حال، د دوکتور بریتنزمیندیر تالیف د لیدن طبع، ج ۱ ص ۲۶۶.

نو دی هم لکه امیر کروړ د پښتو قدیم شاعر او د هغه معاصر و.

۹_ د لویکانو کورنۍ د سبکتکین په لاس ختمه شوه (۳۶۵ هـ).

۱۰_ پښتو په دغو اوقاتو (د ۲۰۰ هـ حدود) په شرقي خوا کې پهلوي ته نژدې وه، چې په دې بیت کې د زمي، ګزنه او براغلوم او تازي کلمات له سغدي او پهلوي او فارسي سره نژدېوالی او اشتراك لري؛ خو په دغه عصر کې چې د امیر کروړ شعر هم موجود دی او وروسته به یې تفصیل راشي، له دغو اغېزو څخه سپېڅلی دی؛ نو داسې ښکاري، چې د امیر کروړ ژبه په غرو کې له دغو اغېزو څخه لېرې پاتې وه. د زابل او غزني پر خواوو، د ساساني دورې ثقافت او ژبې اثرونه کړي وو.

ځکه چې دا غرونه او رغونه د هند د برعظیم سیاسي او تجارتي لاره وه او د عربو او ایران او ماوراء النهر د خلکو تګ او راتګ د پر و؛ نو د دوی ثقافتي او ژبني اثرونه هم یوه طبیعي خبره وه.



۱۱_ په مسیحي لومړیو پېړیو کې چې سپین هون (آریایي اقوام) د تخارستان له خوا زابلستان ته راغلل، دغه هفتالیان (ابدالیان) د ارغنداو او هلمند په ناوو او غرو رغو کې تر کوړکه له پخوانو پښتنو سره ګډ او مېشته شول، چې اوس د ابدالي (دراني) په نامه کې هغه قدیمه ریښه شته او بله ډله د خلجي، غلجي (غرزي) په نامه له محلي پښتنو سره ګډ شول. ددغو خلکو ژبه دمخه هر څه چې وه: خو دلته په زابلستان کې له غزني څخه تر سیستانه پښتو شوه او د دوی ګډون له پخوانو پښتنو سره په دغه ژبه کې ځینې د دوی راوړي کلمات ګډ کړل لکه هون چې خان شو، یا اولس. جرګه یرغل او نور؛ خو کوم وخت چې پر دغو خانانو د اسلامي فاتحانو یرغلونه راغلل: نو دوی غرو ته پناه یووړه او د دوی لهجه او ادا په غرو کې پاتې

شوه: لکه د وردګو او وزیرو او مسیدو لهجې. اما هغه اقوام چې په سمو کې وو، د دوی پر لهجو د سمې د خلکو او مدنیت او ژبو اثر وشو او تهذیب یې وموند، چې د اوسنیو ابدالیو لهجه یې نمونه ده.

## د لویکانو تاریخي ښکارندویې

لویک وجویر (هجویر) د رتبیل او کابلشاه په خدمت (کرامات) د ۱۲۰ هـ حدود.

لویک خانان د وجویر زوی (د ګردېزي خاقان) مسلمان او بیا مرتد شوی لویک د خنچل کابلشاه (معاصر د دوی معاصر د ۱۶۳ حدود. د دوی معاصر یو بل لویک د پښتو بیت وینکی).



محمد بن خاقان (ګردېزی) دده نوم اسلامي او هم مسلمان و د ۲۱۰ حدود. افلح د محمد زوی د (ګردېزي ابو منصور افلح) د یعقوب لیث څخه په ګردېز کې مات شو: ۲۵۶هـ

منصور (تولد د ۳۰۰ هـ حدود) د ګردېزي په قول.
مرسل (تولد ۳۵۰ هـ حدود).
سهل (تولد د ۴۰۰ هـ حدود).

ابو علي (ابو بکر) لاویك.
(طبقات ناصري) یا مطلق لویك (سیاست نامه) د کابلشاه د زوی خسر، چې د سبکتګین له لاسه یې په ښرخ کې د خپل زوم (د کابلشاه زوی) سره ماته وکړه (۳۶۵ هـ).

# دریم څپرکی

## سوریان

(۱۰۰_۱۴۵ هـ)

### سوري په تاریخ کې:

سوري یا زوري هم لکه لویکان د پښتنو شاهانو یوه قدیمه کورنۍ ده، چې له دوی څخه د پښتو ژبې د اسلامي دورې ډېر پخواني آثار موږ ته پاتې دي؛ ځکه چې دغه سوریان د پښتو په تاریخ کې ډېر اهمیت لري.

نو دلته په لنډه د سوري د کلمې او قبیلې تاریخ شرح کوم، وروسته نو د دوی ادبي شهرت او د شعر مشاهیر ښیم: سوري د غور یوه مشهوره طایفه ده، چې اوس هم شته او زوري یې بولي، دا نوم خورا زوړ دی، د عربو د تاریخ او جغرافیا لیکوالو هم د (زور یا زوري) په ډول راوړی دی،، لومړی مؤرخ چې په اسلامي دوره کې د زور نوم راوړي. احمد بن یحیی مشهور په البلاذري دی (د ۲۵۵ هـ حدود) دی د سجستان او کابل په فتوحاتو کې هسې وایي:

((تر ۳۰ هـ کال وروسته عبدالرحمان بن سمره بن حبیب، بن عبد شمس د جستان او زرنج او کش تر نیولو پس د الرخج له لارې بلاد داور ته راورسېد او ددغه ځای خلك یې د زور په غره (جبل الزور) کې کلابند کړه، بیا یې نو له دوی سره روغه وکړه او لوی طلایي بت چې (زور) نومېده او د یاقوتو سترګې یې وې، واخیست او لاسونه یې ور پرې کړه او هغه یاقوت یې له

سترګو څخه راوکښه، د داور مشر (مرزبان) ته یې وویل: له دې بته څخه ګټه یا ضرر چاته نه رسېږي. تر دغه وروسته د بست او زابل په فتح بخت شو[1].

بل مؤرخ ابو زید احمد بن سهل بلخي (مستوفی ۳۲۲ هـ) چې کتاب الاشکال یا صور الاقالیم یې په ۳۰۹ هـ وکېښ او تر ده وروسته معروف اصطخري په ۳۴۰ هـ هغه کتاب د المسالك والممالك په نامه تهذیب کړ، دوی هم دواړه د دغه بت او جبل زور ذکر کوي، چې یاقوت ئ په معجم البلدان کې رانقلوي او د هغه بت نوم (زور یا زونْ) ښیي[2] یاقوت په خپل یوه بل کتاب کې وایي، چې: زور د لومړي حرف په ضمه او د دوهم په سکون، د داور په ښارو کې یو بت و[3].

تر اسلام دمخه چې کومو مؤرخینو څه کښلي دي؛ همداسې ښکاره کوي، چې دا بودتو تو نه مشهور وو، چیني زایر هیوان تسانګ چې په ۶۳۰ م دغه بت لیدلی و، وایي چې نوم یې (شونا) او دا معبد د (سهتاو کوتا) په سیمه کې پر یوه غره پروت دی، دغه شونا د لمر رب النوع و، چې د هندوکش د جنوبي خوا د شاهانو یعنې د تجن او نیکي ملکا، د کورنیو په سکو کې سم لیدل کېږي او داسې ښکاري، چې د زوري قبیلې دین هم تر اسلام دمخه د لمر پرستش و[4].

لي سترانج وایي چې دغه غر د (درتل یاتل) ښار ته نژدې و[5]

---

[1] فتوح البلدان ص ۴۰۲.

[2] معجم البلدان ج ۴ ص ۲۸

[3] مراصد الاطلاع ص ۲۰۶.

[4] تاریخ افغانستان ج ۲.

[5] اراضي خلافت شرقي ص ۳۴۵.

خو اوس یې ځای نه معلومېږي.

له دغو تاریخي مطالعاتو څخه ښکاري چې د سوري نوم له هغه ویدي (سوریا) څخه اخیستل شوی دی، چې په اوستا (هور) او بیا (اور) شوی دی او شرح یې په لومړي ټوک کې تېره شوه. دغه زور یا سور نوم تر اسلام راوروسته هم پاتېږي او یوه مشهوره او لویه قبیله له پښتنو څخه په دغه نامه یادېږي او د دوی په نامه، د زور آباد مشهور ښار ودانېږي، ددې ښار بقایا اوس هم په دغه نامه پاتې او د سرخس پر جنوبي خوا د هرات په شمال غربي گوښه کې واقع دی، یا قوت دا ښار د زور ابذ په نامه د سرخس له سیمو څخه گڼي[1]؛ مگر دغه زور آباد پخوا په هرات اړه درلوده؛ لکه ابو بکر عتیق بن محمد السور آبادي مفسر (حدود ۴۶۰ هـ) چې په هروي هم مشهور دی، او اوس هم زور آباد د هرات شمال غربي سرحد دی. د سور او سوري قوم نوم او رجال ډېر معروف وو، مثلاً سوري ابن المعتز و سلطان مسعود غزنوي د عصر د خراسان عمید (حکمران) و او شیخ عبدالجبار بیهقي په خپلو اشعارو کې دی هسې یادوي:

تنبه ایها المغرور وانظر — الی آثار مسعود و سوری
ولاتغتر بالدنیا سروراً — فان الموت یهدم کل سور

یا دا:

امیرا بسوی خراســــان نگر![2]
که سوری همی مال و ساز آورد

دغه سوري قوم له پښتنو لودیانو سره خپلوي لري، چې د لودي کورنۍ هم په پښتو ادب کې مهم پخواني آثار لري او په

[1] مراصله، ص ۲۰۶.
[2] تاریخ بیهقي ص ۱۷۹.

دوی کې شیخ حمید او سلطان بهلول او نور معروف سلاطین تېر شوي دي او په دغه کتاب کې به یې شرح بېله راشي له سوریو څخه هم د غور او هند مشهور شاهان شته چې دوی په پښتنواله او مېړانه معروف وو. د تاریخ له پاڼو څخه ښکاري چې سوریانو تر اسلام دمخه او بیا د اسلام په لومړیو وختو کې پر غور او خراسان پاچاهي کړله؛ څو وروسته غزنه، بامیان، تخارستان او زابلستان هم په دوی اړه درلوده او د غور مشهور او برمیالي سلاطین له دغه پښته وو، چې شرقاً یې د ګنګا تر غاړو او غرباً یې د خراسان تر پایه او شمالاً یې تر آمو او پامیره او جنوباً یې د عربو تر بحیرې پورې د سلطنت لمن ارته وه قاضي منهاج سراج، چې د دوی د دربار مؤرخ دی، هسې وایي:

((د ضحاك (په پښتو: سهاك یا سهك) له اولاده دوه ورونه وو؛ چې مشر یې سور او کشر یې سام نومېده؛ لومړی پاچا او دوهم د لښکر مشر (سپه سالار) و او تر اسلام ډېر دمخه، د دوی کورنۍ د غور شاهي لرله دوی شنسبانیان بولي؛ ځکه چې لوی نیکه یې شنسب (پښتو: شین اسپه) نومېد او د علي (رض) په خلافت کې مسلمان شوی او د غور پاچا منل شوی و[1].

علاوه پر دغه د سوریانو بل پاچا هم د اسلام په ابتداء کې د مرو مشر و، چې ماهوي سوري نومېد، دې سړي د ساسانیانو اخرنی پاچا هم، یزدګرزد سوم مړ کړ او د حضرت علي (رض) له خوا په کوفه کې د مرو په پاچاهي ومنل شو[2] فردوسي هم دی

---

[1] طبقات ناصري ص ۷۶_۱۷۷_ په پخوانو خلکو کې د اس په نامه تسمیه رواج وه؛ لکه لهر اسپه، ګتاشسپه، ازیاسپه او نور تاریخي نومونه؛ نو دغه شین اسپه پښتو نوم هم شنسب شو.

[2] فتوح البلدان ص ۳۲۳_ الیعقوبي ج ۲ ص ۲۱۴_

سوري نژاد ګڼي او وايي:

هیونی بر افګند بر سـان باد
به نزدیک ماهوی سوری نژاد

دې سوري مشـر تـر یزدګـرد وروسـته د خـپلې شـاهۍ لمـن تـر بلخ او هرات او بخارا پورې ارته کړه، فردوسي وايي:

به مهتر پسر داد بلخ و هری
فرستد بر هر سوئی لشکری
چو لشکر فراوان شد و خواسته
دل مرد بی بر شد آراسته
سپه را درم داد و آباد کرد
سرد و دهٔ خویش پر باد کرد
بشهر بخارا نهادند روی
چنان ساخته لشکر جنګجوی[1]





په دې ډول سـوري قـوم، تـر اسـلام دمخـه او بیـا د اسـلامي دورې پـه لومړیـو وختـو کـې شـهرت درلـود او لکـه چـې ومـو لوستل، پر غربي پښتونخوا يعنې غور او خراسان بزيمن وو.

## (ا) امیر کروړ او ابو مسلم:

مخکې مو ولوستل، چې د سوریانو د شنسب کهول مشهور و، دوی د غور پر غرو شاهي کوله. دا شنسب د خرنك زوی و، چې د اسلام په ابتداء کې ژوندی و. دده زوی امیر پولاد ډیر مشهور شو، د خپلو پلرو نوم یې بیا ژوندی کړ. کوم وخت چې ابو مسلم مروزي د بني امیه امیران له خراسانه وشړل او د بني

[1] شهنامه ج ۵ ص ۳۱۱

عباس په طرفدارۍ ټينګ ودرېد : نو امير پولاد د غور لښکر د ابو مسلم مددله بوت او د آل عباس د پاچاهۍ لپاره يې د هر کارونه وکړل دده مرکز په غور کې منديش و او پر ټول غور يې حکومت کاوه چې مړ شو نو يې امارت زامنو ته پاتې شو ، بيا نو د امير بنجي نهاران تر وخته د دوی احوال نه شو معلوم[1].

دا روايت د خراسان مشهور مؤرخ منهاج سراج جوزجاني د منتخب تاريخ ناصري په حواله کښلی دی، وايي چې امير پولاد د ابو مسلم (۱۳۹ هـ) معاصر و بنجي نهاران د هارون الرشيد (۱۷۰ هـ) له دربار عهد او لواء راوړه او بيا نو ددې کورنۍ يو بل مشهور پاچا امير سوري يادوي، چې د آل صفار (۲۵۴ـ ۲۹۶ هـ) معاصر دی. له دې څخه ښکاري چې د شنسب له وخته يعنې د اسلام له ابتداء څخه بيا د سلطان محمود او مسعود تر وختو پورې د سور کورنۍ امارت لاره؛ مګر ددغو شاهانو احوال متاسفانه مؤرخينو ته په تفصيل نه و معلوم؛ نو يوازې د څو تنو نومونه يې ذکر کړي دي. وروسته چې د غور پاچاهان پر غزنوي کورنۍ غالب شول، دا ټول له سوري کورنۍ څخه وو او د دوی کورنۍ د مغولو تر تاړاکه (۶۰۰ هـ) پورې پر غور او خراسان او باميان او تخارستان او سيستان او زابل او کابل شاهي کړله، هندوستان هم دوی فتح کړ او د ګنګا تر غنډو پورې يې سلطنت ورسېد . د پښتو ادبي آثار داسې ښکاره کوي چې دغې سوري کورنۍ پښتو ويله او په دوی کې د پښتو ادب بهترين او خورا ښه زاړه آثار پيدا شوي دي.

تاسو د طبقات ناصري په روايت کې ولوستل چې امير پولاد

---

[1] طبقات ناصري ۱/ (۱۷۹) مخ.

د (۱۳۰ هـ) په شاوخوا کې د غور مشهور سوري پاچا و[1] په دغو وختو کې د خراسان خلکو غوښتل چې خپل هېواد آزاد کاندي، ددغه تحریك په سلسله کې د خراسان یو مشهور سړی ابو مسلم مروزي راپورته شو، چې د خراسانیانو په کومك یې د بني امیه اخر پاچا مروان مات کړ او په (۱۳۲هـ) یې په کوفه کې ابو العباس علي بن عبد الله بن عباس (رض) پر خلافت کښیناوه[2] د سوریانو کورنۍ چې د غور او خراسان له مشهورو واکوالو څخه وه، د ابو مسلم سره ملګرې وه، د پټې خزانې مؤلف محمد هوتك د شیخ کته متي زي د "لرغوني پښتانه" په حواله هسې وایي:

چې امیر کروړ جهان پهلوان د امیر پولاد سور زوی و او دا امیر په جګړو کې د ابو مسلم خراساني کلك ملګری او بریالی مل و. که څه هم د امیر کروړ نوم نور مؤرخان نه اخلي او منهاج سراج تش دونې وایي چې پس له امیر پولاده دده زامن د غور واکوال وو[3] مګر محمد بن علي البستي په "تاریخ سوري" کې



---

[1] د کوه بابا لوړه څوکه ((شاه پولادي)) او د شرقي غور ((دای پولاد)) ددغه امیر په نامه موسوم دي.

[2] ابو مسلم عبدالرحمان بن مسلم ډېر مدبر او لایق سړی و په خراسان کې یې دوه لکه اتباع درلودل، که مسلمانان وو، که زردشتیان ټولو ده ته عقیدت لاره او امام یې باله. د الفخري (ص ۱۷۹) او دینوري (ص ۳۵۶) له روایته ښکاري چې نصر بن سیار د عباسیانو د خراسان حکمران دده په باب کې د خلافت دربار ته داسې راپورټ ورکړی و: دوو لکو تنو ابو مسلم ته لاس ورکړی دی زه په ایرو کې پټ اور وینم که مو دا اور مړ نه کړ. ډېر بدنونه او ککرې به په کې ایرې شي؛ نو عباسیان له ده څخه وېرېده او منصور دوهم عباسي خلیفه په (۱۳۷ هـ) دی وواژه؛ خو طرفدارانو یې تر ډېره جګړې کولې.

[3] طبقات ناصري ۱ ـ (۱۷۹) مخ.

د امیر پولاد یو زوی چې امیر کروړ جهان پهلوان سوري غوري دی، ستایي او دده پښتو اشعار رانقلوي او داسې ښکاري چې امیر کروړ جهان پهلوان ډېر شجاع او ادیب او د قلم او تورې څښتن و.

که څه هم تاریخ سوري اوس نشته، مګر د "پټې خزانې" مؤلف د "لرغوني پښتانه" په حواله د امیر کروړ په باب کې لاندې معلومات موږ ته سپارلي دي.

((نقل کا: زبدة الواصلین شیخ کته متې زی غوریاخېل په خپل کتاب لرغوني پښتانه کې، چې دی نقل کا له تاریخ سوري څخه چې په بالشتان[1] یې کتلی او موندلی و، شیخ کته علیه الرحمه هسې وایي، چې: په تاریخ سوري کې راوړي:

امیر کروړ د امیر پولاد سوري زوی و، چې په کال ۱۳۹ هـ سنه هجري د غور په مندېش[2] کې امیر شو او ((جهان پهلوان)) یې باله. وایي چې د غور کوټونه او د بالشتان او خیسار[3] او تمران[4] ماڼۍ او بر کوشک[5] یې ونیول او د رسالت له کهوله[6]

---

[1] بالشتان د جنوبي غور مشهور ښار و چې مورخانو والشتان هم لیکلی دی اوس هم د بالشتان علاقه د غور جنوبي شرقي خوا ته د کندهار تر تیرې وروسته په دغه نامه یادیږي.

[2] د غزنویانو او غوریانو په وخت کې مندېش مشهور ښار و چې بیهقي او ګردېزي او جوزجاني یې هم نوم اخلي.

[3] د خیسار کلا په غزنوي او غوري دورو کې د مغولو تر تاړاکه مشهوره وه اوس قیصار په سیمنې پورې مربوط دی.

[4] تمران د تموري قبیلې ځای چې د غور شرق کې و او د اوسني ګیزو سره نژدې و. د دایکندي جنوب ته.

[5] بر کوشک یعنې لوړه ماڼۍ چې فیروز کوه کې وه.

[6] د رسالت کهول یعنې د عباسي خلفاوو کورنۍ.

یې په خلافت کې ډېر کومکونه وکړل. نقل کا چې امیر کروړ ډېر غښتلی او پهلوان او په یوه تن له سلو جنګاورو سره جنګېده؛ ځکه یې نو کروړ باله چې معنی یې ده کلك او سخت. وایي چې امیر کروړ به په دوبي[1] زمینداور کې و او هلته یې مانۍ درلوده، چې کټ مټ د مندېش په شان وه او په دغه ځای کې یې ښکار کاوه او عشرت. په تاریخ سوري کې راوړي چې دا امیران له پېړیو په غور او بالشتان او بست کې وو او د هغه (سور) نومي له اولاده دي، چې د سهاك له پښته وو. امیر پولاد په هغه دعوت کې شریك و، چې ابو العباس سفاح د بین امیه سره جګړه کړله او ابو مسلم یې هم مرستی و. شیخ کته علیه الرحمه له تاریخ سوري نقل کا چې: امیر کروړ عادل او ضابط او د ښې وینا خاوند و، ده به هر کله شعرونه ویل. په کال سنه (۱۵۴) هجري د پوشنج[2] په جګړو کې مړ شو او تر ده وروسته یې زوی امیر ناصر ایوادونه ضبط کړل او د غور او سور او بست او زمینداور پر مځکو خاوند شو))[3].

د امیر کروړ کورنۍ او شاهۍ له بابه دغه لوړ معلومات د تاریخ سوري په حواله مستند او ټینګ دي، که څه هم نور مؤرخین دده د نامه تصریح نه کوي؛ خو اساساً دا بیان له نورو تاریخي متونو سره مخالفت هم نه لري. امیر پولاد او د سوریانو

---

[1] په اصل کې دوبسي دی خو ژمی به اصح وي؛ ځکه چې زمینداور د غوریانو د ژمي دارالملك و. د طبقات ناصري (۱۸۱) مخ.

[2] پوشنج. د یاقوت په قول له هراته لس فرسخه لېرې یو ټینګ ښار و. دا ښار د هرات نیم غوندې و چاپېر یې خندق لاره (حدود العالم).

[3] سوریان وروسته هم په تاریخ کې مشهور دي. لکه په ۹۴۷ هـ چې له دوی څخه مشهور شېرشاه په هند کې پاچا شو. د سوریانو شاهي تر (۹۶۲ هـ) پورې وه.

کورنۍ او د دوی معاصرت او کومکونه له ابو مسلم سره دا ثابتوي چې دوی په غور کې لوی لاس درلود او په دې کې تاریخونه متفق دي؛ خو پټه خزانه د لرغوني پښتانه په حواله له تاریخ سوري څخه دا خبره هم ښکاره کوي چې په هغه وخت کې د سوریانو ژبه پښتو وه او لکه چې اوس هم ځیني سوري خلك په بادغیس کې پښتو وایي د دوی پخوانو اجدادو هم پښتو ویله. امیر کروړ تر اوسه هم په پښتنو کې په افسانوي ډول مشهور دی. مثلاً که وغواړي چې د یوه شي قدامت بیان کړي وایي: د کروړ له وختو دی؛ نو ګویا کروړ د پښتنو یو پخوانی تاریخي پهلوان دی چې د پښتو ژبې پخوانی شاعر هم ګڼل کېږي.



## د پښتو دېر زوړ او پخوانی شعر:

د پښتو په خورا زوړ او پخوانو ادبي آثارو کې چې تر اوسه زموږ لاس ته راغلي دي د امیر کروړ سوري یو حماسي EPIC شعر دی چې پټې خزانې د تاریخ سوري په حواله خوندي کړی دی.

هغه وخت چې د پارسي ژبې لومړني شعراء لکه ابو حفص سغدي او عباس مروزي (دوهمه هجري پېړۍ) او حنظله بادغیسي (متوفی ۲۲۰ هـ) او فیروز مشرقي (۲۸۰ هـ) او بوسلیك ګرګاني (۲۸۰ هـ) لا دنیا ته نه وو راغلي، زموږ د پښتونخوا په غربي څنډو او د بادغیس او هرات او غور په سیمو کې د پښتو ژبې د شعر ږغونه اورېدل کېده او زموږ توریالي مشران لکه د توري پر میدان چې پهلوانان وو، دغسې د ادب او شعر پر ډګر هم د مخه وو.

داسې ښکاري چې په سوریانو کې د پښتو شعر د اسلام له

ابتداء څخه موجود و؛ ځکه چې د امیر کروړ د ژوند وخت پس له (۱۰۰ هـ) څخه شروع کېږي او بیا موږ وینو چې په دغو سوري خلکو او هم د غور په اوسېدونکیو کې د سلطان محمود تر عصره د (۴۰۰ هـ په حدودو کې) هم د پښتو شعر ازانګې پورته وې؛ نو له دې څخه ثابتېږي، چې د اسلامي دورې په لومړیو څلورسوو کالو کې غور او سوري قبایل د پښتو د شعر او ادب زانګو وه او په دغو وختو کې پښتو ژبې پاخه اشعار او ادب آثار درلودل.

پټه خزانه د امیر کروړ سوري یو شعر هسې رانقل کوي:

په تاریخ سوري محمد بن علي البستي داسې کښلي دي چې: د عباسي دعوت په جنګو کې چې امیر کروړ ډېرې سوبې[1] وکړلې؛ نو یې دا بیتونه وویل چې ویاړنه[2] یې بولي. هغه دادی چې شیخ کته علیه الرحمه له تاریخ سوري رانقل کړی دی:



## ویاړنه د امیر کروړ جهان پهلوان

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل[3] نسته
په هند و سند و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته له ما اتل نسته
غشي د من[4] مې ځي بریښنا په میرځنو[5] باندې

(۱) سوبه ـ فتح. (۲) ویاړنه ـ حماسه ځکه چې ویاړ د افتخار معنی لري. (۳) اتل ـ پهلوان ـ نابغه. (۴) من ـ اراده. (۵) میرځمن ـ دښمن

په ژوبله[1] یونم[2] یرغالم[3] پر تښتېدونو باندې
په ماتېدونو[4] باندې له ما اتل نسته
زما د بریو[5] پر خول تاوېږي[6] هسك[7] په نمنځ[8] و په ویاړ[9]
د اس له سوو مې مځکه رېږدي غرونه کاندي لتاړ[10]
کړم ایوادونه او جاړ[11] له ما تل نسته
زما د توري تر شپول لاندې دی هرات و جروم[12]
غرج[13] و بامیان و تخار بولي[14] نوم زما په اودوم[15]
زه پېژندوی یم[16] په روم له ما اتل نسته
پر مروز ما غشي لوني[17] ډاري دښمن[18] راځخه
د هریوا د رود پر څنډو څم تښتي پلن[19] راځخه
رېږي[20] زړن[21] راځخه له ما اتل نسته
د زرنج سوبه مې د توري په مخ سور[22] وکړه
په باداری[23] مې لوړاوی[24] د کول[25] د سور وکړه
ستر مې تربور وکړه[26] له ما اتل نسته
خپلو وګړو لره لور[27] پېرزوینه کوم
دوی په ډاډینه[28] ښه بامم[29] ښه یې روزنه کوم

---

[1] ژوبله- جنګ. [2] یونم- یون کوم. [3] یرغالم- هجوم کوم- ښایي چې دا کلمه یرغالم وي- لکه د لویك په بیت کې چې یې شرحه تېره شوه. [4] ماتېدونکي- شکست خوړولی. [5] بر، ظفر. [6] تاوېږي- څرخي. [7] هسك اسمان. [8] نمنځ: ستاینه. [9] ویاړ: افتخار. [10] لتاړ: برهم. [11] اوجاړ: خراب. [12] جروم: ګرمسیر. [13] غرج: غرجستان. [14] بولي: یادوي. [15] اودوم: چاره علاج. [16] پېژندوی: شناسا. [17] لوني: اوري. [18] دښن: دشمن. [19] پلن: پیاده. [20] رېږي: رپېږي. [21] زړن: زړور. [22] مخ سور: سرخروکی. [23] باداري: سرداري. [24] لوړاوی: ترقي. [25] کول، کهول: کورنی. [26] یعنې تربرونه مې ستر کړه. [27] لور: رواداري. [28] ډاډینه: اطمینان. [29] بام: تربیه کوم.

تـــل يـــې[1] ودنـــه کـــوم لـــه مـــا اتـــل نســـته
پـر لويـو غـرو مـې وينـا درومـي نـه پـه ځنډو پـه تـال[2]
نـړۍ زمـا ده نـوم مـې بـولي[3] پـر دريـځ[4] سـتايوال[5]
پـه ورځـو شـپو، مياشـتو کـال لـه مـا اتـل نسـته[6]

## ددې شعر ښېګړې او ادبي او تاريخي نتايج:

په اسلامي دوره کې دغه يو قديم شعر دی چې له پټې خزانې څخه زموږ لاس ته راغلی دی، که څه هم د پښتو ادب عمومي تحليلي کتنه او انتقادي څېړنه ما د څلورم ټوک دوهمې برخې ته پرېښې ده چې هلته به د پښتو ادب مضامين او محتويات مفصلاً راوړم، مګر دلته هرې ادبي ټوټې ته بېل بېل ځير کاته په لنډ ډول لازم ګڼم، چې له دغو کتنو او څېړنو څخه د ادب لومړني مزايا او خصايص ځرګندېږي او زموږ وروستني ابحاث هم پر دغو کتنو بنا کېږي:

(۱) د پښتو دا زوړ شعر چې د هجري دوهمې پېړۍ له لومړۍ برخې څخه راپاتې دی، له ظاهري پلوه يعنې د ژبې او اداء او لغاتو او کلماتو له مخې مخصوص رنګ او زموږ د اوسنۍ ژبې له محاورې جريانه سره توپير لري، ډېر داسې لغات او پښتو سوچه کلمات پکې راغلي دي چې اوس متروک او مهجور دي او په عمومي محاوره او ادب کې نه استعمالېږي.

ددې شعر له لساني پلټنې څخه سړی دا نتيجه اخيستلای شي چې په دغه لومړنۍ دوره يعنې په هجري اوله او دوهمه پېړۍ کې پښتو ژبه په غور کې د نور ژبو له اختلاطه سوچه وه او

---

[1] ودنه: نشو و نما. [2] تال: معطلي. [3] بولي: يادوي. [4] دريځ: منبر. [5] ستايوال: ستايونکی. [6] پټه خزانه ص ۳۳_۳۶.

دا سوچه توب او خالصوالی یې تر (۴۰۰ هـ) پوري هم ساتلی دی او هر څونې چې په اسلامي دوره کې پېړۍ پر تېرېږي، هغونې ژبه له سوچه توبه لېرې کېږي او نور عناصر په ګډېږي. تاسې دا شعر له سره تر پایه وګوري یو عربي یا پارسي لغت پکې نشته، ځینې لغات که یې له پخوانو اریایي ژبو سره مشترك وي، وي به د ځینو کلماتو ګرامري کیف او اشتقاقي ډول دا رانښیي چې پښتو ژبې پخوا تر اوس قوي بنیه او غښتلې پړې درلود او د ایتمالوجۍ له پلوه یې ډېر مزایا او خصایص لرله چې اوس یې متاسفانه بایللي دي، مثلاً په دغه شعر کې د کلماتو د ساختمان او جوړښت له پلوه داسې مواد شته چې اوس یې نه لرو:

**الف**: پخوا ډېر مصادر په ژبه کې د خپلو مشتقاتو سره موجود وو چې اوس فقط له هغو څخه یوه سپکه ریښه موږ ته پاتې او نور له منځه وتلي دي، مثلاً: یون (تګ او کوچ) یرغل (هجوم) (رپ تپش) چې اوس شته؛ مګر مصدري او فعلي صورتونه یې ورك شوي دي؛ خو په دغه شعر کې دیونم (ځم) یرغالم (هجوم کوم) رپي (رپږدي) په ډولو شته؛ نو چې مشتق افعال یې مستعمل و، باید دغو مادو ته په ژبه کې د (یونل یرغالل رپل) مصادرو ته هم قایل شو چې اوس مستعمل نه دي.

**ب**: **زړن** (دلاور) دښن (دشمن) پلن (پیاده) اوس مستعمل او ژوندي نه دي؛ خو داسې ښکاري چې (ن) د نسبت یا فاعلیت ادات په آخر کې لري او لومړۍ کلمه له زړه او دوهمه له (دښ) یعنې (عیب او زشتي) او دریمه له پل (قدم) څخه جوړ شوي دي چې اوسني اشکال یې دادي: زړه ور ـ دښمن ـ پلی.

**ج**: ځینې پخواني کلمات چې دې زاړه شعر له زړې ژبې څخه

راخوندي کړي دي د ژبې پخواني وسعت او ارتوالی څرګندوي او دا ښکاره کوي چې د ژبې ډېر مواد او ښه ښه کلمات متاسفانه له لاسه وتلي دي. مثلاً په دې شعر کې (من) خورا قديمه کلمه ده، چې په سنسکريت کې هم وه اوس موږ پخپله مستعمله ژبه کې د (منل) مصدر لرو او مشتقات یې هم وايو؛ خو ريښه يې نه ده راته معلومه چې دا مصدر له کومه شوی دی.

که دقیق شو د (منل) مصدري عنصر (من) دی چې په سنسکريت کې د زړه او روح او ارادې معاني لري[1] ابو ريحان البيروني وايي، چې: (من) اصلاً زړه ته وايي، اما ځکه چې د ارادې محل او ځای زړه دی؛ نو په خپله اراده هم (من) بولي[2] او په دې شعر کې هم من د ارادې معنا ورکوي او له دغې مادې څخه د آريايانو د يوه پخواني پلار او مشهور مقنن (مانو) نوم هم جوړ شوی دی، چې د منونکي او فکر کوونکي معنی لري[3] او دا ټوله اسناد دلالت کوي چې (من) پخوانۍ اريايي کلمه ده، چې په پښتو کې هم وه.

دغسې هم (دريځ) پخوانۍ پښتو کلمه ده، چې اوس يې موږ نه لرو. که د ژبې د اصليت له پلوه ددغې کلمې عنصر ته وګورو بايد له (درېدل) او (ځای) څخه جوړه شوې وي، داسې دوې نورې کلمې هم په پخوانو اشعارو کې شته لکه خاتيځ (د ختلو ځای مشرق) لويديځ (د لوېدلو ځای = مغرب).

له دغو قديمو الفاظو څخه ښکاري، چې: پخوا ژبې په دې ډول د ظروفو نومونه درلودل چې ورو ورو محوه شوي دي. فقط دغه درې

[1] هندي قاموس ص ۷۰۳.

[2] کتاب الهند ج ۱ ـ ص ۴۵.

[3] ددې کتاب په (۱) ټوک ۳ برخه کې د (من ـ مانو) شرح وګورئ.

کلمې اوس د پټې خزانې د اشعارو په استناد راته پاته وي.

(۲) د معنی له پلوه هم دا لومړنی شعر ډېر قدیم دی، له حماسي اشعارو څخه چې د دنیا د ادب یوه غوره برخه ده دا یو برجسته او غوره نخښه ګڼله کېږي. د شاعر لوړ حماسي مقام او دده د تورې غلبه او بری ښه تصویر کوي شاعر د خپل پاخه شعر او غښتلې قریحې په مرسته خپله ویاړ نه په داسې ډول کوي. چې یوه توانا او مقتدر شاعر ته ښايي. له دغې ویاړنې څخه د امیر کرور ملي مینه او د خپل تېر د پالنې احساسات ښه څرګندېږي او دغه د شعر یوه زړه توته ده چې سړی د هغې زمانې د پښتنو اخلاقي او روحي کیفیت ښه څنې معلومولای شي او د شاعر د احساساتو د محیط هینداره ده، چې د پخوانی ژوند مختلف پلونه پکې ښکاري.

(۳) د شعر عروضي کیف او وزن هم د غور وړ دی او دا څرګندوي چې ژبې پخوا د عروضو او بحر له پلوه هم پاخه اشعار درلوده او دغه مخصوص بحور له خورا زړې زمانې څخه په شعر کې موجود وو او ددې ژبې عروضي او بحري هویت او څنګوالی بېل دی او پوره استقلال لري او د عربو د خلیل بن احمد علم العروض لادې مځکې ته نه و راغلی، چې دلته د اشعارو مخصوص ملي او پښتني عروض او بحور موجود وو او تر اوسه هم دغه آثار په ملي اشعارو کې پاتې دي چې د پښتو د علم او ادب په تدوین او ترتیب کې ښايي دغو مخصوصو بحرو او اوزانو ته خاصه توجه وشي.

(۴) د تېرو څېړکیو له څېړنو څخه تاسې ته د پښتو ځینې قدیم آثار ښکاره شوه؛ خو ددې شعر له لوستلو څخه موږ دغه ادبي نتایج راښکلای شوای، چې د ژبې ادبي جوړښت او ښکلا راښيي.

**الف**: پښتو ادب د (۱۰۰ هـ) کال په حدودو کې د جذباتو او احساساتو د څرګندونې وړ و او داسې یوخ او غوره شعر یې درلود نو ښاي چې دې ژبې لږ تر لږه (۵۰۰) کاله دمخه ادبي عمر تېر کړی او د هلکینې او ځلمیتوب مراحل یې تېر کړي وي چې دې درجې رشد او کمال ته رسېدلې دی؛ ځکه چې دا شعر خو د ژبې د ادبي مراحلو لومړی شعر نه ګڼل کېږي.

**ب**: د هرې ژبې ادب چې نضج او پوخوالي ته نه وي رسېدلی، په لومړنیو دورو کې د نورو ژبو تر اثر لاندې کېږي. د پارسي ژبې په لومړني ادب کې د عربي درنه اغېزه دونې ښکاري چې تر (۴۵۰ هـ) پورې لاهم دا ادب د عربي فکر او عربي ادب تر اثر لاندې و[1].

---

[1] د پارسي ژبې په ابتدایي ادب کې دا اثر ښکاره دی. شاعران د عربي فکر او ژبې پیروي کوي او مضامین ځنې اخلي مثلاً د ابو نواس دا شعر (لیس من الله بمستنکر ان یجمع العالم فی واحد) عنصري داسې اخیستی دی:

کس از خدای ندارد عجب اگر دارد
همه جـــهان را اندر یکی تن تنها

د متنبی عربي شاعر دا بیت (اذا رایت نیوب اللیث بارزة_ فلا تظن ان اللیث مبتسم) اسدي طوسي په ګرشاسپ نامه کې داسې ترونبلي دي:

نیاید از خـــنده شه دلیر		نه خنده است دندان نمودن ز شیر

اما عربي فکر په پارسي شاعری کې هم ډېر دی لکه خاقاني چې وایي:

ســـلام علی دار ام الکواعب		بتان ســـیه چشم عنبر ذوابب
رســوم الطلل والدیار الدوارس		چو بر صدر منشور توقع صاحب
ســـمن زار گشته دیار سلاحف		چـــــمنزار گشته و جار ثعالب

په نثر کې هم د عربي اثر خورا ډېر دی، لوی استاید د عربي ژبې تعابیر را اخلي او ترجمه کوي، یې مثلاً د بیهقي د تاریخ دا عبارت: (و بار داد بار دادنی سخت بشکوه) چې دوهمه جمله د عربي په ډول حال دی له دمخه ذوالحال څخه او دا حال باید جلبلا یا خطیرا یا مهیبا وي.

یا دا جمله ((یافتم امیر را در خرگاه)) چې عیناً لکه عربي اول فعل وروسته مفعول به وروسته مفعول فیه دی؛ خو په پارسي به داسې وي ((امیر را در خرگاه یافتم)) چې اول مفعول دوهم مفعول به او دریم فعل راځي.

داسې جملې ډېرې دي لکه و آنچه کردند خود رسد فاداش ان بدیشان.

د محمد بلعمی د تاریخ طبری په ترجمه کې دغه اثر ښه څرګند دی مثلاً: ((این نامه تاریخ یسر جوریر است. پارسی گردان هر چه نیکو تر چنانکه اند روی نقصانی نیفتد)) "تاریخ طبری".

دې شعر ته چې ګورو نه د عربي او نه د پارسي اثر پکې ښکاري، پارسي خو په دغه وخت کې لا پوره ژبه نه وه؛ مګر د عربي یا مثلاً د پهلوي ژبې اغېزه هم په دې شعر کې نشته؛ نو دا ویلای شوای چې ددې شعر د ویلو پر وخت ـ پښتو په غور کې خپل ادبي پوخوالي ته رسېدلې وه، چې دا شعر د نورو ژبو له اغېزو څخه تش دی او له دې څخه هم موږ نتیجه اخیستلای شو چې پښتو تر دې شعر دمخه باید ډېر ادبي مراحل تېر کړي وي، چې د (۱۰۰ هـ) کال په شاوخوا کې دې پخوالي او متانت او نضج ته رسېدلې وي.

**څرګندونه:**

د سوري قوم او غوریانو څخه نور شاعر هم شته، چې په وروستو زمانو اړه لري ځکه چې زموږ دا تاریخ د عصر په لحاظ مسلسل لیکل کېږي؛ نو به یې وروسته پر موقع ذکر وشي اوس دلته تر لومړني شاعر وروسته نور دده عصر ته نژدې ویونکي او شاعران ذکر کوو:

## هاشم د زید سرواني زوی

## ۲۲۳ـ۲۹۷ هـ

لکه چې تاسو ولیدل د اسلام په لومړۍ او دوهمه پېړۍ کې د پښتونخوا غربي خواوې او د غور مځکې د پښتو ادب د پرورښت او ودې زانګو وه او دغه سوري کورنۍ وه چې له دوی څخه د غور د شاهنشاهۍ مشهوره کورنۍ پیدا شوه او ډېر مشهور شاهان او فاتحان لکه سلطان غیاث الدین او معزالدین

محمد او نور پکې راووتل او ددغې کورنۍ په وخت کې بیا غور د پښتو شعر او ادب تاتوبی و چې د دوی د دربار شعراء به وروسته تاسې وپېژنئ؛ خو د ټولو ادبي پلټنو څخه داسې ښکاري، چې د غور او د هغه ځای په نژدو ځمکو کې پښتو یوه ادبي او درباري ژبه وه او د پښتو لومړني آثار هم په دغو سیمو پورې اړه لري.

تر جهان پهلوان امیر کروړ وروسته چې بل ادبي پخوانی اثر زموږ څخه شته، تقریباً سل کاله دده تر عصر راهیسته دی او دا ادبي نخښه هم د غور په جنوبي خوا او د هلمند د غاړو په هغو ښارو پورې اړه لري، چې په هغو وختو کې یې رڼ مدنیت درلود او اوس وران دی. د پښتو بل شاعر او ادیب چې وروسته موږ ته معلوم دی ابو محمد هاشم بن زید السرواني البستي دی چې دده اشعار او احوال هم د پټې خزانې مؤلف د شیخ کته له لرغوني پښتانه څخه نقل کړي او زه یې دلته کټ مټ را اخلم:

((ذکر د زبدة الفصحاء ـ ابو محمد هاشم ابن زید السرواني البستي رحمة الله علیه... په لرغوني پښتانه کې هسې حکایت کا شیخ کته[1] رحمة الله علیه چې ابو محمد هاشم د هلمند په سروان په سنه (۲۲۳ هـ) هجري قدسي زېږېدلی او په بست کې یې له علماء او فصحاء لوستنه وکړه ـ او وروسته ولاړ، په عراق یې په کلو کلو د لویو ائمه وو څخه سمع وکړه ـ او ابن خلاد ـ چې څرګند و په ابی العیناء سره یې په بغداد کې عمرونه تېر کړل او له هغه یې د عربي بلاغت او اشعار ولوستل او په (۲۹۴) هجري قدسي کال له عراقه بېرته راغی درې کاله وروسته په بست کې وفات شو نقل کا: چې ابو محمد په عربي او فارسي او پښتو

[1] ددې مؤلف احوال به په دې کتاب کې پر خپل ځای راشي.

شعرونه ويل او هغه وخت چې دده استاد ابن خلاد ژوند شو؛ نو ده به يې خدمت کا او د هغه څخه به يې خواږه شعرونه، په ادب کې د عربو اورېدل. ابو محمد له عربي څخه په پښتو د خپل استاد ډېر شعرونه هم را اړولي دي[1].

د لرغوني پښتانه په استناد دا بيان د ابو محمد هاشم علمي او ادب ژوندون راښکاره کوي او داسې څرګندېږي چې د (۳۰۰) هـ تر حدودو پورې د عربو مدنيت، د عربي ژبې سلطه او د عربي ادبو او علومو اثر د پښتونخوا په اکثرو برخو کې خپور شوی ؤ او ددې مځکې غربي خوا ډېره تر دې اثر لاندې وه. که څه هم په دغه عصر کې د غربي پښتونخوا خلکو د آل طاهر (۲۰۵_۲۵۹ هـ) تر بيرغ لاندې استقلال وموند او څه نه څه د پارسي ژبې ادب هم په دغو زمانو کې ژوندی شو مګر عربي علمي او ادب او درباري ژبه وه او پوهانو خپل آثار په دغه ژبه ليکله. په خراسان کې ډېر د عربي ليکوال او پوهان وو چې دوی د عربو د مدنيت او ادب په خپرولو کې ښه خدمتونه وکړه_ مثلاً صالح بن عبدالرحمن سيستاني د حجاج بن يوسف په امر له (۸۱_۸۷ هـ) دواوين او دفاتر له پارسي څخه عربي ته نقل کړه[2] او ډېر علماء په عربي علومو بوخت شول_ لکه ابو خالد وردان کابلي موسوم په (کنکر) چې د علي بن حسين (رض) (۴۶_۷۴ هـ) له ملګرو څخه و او د حجاج له ظلمه مکې ته وتښتېدی[3] يا بشار بن برد د عباسي دربار ژوند شاعر چې اصلاً د تخارستان

[1] پټه خزانه ص ۵۹.
[2] الفهرست ص ۳۳۸.
[3] مجالس المؤمنين.

و او په (۱۶۷ هـ) وژل شوی دی[۱] يا ابو عمرو شمر بن حمدوية الهروي چې د عربي اخبار او اشعارو پوهاند و او يو عربي د لغت کتاب يې هم کښلی او په (۲۵۵ هـ) مړ شو[۲]_ يا ابو حاتم سهل بن محمد سجستاني چې د عربو په لغت او شعر او نحو کې عالم و او ۳۲ کتابونه يې ليکلي دي[۳] چې له هغو څخه کتاب المعمرين (د ليډن طبع ۱۸۹۹ع) او کتاب النخله (د ايټاليا د پالرمو طبع ۱۸۳۷ع) مشهور دی او دا عالم هم په (۲۵۵هـ) کې مړ دی[۴] او احمد بن ابو طاهر طيفور خراساني (متوفی ۲۸۰ هـ) چې ۵۰ کتابونه يې ليکلي او تاريخ بغداد (دلايزيک طبع ۱۹۰۸ع) او کتاب المنثور والمنظوم او بلاغات النساء (د مصر طبع ۱۹۰۷ع) يې مشهور دی او ابو زيد بلخي (متوفی ۳۲۲ هـ) د صور الاقاليم او نورو ډېرو کتابو خاوند او ابو داود سجستانی د معروف سنن خاوند[۵] (متوفلی ۲۷۵ هـ) او نور ډېر پوهان او علماء له پښتونخوا څخه وپاڅېدل، چې د عربي علومو او ادابو ستوري دي.

يو له دغو پوهانو څخه ابو محمد هاشم دی چې دا سړی د عربي ادب پوهاند و او لکه پټه خزانه چې وايي: په کلو کلو د علم او ادب د زدکړې لپاره په بغداد کې مېشت و او د عربو د ادب له هغه مشهوره استاده يې استفاده کړله، کوم چې ابن

[۱] الاغاني ج ۳ ص ۱۹.
[۲] طبقات الادباء ج ۱ ص ۲۶۰.
[۳] الفهرست.
[۴] آداب اللغة العربيه ج ۲ ص ۱۸۵.
[۵] آداب ج ۲.

خلاد نومېد او ادبي العیناء[1] معروف و.

هاشم په سروان[2] کې زېږېدلی او په بست کې یې ژوند تېراوه- او هم هورې په (۲۹۷ هـ) کال مړ دی. د پټې خزانې له لیکه ښکاري چې دا سړی د پښتو ژبې لیکوال هم و او ده په پښتو یو کتاب کښلی و. چې په هغه کې یې د عربو د اشعارو فصاحت او بلاغت بیان کړی و او نوم یې و "د سالو وږمه"[3].

متاسفانه چې دا کتاب اوس نشته او د پښتو په منثور ادب کې چې د کوم لومړني کتاب نوم موږ ته معلوم دی- همدغه د ((سالو وږمه)) ده چې ((د نسیم ریګستان)) معنی لري او داسې ښکاري، چې دا کتاب به د پښتو له لومړنیو مؤلفاتو څخه و.

## د هاشم اشعار:

ددې عالم او ادیب سړي کوم شعر چې زموږ په لاس کې دی، د پټې خزانې په ذریعه له "لرغوني پښتانه" څخه رانقل شوی دی. لکه دا کتاب چې تصریح کوي هاشم سرواني د درو ژبو

---

[1] دا سړی د عربو مشهور ادیب او ظریف و، چې نوم یې محمد بن القاسم یا ابن خلاد بن یاسر بن سلیمان او کنیت یې ابو عبدالله و. دی له لویو استادانو څخه روایت کوي او ډېر مشاهیر لکه سولی او ابن نجیح او احمد بن کامل دده ادبي شاګردان دي. په (۱۹۱ هـ) په اهواز کې وزېږېد او په (۲۸۲ یا ۲۸۳ هـ) په بغداد کې مړ دی. په خوانۍ کې ړوند شوی و. د عربي ډېر پاخه اشعار لري او ډېر فکاهي اشعار او مضامین له ده رانقلېږي (معجم الادباء ص ۶۱ ج ۷ هفت اقلیم).

[2] سروان د هلمند د غاړې مشهور ښار و چې اوس یې ساروان کلا بولي او د هلمند پر شرقي څنډه د یوه کلي په ډول شته- ابن حوقل وايي، چې: د سیستان یو ووړ ښار دی- میوې- خرما- انګور لري. له بسته دوه مزله لېرې دی (تقویم البلدان ص ۳۴۲) اشکال العالم لیکي: ذروان تر قرمین کوچنی او فیروز قند ته نژدې دی (ص ۶۶ قلمي) حدود العالم یې د خراسان په ګرمسېر کې ګڼي.

[3] پټه خزانه ص ۵۹.

شاعر و ــ هم یې په پښتو او هم په عربي او فارسي اشعار ویل؛ خو دده عربي یا فارسي کوم شعر د پټې خزانې مؤلف نه دی رانقل کړی، که یې فارسي شعر زموږ په لاس کې وای؛ نو به یقیناً ددې ژبې له اولو شاعرانو څخه هم وای.

پټه خزانه لیکي:

(ابن خلاد چې یو ظریف او ادیب سړی و ــ په یو شعر یې درهم ستایلی دی او ابو محمد هغه شعر داسې په پښتو را اړولی دی):

## شعر

ژبه هم ښه وینا کاندي چې یې وینه[1]
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه
ژبور[2] ورله ورځي وینا یې اروي
د درهم خاوندان تل وي په ویاړونه[3]
که درهم یې ځنې ورك شو، سي نتلي[4]
پرنړه یې وي په خړو[5] پېژندونه[6]
که بداى سوني[7] وبولي[8] خلق وایي
دا وینا ده رښتیانیه[9] له رښتو[10] نه
که یې روزلي ووایي رښتیا خبره
نور ووایي دا خو سوني دی تېرونه[11]
هو درهم ښندي هر چاله لویه برخه
د درهم د خاوند هر خاى پرتمونه[12]

---

[1] وینه د (وی) مزید علیه د (باشد) په معنی. [2] ژبور ــ لسان ــ سخنور. [3] ویاړونه ــ افتخارات. [4] نتلی ــ زبون. [5] خړه ــ بدي. [6] پېژندون ــ معرفي. [7] سوني ــ کذب. [8] وبولي، ووایي، بگوید. [9] رښتیانیه: راستي. [10] رښتون: صادق. [11] تېرون ــ تجاوز. [12] پرتم ــ شوکت ــ مهابت.

درهم ژبه ده که څوك ژبور کېږي
ده وسله[1] که څوك په کاندي قتالونه[2]

دا اوه بيته چې زموږ لاس ته راغلي دي ـ د پښتو ژبې د دريمې هجري پېړۍ ډول او ادبي صبغه او رنګ راښيي.

که موږ د عربو د ادبي تاريخ کتابو ته رجوع وکړو؛ نو هلته د ابن خلاد ذکر مومو، لکه چې دمخه مې دده د ژوند لنډ حال ځني رانقل کړ؛ خو د ابن خلاد هغه عربي شعر چې زموږ هاشم سرواني په پښتو ترجمه کړی دی ياقوت حموي يې رانقل کوي، چې دلته يې زه د پښتو شعر د مقايسې لپاره را اخلم:

من کان بملک درهمين تعلمت
شفتاه انواع الکلام فقالا
و تقدم الفصحاء فاستمعوا اليه
ورايته بين الورى مختالا
لولا درهمه اللتى فى کيسه
لرايته شر البرية حالا
ان الغنى اذا تکلم کاذبا
قالو صدقت وما نطقت محالا
و اذالفقير اصاب قالو لم تصب
و کذبت يا هذا و قلت ضلالا
آن الدراهم فى المواظن کلها
تکسو الرجال مهابة و جلالا
فهى اللسان لمن اراد فصاحته[3]
و هى السلاح لمن راد قتالا

---

[1] وسله ـ سلاح ـ د جنګ اسباب. [2] پټه خزانه ص ۵۹.
[3] معجم الادباء ج ۷ ص ۶۱.

## مقایسه او نتیجه:

د پښتو دا ادبي نخښه چې موږ په تحلیلي کتنه وکورو او د امیر کروړ له هغه لومړني شعره سره یې مقابله کړو؛ نو له مقایسوي تحلیله داسې نتیجه اخلو:

(۱) په دوهمه هجري پېړۍ کې د پښتو ژبه او شعر په ور کې سوچه او خالص و: خو په درېمه پېړۍ کې د عربي ژبې لغوي او ادبي اغېزې پرې شوې دي او د عربي فکر او ادب اثر په هغو ځایو کې غالب شوی دی، چې د عربو د حکومت اثر هلته ډېر و، یعني په خراسان او د پښتونخوا پر غربي څنډو تر زابلستان او کابل پورې دا عربي اثر خپور شوی و.

(۲) په درېمه هجري پېړۍ کې لا پښتو ژبې ځینې هسې لغتونه او کلمات او تعابیر درلوده چې اوس نشته او د هاشم په دې شعر کې خوندي دي، مثلاً ویارونه- خړی) سونی- بلل- تېرونه، چې اوس یې رېښې په ژبه کې بل راز شته- مثلاً ویاړ- ویاړل- سونی ویشتل- تېری کول.

(۳) د هاشم دغه قطعه شعر د بحر او وزن له پلوه هم عربي بحورو او عروضو ته نژدې ده، حال دا چې د امیر کروړ شعر وزناً او عروضاً ځانته خاص رنګ او صبغه لري.

نو ددغو درو، نتیجو تر لوستلو وروسته وایو چې ابو محمد هاشم د پښتو په ادبي تاریخ کې د عربي فکر او ادبي تحول اول نماینده او ښکارندوی دی او دده دا یوه قطعه شعر د خپل عصر د ادبي حالت څرګندونه په ښه ډول کوي.



# څلورم څپرکی

## لودیان

### (۳۵۰_۴۰۰ هـ)



لودیان هم لکه سوریان د پښتنو یوه مشهوره کورنۍ ده چې د سلطنت او مشرتابه مرکز وه او پس له (۳۰۰ هـ) په شرقي پښتونخوا کې ددې کورنۍ د پاچاهانو نومونه اوریدل کیږي؛ ځکه چې دا کورنۍ هم په حکمدارۍ او پاچاهۍ او هم په ادب کې نوم لري؛ نو دلته ددې تاریخ لنډ راوړل کیږي.

لودي د پښتنو یوه قبیله ده، چې دغه کورنۍ هم له دغې قبیلې څخه وه او د الپتګین او سبکتګین د غزني د لومړیو پاچاهانو په عصر کې (۳۵۱_ ۳۹۰ هـ) له دې قبیلې څخه شیخ

حمید پر ننګرهار او پېښور تر ملتانه حکمراني درلوده او تر ده وروسته "نصر" چې زوی يې و پاچا شو او ملتان يې د سلطنت مرکز و. شیخ حمید لودي د (۳۵۰ هـ) په شاوخوا کې د راجه جي پال له خوا له لغمانه تر ملتانه حکمدار و د (۳۵۱هـ) په شاوخوا کې چې پر جیپاله له غربي خوا کومې حملې کېدې، حمید له ده سره کومک کاوه او په داخل کې يې آزادي او استقلال درلود؛ خو بیا چې سبکتګین پاچا شو؛ نو حمید روغه ورسره وکړه او په (۳۹۵_۳۹۶ هـ) چې سلطان محمود پر ملتان حمله وکړه، د شیخ حمید لمسی ابوالفتوح داود له دې کورنۍ ځخه پاچا و؛ نو يې ججه ومنله خو تر (۴۰۲ هـ) دمخه سلطان محمود دی ونیو او په غزنه کې يې بندي کړ[1] ګردېزی لیکي، چې: محمود په (۴۰۱هـ) د ملتان قرامطه سره ومروړل او داود بن نصر يې غزني ته راوست او د غورك[2] په کلا کې يې بندي کړ، خو هورې ومړ[3].

که څه هم پخواني مؤرخین د شیخ حمید د کورنۍ افغانیت ته اشاره کوي؛ مګر فرشته تصریح کوي چې دوی پښتانه وو او تر ده وروسته نور مؤرخین هم لکه حیات خان په حیات افغاني او شېر محمد په خورشید جهان او ملیسن انګرېز په تاریخ افغانستان کې دوی پښتانه بولي؛ خو اوسني ځینې مؤرخان ددې کورنۍ پښتونواله نه مني[4] او دوی عربي نژاد ګڼي مګر د پټې خزانې مؤلف هم دوی پښتانه بللي او پښتو اشعار يې ځني

[1] فرشته ص ۱۷_۲۷.

[2] غورك_ د کندهار شمال غربي خوا ته ۳۰ میله دی.

[3] زین الاخبار ص ۵۵.

[4] مثلاً سید سلیمان ندوي دوی عرب ګڼي (تعلقات هند و عرب ص ۳۲۸).

رانقل کړي دي.

پټه خزانه خپل سند هم ښيي او دا مطالب له (کلید کامراني) څخه نقل کوي او کلید کامراني هم له یوه کتابه اقتباس کوي چې (اعلام اللوذعي في اخبار اللودي) نومېږي؛ ځکه چې دا کتاب په (۶۸۶ هـ) د یوه لودي سړي له خوا کښلی شوی دی نو د دوی د پښتونوالۍ مهم او زوړ سند هم دغه دی او موږ کولای شو چې ددې کتاب پر تصریح اعتماد وکړو[1].

له دې کورنۍ څخه پخوانو مؤرخانو درې تنه (حمید ـ نصر ـ داود) ذکر کړي دي، چې پاچاهان وو؛ مګر پټه خزانه د شیخ حمید یو وراره شیخ رضي هم ذکر کوي چې ده د خپل تربور سره یوه شعري معارضه او مناقشه کړې ده.

د لودیانو دا سلطنتي او ادبي کورنۍ که څه هم سلطان محمود منحله کړه او پس له داود بل پاچا نه شو پاتې؛ مګر وروسته هر وخت لودیان په تاریخ کې نوم لري. له دې څخه مشهور او نامدار خلك راوځي او په (۸۵۵ هـ) بیا د ټول هند سلطنت نیسي او د لودي پاچاهانو برم تر (۹۳۲هـ) پورې په هند کې دوام کوي سلطان بهلول ـ سکندر ـ ابراهیم ددې قبیلې مشهور شاهان دي چې د پښتو ادب ممیزه له دوی سره د سلطنت په ډول ملګرې ده؛ ځکه چې دا کتاب زه د عصر او زمان د تسلسل په لحاظ لیکم؛ نو به د شیخ حمید د کورنۍ ادبي آثار دلته راوړم او د نورو لودیانو آثار به پر خپل خپل موقع دروښیم:

[1] د کلید کامراني او اخبار اللودي شرح به په دې کتاب کې پر خپل ځای راشي.

# (۳، ۴) شیخ رضي او نصر لودي

شیخ رضي او نصر لودي دواړه د شیخ حمید له کورنۍ څخه دي چې رضي د حمید وراره او نصر یې زوی دی او د مؤرخانو په قول تر شیخ حمیدٔ وروسته دده زوی نصر پاچا شوی دی او رضي سلطنت ته نه دی رسېدلی.

د پښتو ژبې ددغو دوو پخوانو شاعرانو احوال پټه خزانه داسې راوړي:

((ذکر د امیر الفصحا شیخ رضي لودي: پوه شه په دې چې کامران خان ابن سدو خان په ښهر صفا[۱] کې په سنه ۱۰۳۸ هجري یو کتاب وکېښ چې کلید کامراني یې نوم و په دې کتاب کامران له کتابه د شیخ احمد بن سعید اللودي چې په سنه (۲۸۶ هـ) یې کښلی او نوم یې ((اعلام اللوذعي في اخبار اللودي)) دی هسې نقل کا چې شیخ رضي لودي د شیخ حمید لودي وراره و چې شیخ حمید په ملتان پاچا شو نو یې خپل وراره پښتونخوا ته ولېږه، چې د هغو غرو خلك د اسلام دین ته راولي. شیخ رضي راغی دوه کاله د کسي[۲] په غرو ګرځېده او

[۱] ښهر صفا ـ د کندهار دېرش میله شمال شرقي خوا ته د کابل پر لار یو ځای دی.

[۲] د کسي غر ـ پښتانه د سلیمان غر په دې نامه بولي.

هلته یې ډېر مخلوق مسلمان کړ نقل هسې کا نصر د شیخ حمید زوی په ملتان کې د ملاحده[1] له استازو سره کښېناست او له دوی څخه یې د الحاد او اسماعیلي فرقې عقاید زده کړل

[1] د ملاحده استازي یعنې د ملحدانو قاصد_ ملاحده او اسماعیلیه او قرامطه د اسماعیلي شیعګانو درې فرقې دي اکثرو مؤرخانو دا نومونه سره ګډ کړي دي مګر جلا جلا فرقې دي قرامطه تر (۲۰۰ هـ) دمخه په بحرین او خلیج فارس او عراق کې ښکاره شول؛ مګر اسماعیلیه په (۲۹۶ هـ) په افریقا کې پیدا او په (۳۵۶ هـ) مصر ته راغله اما ملاحده د حسن صباح هغه باطنیه فرقه ده چې په (۴۸۳ هـ) په خراسان کې پیدا شول او د لودیانو تر عصر وروسته نو ځینو مؤرخانو دا نومونه سهواً سره ګډ کړي دي.

حقیقت خو دادی چې په ملتان کې د اسماعیلي فرقې زور و او دوی د مصر له فاطمي اسماعیلي ډلې سره تړلي وو چا چې دوی قرامطه یا ملاحده بللي دي اشتباه ده؛ ځکه چې تر (۳۴۰هـ) وروسته قرامطه له ترقۍ څخه لوېدلی دی او هم قرمطي ډلې د مصر فاطمي خلفاوو تش په نامه منل حال دا چې د ملتان اسماعیلیانو دوی په ښه ډول منل او ښاري مؤرخ هم تصریح کوي چې دوی د فاطمیانو تر اثر لاندې او په جمعه او خطبه کې هم مخصوص شعابر لرل او په اذان کې (حی علی خیر العمل) وایه چې دا ټول د قرمطیانو شعایر نه دي نو داسې ښکاري چې اصلاً د ملتان دغه خلک اسماعیلي فاطمي وو (تعلقات هند و عرب ص ۳۱۷).

دا اشتباه قدیمه ده ګردېزي چې خپل زین الاخبار په (۴۴۱هـ) په غزني کې کښلی، دی هم د ملتان قرامطه یادوي ابن اثیر (ج ۹ ص ۱۳۲) هم دوی بد عنقاده ملحدین بولي؛ نو ښایي چې د اخبار اللودي لیکوال هم له دغو تاریخو څخه متاثر شوی وي په هر صورت د پټې خزانې څخه ښکاري چې لودیان اسماعیلي یا ملاحده نه وو؛ بلکې دا د مخالفینو له خوا یو تور و چې پر دوی اړول کېده ښایي چې په ملتان کې به ددغو فرقو تابعان اوسېدل چې سلطان محمود د هغو په بهانه پر ملتان یرغل کړی او لودیان یې بدنام کړي وي.

او وګورهېدی[1] د دوی په اعتقاد ملحد شو، چې شیخ حمید رحمه الله وفات شو؛ نو یې پر ځای نصر کښېناست او د الحاد ترویج یې غوره کړ او قرامطه یې راوستل. شیخ رضي چې سوچه مسلمان و خپل تربور نصر ته یې داسې پارکي وکښل او وروایې ستول:

## پارکي[2]

د الحاد په لور دې ترپلل[3]
ګروه[4] دې زموږ وکوراوه[5]
موږ رونلی[6] په زیارنه[7]
تا په تور وتوراوه[8]
لرغون ولې ګروهېدلې[9]
چې دې ګوښې[10] اړاوه[11]
هغه ګروه چې دې اوس لړه[12] کړ
چې پارو دې رڼاوه[13]

---

[1] ګروه اعتقاد و ګورهیدی، یعني معتقد شو (ګروید).
[2] پارکي- د شعر یوه قطعه- دا کلمه د سلیمان ماکو په تذکرة الاولیاء کې هم شته. [3] ترپلل اوس ترپلودل وایو یعني غورځېدل. [4] ګروه- اعتقاد [5] وکوراوه اوس کروه کول وایو یعني باطلول، وکوراوه یعني باطل دې کړ.
[6] رونلی- له رونل څخه چې اوس روڼول وای. [7] زیارنه- اوس زیار د کوښښ په معنی شته. [8] توراوه- یعني تور دې کړ، تهمت زده دې کړ.
[9] یعني په وادې ولې اعتقاد کاوه، ولې دې ایمان پر راوړ. [10] ګوښې- یوازې، روسته. [11] له اړول یعني ګرځولو څخه فعل دی. [12] لړه- داړول له ړېښې څخه. یعني تبدیل دې کړ [13] رڼاوه- یعني روښانه کاوه یې.

لودي ستا په نامه سپك شو
که هر څو مو درناوه[1]
نصره نه مو يې له کهاله[2]
لودي نه يې په کاوه[3]
زمونږ رغاده[4] ستا له ګروهه
دور ځلوي[5] په رغاوه[6]

شیخ احمد لودي هسې نقل کا، چې نصر لودي هسې د شیخ رضي غبرګون[7] وکاوه:

د الحاد په تور تورن[8] سوم
زه لرغون څو ملحد نه يم
زما ذښنه[9] هسې تورا[10] کړي
که ملحد يم د ښنه يم
له اسلامه نه ترپلمه[11]
تورانو[12] ښه په ترپله يم

---

[1] درناوه ـ له درنول څخه، یعني که هر څو مو لودي معزز کاوه. [2] کهاله ـ یعني له کهوله او خاندانه. [3] کاوه ـ کاوه کي ـ کوي په قديمو نومو کې راغي ـ د سردار او هوښيار او زعيم په معناوو د کيانيانو قديمه کورنۍ په دغه نامه وه؛ لکه کی قباد، کی خسرو وغيره د کيدار او کلر په نومو کې هم شته. [4] رغا [5] ورځلوي ـ یعني لو ورځ او قيامت. [6] او راغاوه دا دواړه کلمې د (روغ) یعني درست له ريښې څخه دي، ځينې رغول یعني بېزاره کېدل او رابطه ختي شلول ـ د بيت معنی داده: چې مونږ ستا له عقيدې څخه بېزاره يو د قيامت د ورځې په بېزارۍ.
[7] غبرګون ـ جواب. [8] تورن ـ تهمت زده. [9] دښن ـ دښنه يې جمع ده. [10] تورا ـ د تور له ريښې څخه ـ تهمت ويل ـ مګر اوس مستعمله نه ده. [11] نه ترپلمه یعني نه ځم ـ نه ښغلم ـ ترپلل اوس ترپلودل وايو. [12] یعني له تورانيانو څخه يا له تور ويونکيو څخه تښتم ـ د سبکتګين کورنۍ توراني وه چې د لوديانو سره يې رقابت لاره.

ګروه مې هغه لرغوني[1] دی
اوس هم کروړ[2] په لرغونه یم
د اسلام پر هسک[3] به ځلم
و تورانو ته تیاره یم
د لودي زوی سنتي[4] یم
د حمید له لوړ کهاله یم
توراني دښمن چې وایي
زه له ګروهه په اړه یم[5]
دا یې تور تاسې درو[6] هوي
زه مومن ستاسې په تله یم
د دښمنو وینو مغبزه[7]
زه لودي یمه څوزه یم[8]

په دې ډول پټه خزانه د خپلو قوي اسنادو په اتکاء ددغو دوو تنو پخوانو پښتنو مشرانو اشعار موږ ته سپاري چې د پښتو په ادبي تاریخ کې ډېر مهم دي او هم د ژبې په تحول کې ښې نتیجې ځنې ایستلای شو چې لاندې به یې ولولې:

[1] یعني دین او اعتقاد مې هغه پخواني دی، لرغوني یعني قدیم.
[2] کروړ ـ ټینګ او محکم. [3] یعني د اسلام پر اسمان به ځلېږم د ځلم فعل اوس عام نه دی. [4] یعني سني او د سنت تابع یم. [5] اړه: له اوړېدلو څخه د الحادیه معنی. [6] دروهوي: یعني دروهي مو مګر اوس دروهول نه وایو دروهل مستعمل دی. [7] مغبزه: مه اروه اما اوس (غبزل) مصدر مستعمل نه دی. [8] پټه خزانه (۷۱) مخ.

## تحلیلي کتنه او نتیجه:

د رضي او نصر دا اشعار چې موږ ګورو او د پښتو له دمخنیو او وروستنیو اشعارو سره یې مقابله کوو داسې نتایج ځنې اخلو:

(۱): د (۲۵۰ هـ) تر حدودو پورې لا د پښتونخوا پر شرقي خواوو د عربي اثر لږ و، که څه هم د هاشم سرواني نظم د لودیانو تر عصر دمخه دی؛ مګر ځکه چې د پښتونخوا پر غربي څنډو د عربو د فکر او حکومت او ادب اثر ډېر و؛ نو د هاشم په نظم کې دغه اېغزې ښه ښکاري، اما د لودیانو نظمونه که څه هم تر هاشم وروسته دي خو د پښتو سوچه توب او د ژبې لغړوالی یې قوي دی او د عربي اثر لږ ښکاره کوي.



(۲): د لودیانو له دغو نظمونو څخه ځیني مړه او متروک مواد لاس ته راځي او په دې خاصیت کې د امیر کروړ شعر ته ورته دي او دغه آثار موږ ته راښیي چې د غزنوي دورې تر اوایلو پورې لا دې ژبې په شرقي خوا کې مخصوص ډول او رنګ درلود، چې وروسته یې هغه رنګ بدل شو.

مثلاً د تور یعني تهمت له مادې څخه به دغو ویناوو کې تورن د صفت په ډول او تورا په مصدري معنی او فعل یې (وتوراوه) او هم تورانې داسې کلمات دي چې اوس نشته دغسې هم (وګوراوه) او رغا او رغاوه او نور ډېر نادر مواد لري چې اوس مړه دي.

(۳): د دوو عربي لغاتو (الحاد او سنتي) څخه ښکاري چې

د عربي ژبې اثر په دغو وختو کې تش په دیني اصطلاحو پورې محدود و او دغسې عربي اصطلاحات په ژبه او ادب کې ننوتلي وو؛ خو نور د ژوند ځانګې څنې تشې وې.

(۴): له دغو ویناوو څخه ښکاري چې په دغو وختو کې د پښتنو نفوذ او د پښتو د خپرتیا لمن شرقاً تر ملتانه وه او د پښتونخوا له غرو څخه پښتانه د شرق لوري ته ډېر خپاره شوي او د ژبې ادبي نفوذ یې هم له بادغیس او هراته د اباسین تر څنډو او ملتانه خپور شوی دی.

(۵): لودي سلطنتي او ادبي کورنۍ که څه هم له پښتونخوا څخه لېرې په ملتان کې مېشته وه؛ مګر دوی خپل پښتني تهذیب خوندي کړی و او خپله ژبه یې ساتلې وه او د اسلام سوچه خدمتګاران وو دوی غوښته چې د پښتونخوا په ټولو غرو کې د اسلام رڼا خپره کاندي. لکه چې شیخ رضي لودي په همدې مقصد د سلیمان په غرو کې تبلیغ کاوه او د لودیانو د الحاد خبرې فقط د دښمنانو او د دوی د سیاسي مخالفینو او رقیبانو (د سبکتګین د کورنۍ) پروپاګنډ و څکه چې نصر لودي په خپل نظم جواب کې له ځانه ښه دفاع کړې او خپل عقاید یې د پخوانو په ډول د سنت تابع بلل دي.



# پنځم څپرکی

## د پښتون کورنۍ



### یوه تاریخي کتنه:

د پښتنو په تاریخ کې یوه ډېره مشهوره کورنۍ شته چې موږ یې د وجود وخت پس له (۳۰۰ هـ) څخه تخمینولای شو، که څه هم ددې کورنۍ په باب کې ډېر متفرق او ډول ډول روایات د پښتنو په موږخینو کې شته او سړی نه شي کولای چې په ښکاره او مبرهن ډول د دوی احوال ولیکي؛ مگر د ملي عنعناتو څخه چې تر اوسه د پښتنو په منځ کې شته او هم له تاریخي لیکنو څخه سړی ځنې نتیجې اخیستلای شي او ددې کورنۍ د نامدارو سړیو حال لږ لږ ځنې څرگندولای شي.

ددې کورنۍ لومړی مشر پښتون بابا (پتهان)[1] دی چې نوم

[1] پتهان د پښتون د کلمې هندي تلفظ او تصحیف دی.

یې کیس و. د کسي غره (کوه سلیمان) ته منسوب [1] او عربي نوم یې مؤرخینو (عبدالرشید) کښلی دی چې ده درې زامن درلودل او د پښتنو مشهور رجال او نیکونه دي:

اول ببټ یا بېټني دوهم سړبن دریم غرغښت.

له ملي عنعناتو او تاریخي لیکنو څخه داسې ښکاري چې دې کورنۍ د غور له غرو څخه د کسي غره (کوه سلیمان) ته لېږد کړی و او په دغه غره کې اوسېدل او هلته دا کورنۍ ډېره شوه او ډېر شهرت یې وموند او داسې سړي پکې پیدا شول چې د پښتو ژبې شاعران هم وو.

د پښتنو مؤرخان له پخوا زماني څخه ددغې لویې کورنۍ احوال او د سړیو نومونه لیکي، تر ټولو دمخه خورا زوړ مؤرخ سلیمان ماکو دی چې دی پخپله تذکرة الاولیاء کې د ببټ نیکه،



[1] کیس پښتو کلمه د (عقل او فراست او بصیرت) په معنا ده په کندهار کې مور زوی ته د کنایې او تعریض په ډول وایي: کیس دې کم سه! په پښتو کسل لیدنه او بصیرت دی وکسه یعنې وګوره؛ نو (کیس) هم بصیر او سترګه ور او عاقل دی کاسي د یو قوم نوم له دغې ریښې څخه دی چې په غور کې تر اوسه هم کاسي د یو خای نوم شته، ملایانو دغه نوم معرب (قیس) کړ او په مخزن افغاني کې د عربیت افغساني وتراشلی شوې چې دغه قیس عبدالرشید د خالد له خپلوانو څخه و او د حضرت رسول(ص) په حضور مشرف شوی و؛ مګر دا افسانه حقیقت نه لري او نه په اسلامي تاریخ او سیر و یا د احادیثو په کتابو کې د قیس عبدالرشید نوم راغلی دی او نه په بل قدیم کتاب کې دا افسانه شته او نه قدیم سند لري. د حضرت رسول(ص) د ژوندون وقایع او هغه وفود چې له نورو هېوادو د دوی مبارک حضور ته راغلي وو ټول وقایع یې د سیر او مغازي او فتوح په کتابو کې منضبط دي؛ خو دا د قیس افسانه بالکل نشته؛ نو دا ویلای شو چې دا کیسه فقط د زرم هجري کال په حدودو کې پیدا شوې او تاریخي اصالت نه لري.

سړبن او اسماعيل احوال لړ لږ ليکي او هم د دوی اشعار خوندي کوي، دده د ليك نتيجه داده:

((ښځني د کسي پر غرو باندې اوسېد ، د خدای په عبادت بخت و، سړبن دده ورور او اسماعيل يې زوی و چې سړبن په زويتوب قبول کړی و. د اسماعيل مرقد د کسي په غره کې دی...))[1]

له دې کورنۍ ځخه يو بل مشهور سړی خربښبون دی چې پټه خزانه او نور مؤرخان دده نوم او احوال ذکر کوي، دا سړی هم د سړبن زوی دی، د کسي په غره او د کلات په غونډان کې اوسېد او په مرغه کې په (۴۱۱ هـ) وفات شو[2] زما مقصد دلته دا نه دی چې ددغو سړو احوال راوړم؛ ځکه وروسته چې د دوی اشعار ذکر کوم نو د دوی پر ژوندانه به مفصلاً وږغېږم، دلته فقط دومره وايم چې مؤرخان ددې کورنۍ پر وجود متفق دي او ابو الفضل مؤرخ په آيين اکبري کې او نعمت الله هروي په مخزن افغاني کې ددغې کورنۍ رجال او شهرت بيانوي او دواړه کتابونه د (۱۰۰۰ هـ) په شاوخوا کې کښل شوي دي.

**خلاصه**: له زرو کلونو راپدېخوا چې کوم عنعنات او تاريخي کتب موجود دي ددغې کورنۍ شهرت راښيي او ددوی ادبي آثار او اشعار هم رانقل شوي دي چې د پښتو په ادبي تاريخ کې ډېر اهميت لري او د قدماوو د دورې په آثارو کې غوره او خوندور او د ملي احساساتو ډك همدغه منقول اشعار او سندرې دي چې لاندې يې بيانوم:

[1] د سليمان ماکو تذکره پښتانه شعرا ج (۱) ص (۶۵).
[2] پټه خزانه ص ۲۱.

# (۵) بیټ نیکه

## (۳۵۰ ه)



دا سړی په پښتنو کې ډېر شهرت لري او له قدیمې زمانې څخه مؤرخانو دده نوم او حال لیکلی دی او په پښتني عنعنه کې هم دا سړی یو خورا لوی پښتون او مشهور نیکه ګڼل کېږي.

ددې عنعنې تصدیق په خارجي مؤرخینو کې ابو الفضل علامي (۱۰۰۶هـ) د اکبر مغولي پاچا د دربار مؤرخ په دې ډول کوي: ((په پښتنو کې درې ورونه بېټني او غرغښت او سړبن ډېر مشهور نیکونه دي))[1].

د بېټ نیکه نوم په تاریخو کې بېټني او بټن هم راغلی دی او نعمت الله هروي (نورزي) چې په (۱۰۱۸ هـ) یې مخزن افغاني تالیف کړی دی، هم د شیخ بېټني او دده د اولادې احوال مفصل راوړي او ځینو نورو تاریخو ته حواله ورکوي چې

[1] آیین اکبري ج ۱ ص ۱۹۱.

مجمع الانساب او معدن اخبار احمدي او تاریخ ابراهیم شاهي له هغو څخه دي او تر ده دمخه کښل شوي دي. تر نعمت الله وروسته اخوند درویزه ننګرهاري (چې تر ۱۰۴۸ هـ) پورې ژوندی[1] و هم د شیخ بیټني او دده اولاد ذکر کوي او د پښتنو له مشاهیرو څخه یې ګڼي[2] مګر تر دغو ټولو یو پخوانی او زوړ کتاب چې د بیټ نیکه ذکر او دده اشعار پکې راغلي دي، د سلیمان ماکو د بارك خان د زوی تذکرة الاولیاء ده چې پس له (۶۱۲ هـ) لیکلی شوې ده، ددې کتاب هغه یو څو پاڼې چې شته د شیخ بیټني ذکر داسې کوي: ((نقل هسې کاندي یارانو چې په روزګار د شیخ بیټني دده ورور چې سړبن نومېد او پر شیخ بیټني هم خورا ګران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به یې ویل خپل وروړ ته، بیټني خپل زوی اسماعیل ورکاوه او لوی شو د سړبن په کاله، خدای مهربان د اسماعیل په برکت، سړبن ته نصیب کړه دومره زامن چې اوس تروس تېر شو ګڼون د هغو...))[3]

نعمت الله هم دغه عنعنه په مخزن افغاني کې هسې لیکي:

((نقل است که سربنی برادر کلان بیتنی مفلس بود و از سعادت فرزند هم محروم بود، روزی سربن بخانهٔ برادر خود که شیخ بتنی باشد آمده عرض کرد. که ای برادر! دعای تو در باب جمیع خلایق مستجابست، در باب من توجه نمیفرمائی. حضرت شیخ بیت فرمود که یک پسر مرا ببر و پرورش نما... آخر الامر شیخ پسر خود اسماعیل را ببرادر خود سربنی

[1] تذکره علمای هند ص ۵۱.

[2] تذکرة الابرار او پښتو مخزن اسلام.

[3] د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء قلمي.

داد[1] ...)) په دې ډول زموږ د لومړي مؤرخ سلیمان ماکو قول خو تر نعمت الله څلور سوه کاله دمخه دی مګر یو له بله ربط او نژدېوالی سره لري او دا ښکاره کوي چې تر زرم هجري کال مخکې هم د بېټ نیکه له بابته پښتنو معنعن او مستند روایات درلودل.

د بېټ نیکه نور احوال موږ ته نه دي معلوم او نه دده د ژوند وخت مؤرخانو تصریح کړی دی، فقط د پټې خزانې له لیکلو څخه ښکاري چې اسماعیل د بېټ نیکه زوی نیو[2] د خرښبون معاصر و او دغه سړی په (۴۱۱ هـ) مړ شوی دی[3] نو چې د اسماعیل د ژوند وخت د (۴۰۰ هـ) حدود وي ښايي چې پلار او اکا یې هم د (۳۵۰ هـ) په حدود کې ژوندي وي.

## د بېټ نیکه اشعار:



د پښتو په پخوانو اشعارو کې د بېټ نیکه یو مناجات ډېر قیمتي دی او دا ادبي ټوټه سلیمان ماکو پخپله تذکره کې هسې راوړې:

((نقل کاندي چې شیخ بېټني سپین ږیری شو نو ده به هر کله څښتن ستایه او رب ته به یې درخواست کاوه چې زما په کهول او سړبن او غرغښت په کهول برکت کښېږده! بادار قبول کړ، دده درخواست، او ډکه شوه، څمکه د پښتونخوا د دوی په کهول. نقل کاوه شي چې حضرت شیخ بېټني به ډېر تر ډېره دا سندرې لولولې او کسې غره کې به ګرځېده په شپې.

---

[1] مخزن افغاني قلمي.

[2] زوی نیو. پسرخوانده.

[3] پټه خزانه ص ۲۱ د خرښبون حال به وروسته راشي.

لویه خدایه لویه خدایه		ستا په مینه په هر ځایه
غر ولاړ دی درناوی کښي		تول ژوي په ځاری کښي
دلته دي د غرو لمنې		زموږ کړدی دي په کښي پلنې

دا وګړي دېر کړې خدایه!
لویه خدایه لویه خدایه!

دلته لړ زموږ اور بل دی		ووږ کورګی دی، ووږ بورجل دی
مینه ستا کښي موږ مښته یو		بل د چا په ملا تله نه یو
هسك او مځکه نغښته ستا ده		د مړو وده له تا ده

دا پالنه ستا ده خدایه
لویه خدایه لویه خدایه![1]

لکه چې وویل شوه دا شعر د (۳۵۰ هـ) په حدودو اړه لري او له الفاظو او کلماتو یې هم دغه مطلب ښکاري لغات او کلمات چې پکښې راغلي دي اوس ځینې په دغو معناوو مړه دي، مثلاً ژوی او س څوك د مخلوق او حیوان په معنا نه وایي فقط په زړو ادبیاتو کښي (یې) کله کله وینو او که دغه کلمه په فعلي معنی واخلو یعني (ژوند کوي) دا تعبیر هم زوړ دی او اوس مستعمل نه دی دغسې هم هسك دلته د اسمان په معنی دی او دا کلمه په دغه مفهوم دېره زړه ده او لکه چې تاسو دمخه د امیر کروړ او نصر لودي په کلام کښي ولوستل، پخوا یې اسمان هسك باله مګر اوس هر لوړ شي ته هسك وایو او دا لغوي تحول وروستنی دی لکه د عربي سما چې اسمان ته هم وایي او د هر ځای لوړې خوا ته هم وایي. پر دې شعر د پردیو ژبو اغېزه هم لږ ده او له هغو زړو آثارو څخه دی چې په غرو کښې ویل شوي دي او د عربي او پارسي ژبو له اغېزو څخه تش وي لکه د امیر کروړ او لودیانو

[1] د سلیمان ماکو تذکره، د پښتانه شعرا ج ۱، ص (۵).

اشعار مثلاً په ټول شعر کې یوه پردی، کلمه نشته او فقط د (خدای) مشترکه کلمه لري چې هغه هم ښايي د پښتو په ريښتو کې ډېره نژدې وي او ددې سوچه توب علت هم دادی چې بېټ نیکه په کوه سلیمان کې ښېل اوسېد او پر ژبه يې د نورو ژبو اثر نه و شوی. د شعر وزن او عروض یې هم د پښتنو ملي بدلو ته ډېر ورته دي او يو تکرارېدونکی کسر لري (لویه خدایه لویه خدایه) چې دغه قدیم ادبي رنګ تر اوسه هم د پښتنو په بدلو کې لیدل کېږي او ښکاري چې يو پخوانی ادبي مزیت دی. دا شعر د مضمون او ادبي فکر له پلوه هم پخواني اريايي سندرو ته ورته دي او لکه چې تاسو ددې کتاب په لومړي ټوك کې ولوستل په پخوانو اريايي اقوامو کې (کوله ـ کهول) څومره اهمیت درلود؟ او پر دغه کهول باندې اکثر اجتماعي تشکیلات بنا کېده او دوی هر کله خپلې کورنۍ او کهولونه ډېرول او کورنۍ یې د ټولو نعمتونو مرکز ګڼله[1] د بېټ نیکه دا شعر که له ریګویدا سره مقابله کړو نو د مضمون له پلوه له دې مناجات سره نژدې والی لري: ((خدای د ژوندون واکمن دی مالك الملك دی، دی ښاغلي کورنۍ سرو ته ورکوي؛ نو خدایه! موږ ستا مريي یو! بې لاولاده. بې ښېګړې مو، مه وژنه!...))[2].

د پښتنو مؤرخان او د اسماء الرجال خاوندان لیکي: چې اسماعیل په اصل د بېټ نیکه زوی و او لکه چې دمخه مو ولوستل د خپل تره سړبن په کور کې لوی شوی و؛ نو دی په ((سړبني)) مشهور دی.

---

[1] ... د ګوستاولو بون تمدن هند ص ۱۸۸ ددې کلمې پخوانۍ ريښې د کتاب په لومړيو ابحاثو کې ښودلې شوې دي.
[2] ریګویدا ۷ م باب ۶ م فصل ۷ مه سندره.

لکه سلیمان ماکو چې لیکي: اسماعیل د بېټ نیکه په کور کې لوی شوی و او د سلیمان په غره کې مېشته او هم هورې وفات شو دا مؤرخ وایي:

((د اسماعیل مرقد واقع دی د کسي پر غره چې زه هلته تللی وم...))[1].

دغه روایات نعمت الله هم کټ مټ په مخزن کې داسې تایید کړي:

((چون اسماعیل بسن رشدی رسید از ریاضات شاقه بمراتب ولایت رسید و این شیخ اسماعیل سړبنی پسر حضرت بېټ است... شیخ اسماعیل سړبنی قدس سره صاحب عبادت و ریاضت شاقه بود مقتدای وقت بعلوم لدنی کاشف اسرار طریقت و حقیقت بوده در ولایت روه چون بوطن مالوف رسیدند به مقام خواجه منزل گرفتند و خلایق از جاهای دور بملازمت شتافتند...))[2] سلیمان ماکو او خواجه نعمت الله هروي دواړه وايي، چې: د اسماعیل د ژوندانه ځای کوه سلیمان و، بل ځای نعمت الله تصریح کوي چې دده مزار په هغه ځای کې دی چې (وازه خوا) یې بولي او وازه خوا د سلیمان د غره په لمنو کې ده علاوه پر دغه په پټه خزانه کې هم د اسماعیل احوال لیکل شوي او وایي چې دی د خرښبون معاصر و؛ ځکه چې د خرښبون وفات په (۴۱۱ هـ)[3] دی نو موږ د اسماعیل د ژوند عصر هم دغه ګڼو.

اسماعیل د خپلې کورنۍ مشهور عابد او د خدای دوست سړی و د مخزن افغاني له روایاتو څخه ښکاري چې دی له خپله

---

[1] د سلیمان ماکو تذکره.
[2] مخزن افغاني قلمي.
[3] پټه خزانه ص ۲۱.

کوره په سیاحت هم تللی او له لویو اولیاوو سره ملاقي شوی و[1] او لکه چې تاسو یې په آینده مخو کې لولئ دده او خربښبون د بره خپلوي ده.

## د اسماعیل اشعار:

د اسماعیل اشعار مونږ ته په دوو وسیلو را رسېدلي دي لومړی شعر یې هغه دی چې سلیمان ماکو پخپله تذکره کې په دې ډول رانقل کړی دی.

((نقل کاوه شي چې شیخ ملکیار[2] ستانه به تل تر تله د شیخ اسماعیل ستر ستانه پاړکي[3] ویل او ږغ به یې کاوه دا شیخ د سړبن زوی و)).

تښته وکړه له ابلیسه چې ابلیس لعین ښکاره شي
هلته ورکه پلوشه شي تول نړی توره تیاره شي
سړی وران شي له ابلیسه غوځ د پس په کتماره شي
که هر چا ابلیس خرځ کړه نو یې هله ننداره شي
که سړی ابلیس ته پړ شو نو پر کور د ویر ناره شي[4]

د اسماعیل یو بل شعر چې دده پر خانداني احساساتو دلالت کوي د پټې خزانې لیکوال په دې شرح لیکي:

((هسې وایي، چې: یو وقت خربښبون بابا او اسماعیل د سړبن او بېټني نیکه په مخ کې ناست وو، د دوی کور و د کسې په غره نو خربښبون د پلار او تره له خوا په تنګ او رخصت ماذون

---

[1] قلمي مخزن افغاني.
[2] د ملکیار حال به وروسته راشي.
[3] پاړکی ـ د شعر یوه ټوټه او قطعه.
[4] د سلیمان ماکو تذکره ـ پښتانه شعرا ج ۱ ص ۵۳

شو، اسماعيل نيکه داسې نارې وکړلې)):

کـــــه يون دی يون دی		مـــخ کـــې بېلتـــون دی
له کسې غــــــره څخه		ځـــې خرښبـــون دی
کـــــه وروره وروره!		خرښبــــــون وروره!
ته چـــــې بېلتون کړې		زمـــا ويـــر وګـــوره!
چې ځې مـــــرغې له		تـــورې کـــرغې[1] لـــه
هـــــــمزولي پاته		ځـــې څـــه بـــرغې[2] لـــه
د خـــــــدای دپاره		خرښبـــون يـــاره!
چـــــې هېر مو نه کړې		زمـــوږ کهـــول واړه
زړه مـــــــې رېبړي		يـــار مـــې بېلېـــږي
بېلتون يـــــې اور دی		ځـــان پـــه ســـوځېږي[3]

لکـــه چـــې تاســـو ولوســـتل اســـماعيل يـــو روحـــاني او د متصـوفينو سره مـل سړی وی؛ نـو ځکـه دده پـه لومړني شـعر کـې د وعـظ او تلقـين او نصـيحت رنـګ شـته او ځـنې عربـي لغـات هـم پکـې راغلـي دي چـې دده روحـاني حيـات ښکـاره کـوي امـا دوهـم شعر خـاص پـه ملـي وزن دی او د پښتـو ژبـې د مخصوصـو عروضـو او اهـنګ نمايندګي کـوي او پـردي لغـات هـم نـه لـري؛ نـو ځکـه ويـلای شـو چـې دا شعر هـم د پښتـو ژبـې پـه زړه دوره اړه لـري او پـه هغـو اشـعارو کې حسابېږي چې د نـورو ژبـو اثـر لـږ پـرې شـوی دی. داسـې نـارې تـر اوسـه هـم د پښتـو ژبـې پـه افسـانو او نکلونـو کـې شته چې شعري وزن او عـروض يـې مخصـوص دي او پـه يـوه خـاص اهنګ ويل کېږي.

---

[1] کرغه ـ توره او وچه مځکه.

[2] برغه دا کلمه اوس نه ده مستعمله ښايي د نفع او مقصد په معنی وي.

[3] پټه خزانه ۹/ م ددې نارې جواب د خرښبون په حال کې ولولئ.

# (۷) خربښبون

(۴۰۰ هـ)

په پښتو کې دا سړی ډېر شهرت لري او د مشهور سړبن زوی وچې د بېټ نیکه وراره کېږي او ددې کورنۍ یو معروف شاعر دی او دده درې زامن (کند ـ زمند ـ کاسي) هم خورا مشهور دي[1] او پټه خزانه یې احوال داسې لیکي: ((د پښتون بابا د کسي د عبدالرشید لمسی و ـ خاوند ده ته ښکاره کمالات او کرامات ورکړي وو ـ د خدای په عبادت به بوخت و ـ نقل کا چې: د پلار په ژوند کې لا رخصت شو او د خپلو اولادو سره راغی له کسې څخه غوري مرغۍ ته ـ او کله به ولاړ د غنډان غره ته او هلته به یې خدای ستایه او نمانځه[2] او په کال کې به یو وار تلی د خپل تره بېټني نیکه لیدنه به یې کوله او پس له وفاته به یې هم زیارت ته ورتلی خربښبون بابا د شیخ اسماعیل سره چې د بېټني نیکه زوی و لوی شو او هغه وخت چې خربښبون د کسې له غره غنډان[3] ته راتلی؛ نو اسماعیل بابا په ده پسې ډېر وژړل[4] ...)) تر دې وروسته د پټې خزانې لیکوال هغه داستان رانقلوي چې دمخه د اسماعیل په احوال کې ذکر شو او د اسماعیل هغه

---

[1] قلمي مخزن افغاني ۱۴۱ـ ۱۵۰.

[2] یعنې پرستش به یې کاوه.

[3] د یوه غره نوم دی د غلجیو د کلات شرقي خوا ته.

[4] پټه خزانه ص ۱۷

ناري ليکي چې د خرښبون په فراق کې (يې) کړې دي. پټه خزانه د خرښبون هغه د غبرګون (جواب) اشعار هم نقل کوي چې د اسماعيل د نارو په غبرګون کې د خرښبون له خوا ويل شوي وو، دا اشعار څلوريځ (مربع) ګڼل شي:

## د خرښبون څلوريځ

بېلتانه ناره مې وسوه په کور باندې
نه پوهېږم چې به څه وي پېښ په وړاندې
له خپلوانو به بېلېږم په سرو سترګو
دواړه سترګې مې په وينو دي ژړاندې

اسماعيله ستا نارو مې زړګی سوری کی
بېلتانه خرښبون بيا له تا پردی کی
نه هېرېږي که مې بيا نه ستا يادی کی
په چړو د وير به پرې سي د زړه مراندې

څمه څمکه چې اوړد يون مې دی و مخ ته
ديانه څوری[1] به اچوم و ترخ[2] ته
ستاسې ياد به مې وي بس د زړه و سخ ته[3]
که دا مځکه غرونه ټول سي لاندې باندې[4]

---

[1] څوری ـ زاد راه.
[2] ترخ ـ بغل.
[3] سخ ـ خوښي او نېك فال.
[4] پټه خزانه ص ۱۹.

د خرښبون دا جوابي ځلوریځ شعر هم له دې پلوه چې تقریباً ټول پښتو دی او د نورو ژبو کلمات نه لري؛ نو ددې ژبې په ادبي آثارو کې اهمیت لري او دا ښکاره کوي چې تر دې وخته لا په پښتو کې د پردو ژبو کلمات ډېر نه وو ګډ شوي.

پټه خزانه وايي، چې: ((خرښبون د خپل عمر پای ته په مرغه کې ساکن سو او دا مرغه یا غوره مرغه هغه ځای دی چې د کندهار شرقي جنوبي خوا ته د ارغسان او کلات تر منځ د کوږك او کوه سلیمان په لمنو کې واقع ده او لکه دمخه چې وویل شو- خرښبون د غنډان په غره کې هم اوسېد، چې دا غر هم د کلات خوا ته د ترنك په وادي کې دی)).

خرښبون په (۴۱۱ هـ) کال په مرغه کې وفات شو اولاد یې هم هورې اوسېدل؛ خو دده د زوی کاسي زامن بېرته د کسي غره او پښین ته تللي وو او د کند او زمند اولاد په ننګرهار او خیبر پېښور کې خپاره شول[1].

داسې ښکاري چې د خرښبون اولاد ډېر شوی او وروسته دده په نامه ډېر د پښتنو قبایل یادېده؛ لکه چې په (۸۲۰ هـ) میرزا شهرخ د هرات تیموري پاچا کندهار ته راغی؛ نو د غزنین مشران او د پرمل او خرشواني افغانانو مشران دلته دده حضور ته راغلل[2].

دا روایت د هرات د دربار مؤرخ عبدالرزاق سمرقندي راوړی او دا څنې ښکاري، چې خرشواني (خرښبوني) پښتانه په دغو اوقاتو کې هم په غزني په وازه خوا کې راته وو.

---

[1] پټه خزانه ـ ص ۲۱.
[2] مطلع سعد ین ۲ ـ ۳۵۹.

# شپږم څپرکی

## نور پخواني شعراء ۶۰۰ ه

(۸)

### شيخ اسعد سوري

(۴۲۵ ه)

د سوري کورنۍ تاريخي احوال مو دمخه ولوستل او دا راته لوڅه شوه چې د پښتو پخواني او ډېر لومړني آثار په دغې کورنۍ اړه لري او کله چې دوی سلطنت درلود، ادبي ذوق هم ورسره و.

له دې ټبره د پښتو يو بل مقتدر او رژبې شاعر هم راوتلی دی چې نوم يې اسعد او د محمد زوی و، دا شاعر د قدماوو په دوره کې ډېر لوړ مقام لري او د (۴۰۰ ه) په شاوخوا کې ژوندی و، پټې خزانې د (لرغوني پښتانه) په حواله داسې له تاريخ سوري څخه نقل کړي دي.

((شيخ کته په کتاب کې د لرغوني پښتانه له تاريخ سوري هسې نقل کا، چې: اسعد سوري په غور کې اوسېده او هلته د سوري خاندان په پادشاهۍ کې ډېر عزتمند و شيخ اسعد د محمد زوی و چې په کال سنه (۴۲۵ ه) هجري په بغنين[1] کې وفات شو شيخ اسعد ډېر ښه اشعار ويل نقل کا، چې: سلطان

[1] بغنين اوس بغني بولي د زميند اور او غور تر منځ.

محمود غازي پر غور باندې د امیر محمد سوري سره جګړه وکړه او په اهنګرانو[1] یې محصور کا په دې وخت شیخ اسعد هم د اهنګران په کوټ کې و، هغه وخت چې سلطان محمود امیر محمد سوري ونیو او بندي یې بوت غزني ته، نو امیر محمد سوري چې خورا زړور او عادل او ضابط امیر و، له غیرته د بند مړ شو او شیخ اسعد چې دوست یې و د امیر محمد سوري پر مرګ یې ساندې وویلې[2]...)).

په دې ډول اسعد سوري د پټې خزانې په قول په اهنګران کې اوسېد او وفات یې د زمیند اور په بغني کې دی دا شاعر لکه د سوري له تبره چې و د پادشاهانو په دربارو کې معتبر هم و او د امیر محمد سوري سره یې اشنایي او دوستي لرله امیر محمد سوري د غور له مشهورو شاهانو څخه دی چې قاضي منهاج سراج یې احوال داسې راوړي.

((... چون تخت بامیر محمود سبکتگین رسید امارت غوریان بامیر محمد سوری رسیده بود ممالک غور را ضبط کرده گاهی سلطان محمود را اطاعت نمودي و گاه طریق عصیان سپردی و تمرد ظاهر کردی تا سلطان محمود بالشکر گران بجانب غور آمد و در قلعهٔ اهنگران محصر شد و مدتها ان قلعه نگاه داشت و قتال بسیار کرد و بعد از مدتها بطریق صلح از قلعه فرود آمد و بخدمت سلطان محمود پیوست و سلطان او را با پسر کهتر او که شیش نام بود، بجانب غزنین برد چون بحد و دگیلان (نزدیک غزنه) رسید امیر محمد سوری برحمت حق پیوست بعضی چان روایت کنند: که او چون اسیر شد از

---

[1] اهنګران د غور یوه مشهوره کلا وه تر اوسه یې هم خرابې شته.

[2] پټه خزانه ص ۳۷

غايت حميت كه داشت طاقت مذلت نياورد، خاتمي داشت در زير نگين زهر تعبيه كرده بود آنرا بكار برده در گذشت)) [۱].

د پټې خزانې او طبقات ناصري روايت د امير محمد سوري د مرګ له بابته يو راز دی. بيهقي هم ليکي چې سلطان محمود په (۴۰۵ هـ) د بست او جنوبي خوا پر غور حمله وکړه او ويې نيو [۲].

ابن اثير وايي: دا جنګ په (۴۰۱ هـ) و چې د سلطان محمود له خوا د هرات حاکم التونتاش او د طوس حاکم ارسلان جاذب پر اهنګران راغلل او ابن سوري له لسو زرو لښکرو سره د دوی سره سخت جنګ وکړ، خو په پای کې دی ونيول شو او په زهرو يې ځان مړ کړ [۳] حمدالله مستوفي هم ليکي، چې: سوري د غور پاچا له سلطان محمود سره جنګ وکړ خو په پای کې دی مړ شوی [۴] د پارسي شاعر عنصري هم په يوه قصيده کې چې د سلطان مدح کوي دې جګړې ته داسې اشاره کوي:

گرفتن پسر سوری و كشادن غور
هراينه نتوان كرد در سخن مضمر

د مؤرخانو له دغو رواياتو ښه ښکاري، چې محمد سوري په غور کې د سلطان محمود لوی معاصر رقيب او پايتخت يې اهنګران و او زموږ د پښتو ډېر مقتدر او لوی شاعر اسعد هم ددې پاچا سره هورې اوسېد او ددغه پاچا د دربار يو قصيده ويونکی شاعر و. د پټې خزانې مؤلف د لرغوني پښتانه په

---

[۱] طبقات ناصري ص ۱۸۲

[۲] تاريخ بيهقي ص ۱۱۷.

[۳] الکامل ج ۹ ص ۹۱.

[۴] تاريخ گزيده ص ۴۰۶ـ ۴۹۷.

ذریعه له تاریخ سوري څخه یوه بوللـه (قصیده) رانقلوي چې شیخ اسعد سوري د امیر محمد سوري په ویرنه (رثاء) کې ویلې وه او هغه داده:

## د محمد سوري په ویرنه کې یوه بوللـه

د فلک له چارو څه وکړم کوکار[1]
زمولوي هر ګل چې خاندي په بهار[2]
هر غتمول[3] چې په بیدیا غوړېده وکا
ریژوي یې پاڼې کاندي تار په تار[4]
ډېر مځونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار
د واکمن[5] له سره خول پرېباسي مړ سي
د بې وزلو وینې توی کاندي خونخوار
چې له برمه[6] یې زمری رېږي[7] زنګلوکی
له اکوبه[8] یې ډاري[9] تېرو[10] جبار
هم یې غشي سکني[11] ډال د ژوبلورو[12]
رستمان څنې څغلا[13] کاندي په ډار
چې یې ملاوي نه کړېږي په غښتلیو
دا فلک پر وکا څه کاري ګزار

---

[1] کوکار ـ فریاد. [2] زمولوي ـ پژمرد، ګوی. [3] غتمول ـ لاله. [4] تار په تار هم ویل کېږي. [5] واکمن ـ مقتدر ـ شاه. [6] برم ـ دبدبه. [7] رېږي ـ رېږدي. [8] اکوب ـ جلال. [9] ډاري ـ وېرېږي. [10] تېرو ـ تېری کرونکی او ظالم. [11] سکني ـ غوڅوي. [12] ژوبلور ـ جنګي ـ سپاهي. [13] څغلا ـ تېښته.

په یوه ګردښت یې پرې باسي له برمه
نه یې غشی نه لیندۍ وي نه یې سپار[1]
څه تېری څه ظلم کاندې ای فلکه
ستا له لاسه نه دی هېڅ ګل بې له خار
په ورژلو[2] لور[3] نه کړې په زړه کراړیه[4]
پر نتلیو اوروې د غم ناتار[5]
هېڅ روغی[6] مې په زړه نسته ستا له څوره
بېلوي په ژړا ژړ[7] مین له یار
له تېریو دې اوښې څاڅي له اوربځیو
څنې ژاړي په ورټ ورټ[8] ستا له شنار[9]
نه به لاس واخلې له څوره نه به لورې[10]
نه به ملا[11] کړې له بې وزلو[12] له ترار[13]



نه به زړه وسوځوې په هېڅ بانډې
نه به پرېوځې له ګردښته له مدار
نه به وصل کړې مین له بل مینه
نه به درملې[14] ټپونه[15] د افګار
ستا له لاسه دي پراته ژوبل زګېروي[16] کا
هر پلو ته ټپي[17] زړونه په خار خار[18]

---

[1] سپار ـ سپاره یا سپر. [2] ویرژلی ـ غمجن. [3] لور ـ پېرزوینه. [4] زړه کراړی ـ سخت زړه. [5] ناتار ـ تاراج. [6] روغي ـ سلامتي. [7] ژړا ـ شور و فراد. [8] ورټ ـ ورټ ـ د ژړا حال. [9] شنار ـ دا کلمه اوس نه ده مستعمله ـ بنايي معنا یې ظلم وي. [10] نه به لورې ـ نه به پرزو کوي. [11] ملا ـ ملګری. [12] بې وزله ـ بېچاره. [13] ترار ـ مضطرب. [14] نه به درملې ـ علاج به نه وکړي. [15] ټپ ـ زخم. [16] زګېروی ـ د مریض فریاد. [17] ټپي ـ زخمي. [18] خار خار ـ فغان او ژړا.

کله غوځې کاندې مراندې[1] د زړګیو
کله تېرباسې وګړې هوښیار
کله تکې[2] واچوې پر نازولیو
کله څیرې کړې ګرېوان د نمنځي[3] چار
کله غورځوې واکمن له پلازونو[4]
کله کښېنوې په خاورو کې بادار
زموږ پر زړونو دې نن بیا وویشت
و دې ژوبلله[5] په دې غشي هزار
پر سوریو باندې ویر پرېووت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړی په بل دار
یو وار شو اسیر په لاس د میرخمنو[6]
انتقال یې وکړ قبر له بل وار
په سماو[7] یې ودان اهنګران و
په تېکنه[8] و پر درست جهان اوځار[9]
د محمود د ژوبلورو[10] په لاس کښېوت[11]
چې غزنه ته یې باتلی[12] په تلوار
ننګیالیو له قید مړینه[13] ده ښکه
سه[14] یې والوتله هسک ته پر دې لار

---

[1] مراندې ـ د زړه رګونه. [2] تکه ـ صاعقه. [3] نمنځي چار ـ زاهد او عابد [4] پلاز ـ تخت. [5] ژوبلل ـ زخمي کول ـ اوس مستعمل نه دی. [6] میرخمن ـ دښمن. [7] سما ـ د سم له ریښې څخه اوس مستعمل نه دی ښایي معنی کې پخوا اصلاح او انصاف و. [8] تیکنه ـ ښایي د تیک له ریښې څخه به پخوا د عدالت په معنی و. [9] اوځار ـ ظاهر او ښکاره [10] ژوبلور ـ جنګي سپاهیان. [11] کښېوت ـ ګرفتار شو [12] باتلی ـ د بوتلي قدیم شکل دی د بوتلل له مصدره. [13] مړینه ـ مرګ. [14] سه ـ سا ـ روح.

تـر نـرۍ يـې غـوره خـاورې هـديره کـا
د زمريــو پــه ببرېــو[۱] کلــه وي ځــوار[۲]
پـه دې ويـر د غـور وگـړي تـور نمـري[۳] شـول
پــه دې ويــر رڼــا تيــاره ســوله د ښــار
گـوره ځـاخي راڼـې اوښـې لـه دې غرونـو
دا کـړونگې[۴] سـاندې[۵] لـي[۶] پـه شـورهار
نــه هغــه زرغــا[۷] د غرونــو د بيــديا ده
نــه د زرکيــو پــه مســا[۸] دی کتهــار
نــه غتمــول بيــا زرغونېــږي پــه لاښونــو[۹]
نـه بـامي[۱۰] بيـا مسـيده کـا پـه کهسـار
نـه لـه غرجـه[۱۱] بيـا راځـي کـاروان د مشـکو
نـه رادرومـي غـور تـه بيـا جوپې[۱۲] د شار[۱۳]
د پســرلي اوره تــودې اوښــې تويــنــه
مرغلــرې بــه نيســان نــه کــړي نثــار
دا پــه ځــه چــې محمــد ولاړ لــه نړيــه
پــه ويرنــه[۱۴] يــې ســو غــور تــول ســوگوار
نـه ښکارېږي هغـه سـور د سـور[۱۵] پـه لتـو[۱۶]
نــه ځلېــږي هغــه لمــر پــر دې ديــار

---

[۱] ببرۍ ـ زولانه. [۲] ځوار ـ دا کلمه اوس نشته ـ ښايي معنی يې صبر وي.
[۳] نمري ـ لباس ـ تور نمرۍ ـ سياه پوش. [۴] کړونگې ـ ابشار. [۵] ساندې ـ نوحه. [۶] لي ـ لولي ږايي. [۷] زرغا ـ سرسبزي ـ دا کلمه اوس نشته.
[۸] مسا ـ خنده زېر لب. [۹] لاښ ـ د غره کمر. [۱۰] بامي ـ ښايي د يوه گل نوم و. [۱۱] غرج ـ غرجستان. [۱۲] جوپه ـ قافله. [۱۳] شار ـ د غرجستان د مشرانو لقب و. [۱۴] ويرنه ـ ماتم. [۱۵] لومړی سور د خوښی په معنی او دوهم د سوري قوم نوم دی. [۱۶] لته ـ سرزمين ـ ناحيه.

چې به نجليو په نڅا[1] پکې[2] خندله
چې به پېغلو کا اتڼ قطار قطار
هغه غور په وير ناتار د واکمن کښېوست
هغه غور سو د جاندم[3] غوندې سوړار[4]
لاس دې مات سه اى فلکه چې دې وکا
محمد غوندې زمرى د مړيني ښکار
شين زړګى فلکه ولې لاولاړ يې
اى د غور غرونو په څه نه سوئ غبار
مځکې ولې په رېږدلو[5] نه پرېوځې
لاندې باندې سه چې ورك سي دا شعار
چې زمري غوندې واکمن ځي له جهانه
چې څوك نه کړي په نړۍ باندې قرار
سخ[6] په تا اى محمده د غور لمر وې
په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار[7]
ته پر ننګه وې ولاړ په ننګ کې مړ سوې
هم په پر ننګه دې په ننګه کا ځان جار[8]
که سوري دې په تګ وير کاندي ويرمن[9] سول
هم به وياړي ستا په نوم ستا په تبار[10]
په جنت کې دې وه تون[11] زمونږ واکمنه
هم په تا دې وي د بر لور[12] د غفار

---

(1) نڅار ـ رقص. (2) پکسې ـ پکښې. (3) جاندم ـ دوزخ. (4) سوړ يا سوزاړ ـ وچ او تود دښت. (5) رېږدله ـ دا کلمه اوس ژوندى نه ده؛ خو د (رېږدېدل) څخه د زلزلې معنى لري. (6) سخ سا ـ خوشا ستا په حال. (7) سار يا ساري ـ همسر. (8) جار ـ قربان. (9) ويرمن ـ غمګين. (10) تبار يا تبر ـ خاندان (11) تون ـ ځاى. (12) لور ـ مهرباني.

## تحلیلي کتنه:

د پښتو د قدماوو په ادب کې شیخ اسعد سوري لومړی سړی موږ ته معلوم دی، چې دده شعر د پارسي معاصرو شاعرانو له آثارو سره نژدېوالی او ادبي رابطه او قرابت لري. دا خو ښکاره ده، چې د (۴۰۰ هـ) په حدودو کې د پارسي ادب د ساماني شاهانو په دربارو کې په ښه ډول روزل شوی و او بیا د غزنویانو په دربارو کې چې د پارسي شاعرانو مجمع او ټولتون و هم لا پسې روزل کېده. په دې وختو کې سلطان محمود په غزني کې سلطنت کاوه؛ نو ډېر نوموړي پارسي شاعران په غزني کې راټول شوي او د قصیده سرایۍ د عروج وخت و.

که د عنصري او فرخي او عسجدي او نورو هغو پارسي شاعرانو چې د غزني په دربار کې وو آثار او اشعار وکتل شي؛ نو دا ښکاري چې په دغه وخت کې شعر او عموماً قصیدې ویلو ته مخه کړې وه او هم په دغه وخت دغه ادبي فن بشپړ او پوخ شو. غزني او د غور لتي سره نژدې دي او دغو دوو د ادب او مدنیت مرکزونو ضرور روابط سره درلود نو ځکه موږ لکه په غزني کې چې په دغو وختو کې ډېر قصیده سرایان وینو په غور کې هم ددې ادبي میلان او ذوق اثر ښکاره دی که تاسو د اسعد سوري دغه غرا د مرثیې قصیده له نورو هغو پښتو آثارو سره چې هم په دغو وختو کې په غرو او دښتو کې ویل شوي دي، څنګ پر څنګ کښېږدئ؛ نو بې له کتنې او پلټنې څخه دا لاندې نتایج لاس ته راځي:

(۱) د وزن او عروضي کیفیت له پلوه دا قصیده د پښتو له خپلو اوزانو سره ډېر فرق لري او کټ مټ د پارسي د اوږدو قصایدو په ډول ویله شوې ده.

(۲) شاعر د پارسي قصیدو په ډول لومړی له فلکه شکوه کوي او فلك غندي، بیا نو خپل مطلب ته ګرېز کوي چې د محمد سوري وير دی او دا ګرېز کټ مټ د پارسي قصیده ویونکیو په ډول دی.

(۳) په دې قصیده کې ډېر پارسي او عربي کلمات راغلي دي او دا ښکاره کوي چې په دغو وختو کې د غور پښتو خالصه نه وه؛ بلکې ډېر پارسي لغت ورسره ګډ شوي وو.

(۴) سره له دې چې په دې قصیده کې ډېر عربي او پارسي کلمات شته، بیا هم ډېر نادر او پخواني پښتو لغات لري او دا څنې ښکاري چې تر دغه وخته لا پښتو ژبه په غور کې د لغاتو او کلماتو له پلوه ارته او غني ژبه وه او پس له دې دورې يې ډېر مغتنم ادبي مواد له لاسه ایستلي دي او ما دغه نادر لغات تر قصیدې لاندې د معناوو سره ولیکل.

(۵) دا قصیده په سلاست، بلاغت او ادبي ښېګڼو کې د پښتو له لومړۍ درجې اشعارو څخه ده او دا ښکاره کوي چې اسعد یو ډېر مقتدر او زبردست شاعر و، چې په خورا ښه ډول یې د محمد مرګ تصویر کړی او د خپل وير تاثرات یې هم په استادۍ او مهارت په دې قصیده کې ځای کړي دي.

وګورئ شاعر د قصیدې په آغاز کې فلك په غایب ډول غندي او دده ظلمونه بیانوي، بیا له (څه تېرى څه ظلم کاندې ای فلکه!) بېرته له غيابه حاضر او مخاطب ته رجوع کوي او له مغايبې څخه مخاطبې ته التفات کاندي. دا مخاطبه تر هغه ځایه ده چې د ګرېز (تخلص) موقع دی، ووايي: زموږ پر زړونو دې نن بیا یو غشی وویشت الخ...

د مرثیو په قصیدو کې د غزنویانو له عصره دا رسم و چې

شاعر به کوښښ کاوه چې د خپل مړه ممدوح صفات او ښېګڼې په داسې ډول وښيي چې د هغه مقام د خلکو په نظر کې ډېر لوړ ثابت شي او دده د مرګ د وير اسباب او علل هم وښيي. استاد ابو الحسن علي بن جولوغ سيستاني د سلطان محمود په مرثيه کې د غزني د ښار حسرتناك منظر او د خلکو وير او ناورين داسې څرګندوي:

شهر غزنين نه همانست که من ديدم پار
چه فتاده است که امسال دگرگون شده کار
خانها بينم پر نوحه و پر بانگ و ز خروش
نوحه و بانگ و خروشی که کند روح فگار
کويها بينم پر شورش و سر تا سر کوی
همه پر جوش و همه جوشش از خيل سوار
رستها بينم پر مردم و در های دکان
همه بر بسته و بر در زده هر يک مسمار
کاخها بينم پرداخته از محتشمان
همه يک سر ز ربض[1] برده به شارستان بار
مهتران بينم بر روی زنان همچو زنان
چشمها کرده ز خونابه برنگ گلنار
حاجبان بينم خسته دل پوشيده سيه
کُله افگنده يکی از سر و ديگر دستار
لشکری بينم سرگشته سر اسيمه شده
چشمها پُر نم و از حسرت و غم گشته نزار
اين همان لشکر يانند که من ديدم دی
وين همان شهر و زمين ست که من ديدم بار

[1] ربض ـ د ښار چاپېر شهرستان د کلا دننه.

مگر امسال ملک باز نیامد ز غزا
دشمنی روی نهاده است بر این شهر و دیار
مگر امسال ز هر خانه عزیزی گم شد
تا شد از حسرت و غم روز همه چون شب تار
تو نگویی چه فتاده است بنگو گر بتوان
من نه بیگانه ام اینحال ز من باز مدار[1]

د اسعد سوري په بولله (قصیده) کې هم د محمد د مرګ پر وخت د غور ویرجن او غمناك منظر په ښه ډول تصویر شوی دی له هغه بیته چې وایي:
((په دې ویر د غور وګړي تور نمري شول الخ...)) اسعد خپله استادي په دې قصیده کې ښه ښکاره کړې ده، دی د غور د ویر او ناورین مناظر هسې تصویروي، چې په مقابل کې پخواني د خوښی او مسرت او نشاط رنګین تصاویر هم ښیي، وایي: په هغو غرو کې چې به مستې زرکې په مسا کتهار کاوه او د غور پېغلو نجونو به نڅاوې او اتڼونه پکې کول، اوس هلته ماتم او ویر پروت دی. هېڅ هغه نشاط او خوشې نشته د فرخي او اسعد سوري د شاعرانه تخیل او تصویر تر منځ دونې فرق دی!
چې فرخي د غزني د ښار والو غمګین منظر ښودلی دی، د حاجبانو، عاملانو، درباریانو او لښکرو د ویر حالت یې تصویر کړی دی، چې یوه نارې غلبلې وهلې. نورو دوکانونه تړلي وو او له یوه خولی ورکه وه او د بل پګړی، په غاړه کې کلاوه شوې وه او له میرزایانو څخه مشوانی ورکې وې، سرونه یې له دېوالو وهل او ځینو پر سرونو لاسونه نیولي او بعضو خلکو خپل لاسونه

[1] دیوان فرخی ص ۹۲.

چیچلي وو!!!

په یوه ښار کې د ویر او ماتم مناظر هم دغه وي چې فرخي تصویر کړي دي مګر که دا شاعرانه تصویر او ترسیم د اسعد سوري له دې بیتو سره مقابله کړئ وبه وینئ چې د غزني په تصویر کې د جمال او ښکلا هېڅ برخه نشته او د غور زیبایي او ښایست د ویر او غم پر وخت هم ترسیم شوی دی او دا د شاعر استادي او مهارت او جمالدوستي ده چې په تصویرو محاکات کې (یې) ډېر قوت پیدا کړی دی:

ګوره څاڅي راڼې اوښې له دې غرونو
دا کړونګې ساندې لې په شورهار
نه هغه زرغا د غرونو د بیدیا ده
نه د زرکیو په مسا دی کټهار
نه غټول بیا زرغونېږي په لاښونو
نه بامي بیا مسیده کا په کهسار
نه له غرجه بیا راځي کاروان د مشکو
نه رادرومي غور ته بیا جوپې د شار
د پسرلي اوره تودې اوښې توینه
مرغلرې به نیسان نه کړي نثار

اسعد د بوللي په پای کې د خپل ویر احساسات په خورا قوت ښکاره کوي- اسمان ته وایي چې ولې ولاړ یې.

ای د غور غرونو ولې نه غبار کېږئ
ای مځکې ولې په زلزله نه کښېوځې

دا خطابونه په یوه داسې ډول کوي، چې د محمد د مرګ د واقعې اهمیت او غمجن توب ښه ښکاره کېږي او دا هم د شعر

یو ډول کمال دی چې مخاطب ته هسې احوال تصویر کړه شي.

د قصیدې په پای کې اسعد د پښتنو د هغه ملي روح ترجماني کوي، چې د دوی ټول اشعار په ډك دي، که څه هم د محمد پر مرګ ډېر ویر کوي او دا ماتم دونې درونډ ګڼي چې باید ځمکه چاولې او اسمان نسکور شوی وای؛ مګر چې دی د ننګ او ناموس په لاره مړ شوی دی؛ نو یې په نامه هم ویاړي او په داسې مرګ چې د ننګ او ناموس په لار کې وي، افتخار هم کوي:

که سوري دې په تګ ویر کاندي ویرمن سول
هم به ویاړي ستا په نوم ستا په تبار

که دا لنډۍ ولولئ تاسو ته به ښکاره شي چې دا فکر څنګه په ملي اشعارو کې تال موجود و:

جانان مې سر پر وطن کښېښود
په تار د زلفو به کفن ورلـه ګنډمه

جانان مې تپ پر تتر وخوړ
په جګ مغزي د کلیو پېغلو کې ګرځمه

په دې ډول اسعد خپله قصیده په افتخار تماموي او د محمد مرګ هم د ټولو سوریانو لپاره د افتخار وړ بولي؛ مګر فرخي خو ډېرې نارې غلبلې وهي، د قصیدې په منځ کې بیا یو عارفانه تجاهل لري او له ځانه سره وایي چې محمود به نه وي مړ خو لکه چې د شپې د خار په سبب ویده دی:

فال بد چون زنم اینحال جزاینست مگر
زنم ان فال که گیرد دل از آن فال قرار

میر می خورده مگردی و بخفته است امروز
دیر برخاست مگر رنج رسیدش ز خمار
دهل و کوس همانا که همی زان نزنند
تا بخسپد خوش و کمتر بودش بر دل بار
ای امیر همه میران و شهنشاه جهان
خیز و از حجره برون آی که خفتی بسیار

اسعد خو خپله قصیده تر فرخي دمخه ویلې ده ځکه چې محمود خو په (۴۲۱ هـ) مړ شوی دی مګر د دواړو شاعرانو د تصویر هدف بېل دی او اسعد خپله قصیده د قوم په افتخار ختموي؛ خو فرخي بیا هم د ځان په غم کې دی او وايي:

شعراء را بتو بازار بر افروخته بود
رفتی و با تو بیکبار برفت آن بازار



په دغه ډول تاسو هر وخت په پښتو اشعارو کې د یوه اجتماعي او قومي احساس اثرونه لیدلای شوای چې د فرخي په قصیده کې نه لیدل کېږي او د شاعرانو د بازار د سړېدلو په غم کې دی.

دا یوه شخصي تحت الشعوري داعیه ده چې د فرخي په قصیده کې بې ارادې ښکاره شوې ده که څه هم د ممدوح ادبپالنه ځني څرګندېږي؛ مګر د شاعر طمع هم ښکاره کوي اوله دغې مطالعې څخه تاسو حکمیت کولای شئ چې د پښتو ادب هدف کوم دی او نور ادبیات مو کومې خوا ته بیايي.

(۹)

# شيخ تيمن کاکړ

## د (۵۵۰ هـ) حدود

شيخ تيمن د اکړ نيکه زوی د پښتو له پخوانو شاعرانو څخه دی چې د پټې خزانې مؤلف دده احوال او اشعار د شيخ بستان بړيخ له بستان الاولياء[۱] څخه رانقل کړي دي. وايي چې شيخ تيمن د کاکړو له سيمې (کاکړستان) د غور خوا ته ولاړ او هلته مېشت شو او دده اولاده تر اوسه هم په غور کې شته او په تيمني قبيلې اړه لري، پخپله تيمن زاهد او عابد سړی و، کله کله به له غوره ږوب ته تی او د خپل پلار کاکړ ليدنه به يې کوله، په غور کې دی په کجران کې اوسېد، چې د غور جنوبي برخه ده او د زميند اور شمال شرقي خوا ته ده او مؤرخانو هم کجوران يا کجران ليکلی دی[۲].

د بستان الاولياء په روايت چې پټې خزانې رانقل کړی دی شيخ د علاو الدين خان حسين سام معاصر و چې ددې پاچا د سلطنت وخت د (۵۵۰ هـ) حدود دی او هم ددغه پاچا په عصر په کجران کې وفات شوی دی[۳].

د پټې خزانې مؤلف وايي: زما پلار داودخان په بستان الاولياء کې د شيخ تيمن دغه لاندې شعر لوستلی و او ما له خپله

---

[۱] د شيخ بستان احوال به دې کتاب کې وروسته وګورئ.
[۲] مثلاً طبقات ناصري او د البيروني قانون مسعودي.
[۳] پټه خزانه ص ۶۱.

پلاره واورېده، دا شعر په پښتو قديمو اشعارو کې ښه عشقي نخښه ده او د وزن او الفاظو او کلماتو له پلوه خالص او سوچه پښتو شعر ګڼل کېږي:

ګهيځ رڼا د لمر خپره سوه
زما پر کور د وير ناره سوه
د ببلتون ورځ توره تياره سوه
ورغ سو ناڅاپه چې ببلتون راغی
زړه مې له دې وير[1] نې شين دی
په ژړا ژاړم څه ناورين[2] دی
زرغون له اوښو مې سادين[3] دی
په نول[4] نولېږم چې تا خون[5] راغی
نه به بيايم نه به بيا راسي
نه به تياره شپه زما رڼا سي
نه به شهی[6] راته پخلا سي
ببلېږي پېر[7] يې اوس د يون راغی
د څښتن[8] پار دی هېر مې نه کړې
اغليه[9] مخ چې په يانه[10] کړې
اوربل[11] دې پرېښووی واته کړې
پر ما د بل اور کړودن[12] راغی

[1] ويرنه۔ ماتم. [2] ناورين۔ غم. [3] سادين۔ شودياره کړې مځکه. [4] نول۔ پرېشاني۔ نولېږم۔ پرېشانېږم. [5] تاخون۔ جګرخوني. [6] شهی۔ معشوقه. [7] پېر۔ نوبت. [8] يعنې د خدای روی دی. [9] اغلې۔ ښکلې. [10] يون، يانه۔ تګ. [11] اوربل مسکن. [12] کړودن۔ پر اور سره ګرځول.

د شيخ تيمن دا لوړ شعر چې په سوچه پښتو او وزن دی له هغو اشعارو څخه ګڼل کېږي، چې غنايي LYRIC او د موسيقيت خوا هم لري او له عشقي تغني او ږغولو سره يې اړه ده او لکه پښتو اکثر عوامي اشعار په خوږه او خاص ږغ ږغول کېږي.

د تيمن نور حال موږ ته نه دی معلوم. فقط له دغه يوه شعره دونې ښکاري چې تيمن به يو عاشق مشرب سړی و او کله کله به يې د خپلو عاشقانه جذباتو په شور او هيجان کې خواږه شعرونه ږغول، دده د شعر ژبه سپېځلې، پاکه او سپينه ده او اشعار يې هم روان، سليس او خواږه دي او د قدماوو په ډله کې د تيمن د شعر مقام کښته نه دی.



(۱۰)

# ښکارندوی غوري

## د (۵۸۰ هـ) حدود

د پښتو له پخوانو قصيده سرايانو څخه يو ډېر مقتدر او د غښتلې قريحې خاوند ښکارندوی دی، چې د غور و او پلار يې احمد د غور د فېروز کوه کوتوال و. داسې ښکاري چې د ښکارندوی کورنۍ د خپل عصر عزتمن او معتبر خلك وو او د غور د پاچاهانو په دربار کې په درنه سترګه ليدل کېده، پخپله ښکارندوی به کله په غور کې ژوند ساوه او کله کله به په غزنه او بست کې هم اوسېده، دده شرح حال هم د پټې خزانې مؤلف له لرغوني پښتانه څخه رانقل کوي، چې ددغه کتاب خاوند هم هغه له تاريخ سوري څخه را اخيستی دی او دی وايي:

ښکارندوی د خپل عصر عالم او شاعر پښتون و او د سلطان شهاب الدين محمد سام شنسباني په حضور کې ډېر عزت او اعتبار درلود او ددغه پاچا او هم يې سلطان غياث الدين غوري په ستاينه کې ډېرې قصيدې ويلې وې او د غور د سلاطينو د دربار پښتون شاعر و، داسې ښکاري، چې ښکارندوی به تل د غور سلاطين په پښتو قصيدو ستايل او محمد بن علي د تاريخ سوري مؤلف ليکلي دي چې ما په بست کې د ښکارندوی د اشعارو او بو للو غټ کتاب وليدی[1].

دا د پښتو قديم قصيده ويونکی شاعر به تل د غور له سلاطينو سره په جګړو او جنګي سفرو کې ملګری و او هم د ديوان خاوند دی چې دده له ديوانه د تاريخ سوري ليکوال يوه پښتو قصيده نقل کړې وه او دغه بوللـه له تاريخ سوري څخه شيخ کته پخپل (الرغوني پښتانه) کې وکښله او له لرغوني پښتانه څخه محمد هوتك په پټه خزانه کې وساتله. دا قصيده چې اوس زموږ په لاس کې ده، ښکارندوی د محمد سام په ستاينه کې ويلې ده او د هغه سلطان د هند يو سفر تصوير کوي چې څنګه د سلطان لښکر هند ته ځي او څنګه پر اټك تېرېږي.

ښکارندوی د پخو قصيده سرايانو په ډول لومړی يو غرا او ډېر لوړ او خوندور تشبيب لري د بهار مناظر د غرو او رودو دلچسپ او زيبا تصاوير په دغه تشبيب کې ترسيم کوي، وروسته نو د سلطان معز الدين (شهاب الدين) ستاينې ته ګرځي او په خورا استادۍ او اقتدار دده د لښکرو يرغلونه مصور کوي او دا قصيده کټ مټ د غزني د دربار د پخو شاعرانو فارسي قصايدو ته ورته ده. دلته به لومړی د ښکارندوی

[1] پټه خزانه ص ۴۷_۴۹.

قصیده راوړو او وروسته به یې تحلیل ته هڅه وکړو:

## د ستاینې بولله[1]

د پسرلي ښکلونکی[2] بیا کړه سنګارونه
بیا یې ولونل[3] په غرونو کې لالونه
مځکه شنه، لاښونه شنه، لمنې شنې سوې
طیلسان[4] زمردي واغوسته غرونه
د نیسان مشاطې لاس د مچېدو دی
مرغلرو باندې وښکلل[5] بڼونه
د غټولو[6] جنډی[7] خاندي و رېدي ته
زرغونو بڼو کې ناڅي زلمي جونه
لکه ناوې چې سور ټیک[8] په تندي وکا
هسې وګانڼل[9] غټولو سره پسولونه
مرغلرې چې اوره[10] وخونولیه[11]
په ځلا[12] یې سوه رانه خپاره دښتونه
زرغونو مځکو کې ځل کا ـ لکه ستوریه
چې پر هسک باندې ځلېږي[13] سپین ګلونه
سپینې واورې ویلېده کاندي بهېږي
لکه اوښې د مین پر ګرېوانونه

---

[1] بولله ـ قصیده. [2] ښکلونکی ـ آراینده. [3] ولونل ـ وپاشل. [4] طیلسان ـ قبا. [5] وښکلل ـ ښکلی یې کړه ـ اوس دا فعل نه وایو. [6] غټول ـ لاله. [7] جنډی ـ ګل [8] ټیک ـ د تندي پسول. [9] وګانڼل ـ په کینه یې آراسته کړل. [10] اوره ـ وربخ. [11] وخونولیه ـ نثار او خوني ي وکړه. [12] ځلا ـ ځلېدل.
[13] سپین ګلونه د اول مصراع له ځل کا سره اړه لري.

هر پلو رنې والې بهاندې خاندي
له خوښیه سر وهي له سینګړونه[۱]
هر پلو د ګلو ورېم دې لولی[۲]
ته وا راغله له ختنه کاروانونه
د مسیح په پو به مړو ژوندون بیاموند
پسرلی مګر مسیح سو په پوکړونه[۳]
له مړو خاورې یې اغلی[۴] ګل راویوست
وچ بیدیا او غر یې کړله جنتونه
سړی جا[۵] جي چې رامشت کړ رامشتګرو[۶]
ګهیځ چوني[۷] چې په بڼ وکا ږغونه
په بربڼ[۸] چې ږغ د جونو نغوړېده[۹] سي
ته وا چندي[۱۰] سره پیودي[۱۱] اشلکونه[۱۲]
د زلما تاپی[۱۳] راغلی دی پر جندیو
لکه پېغله غوټی کاندي مکبزونه[۱۴]
د یوپلو[۱۵] مخ سور کړی پسرلي دی
یو د بل په غاړه اچوي لاسونه
د هیندارو به ځېر غرونه سپین وړنګن[۱۶] دي
چې پر واورو باندې ځل وکا لمرونه

---

(۱) سینګړ۔ سنګلاخ. (۲) لونلې۔ پاشلې. (۳) پوکړونه۔ پوکول۔ دمیدن.
(۴) اغلې۔ ښکلې. (۵) جاجي۔ فکر کوي۔ اوس دا فعل نشته. (۶) رامشت: سارا و سراود را مشتګر سازنده. (۷) چونی۔ بلبل. (۸) بربڼ، لوړ باغ، خیابان. (۹) نغوړېده۔ اورېده. (۱۰) چندی۔ ښایي چې د شاعر معنی به لري. (۱۱) پیودي۔ نظم کوي.
(۱۲) اشلکونه۔ اشعار. (۱۳) زلما۔ اوس نه ده مستعمله۔ ښایي د ځوانی په معنی به وه له زلمي څخه. اما تاپي اوس معین وخت ته وایي. (۱۴) مکبز۔ د ناز مسل.
(۱۵) یوپل۔ ښایي د یو ګل نوم به و اوس دا نوم پر سرېو اېښود کېږي. (۱۶) ړنګن۔ ښایي د وړانګې څخه جوړ شوی صفت وي د مشعشع په معنی.

په غورځنګ غورځنګ له خولې ځګونه باسي

لکه شن[1] هاتي شنا کاندي سيندونه

نه به چونبي[2] په ستايه د ګلو موږ سي

نه به موږ سم د سلطان په صفتونه[3]

د شنسب[4] د کهاله[5] حتلي لمر دی

د پسرلي په دود ودان له ده رغونه[6]

د ښندو اورو[7] يې درست اېواد[8] زرغون کړ

له قصدار[9] تر ديبله[10] يې يونونه[11]

په زابل چې د برې پر نيلي[12] سپور سي

په لاهور يې د مېړاني ګزارونه

نه يې ځوك مخ ته دري[13] د ميرخمنو

نه يې توري ته ټينګېږي کلك ډالونه



د اسلام د دين شهاب د نړۍ لمر دی

تورستهان[14] يې کړ رڼا په جهادونه

هره پلا چې دی پر هند و سند يرغل کا

رڼوي توره نړۍ په شهابونه

په پسرلي چې يې تېرون[15] پر اټك وکا

غاړه غاړه يې تړې[16] سولله زړونه

---

(1) شن او شنا ـ ښايي د مست او مستي په معنی و؛ خو اوس نشته. (2) چونبی ـ ښايي د چونېدل څخه به د بلبل په معنی و. (3) دلته تشبيب تمامېږي او تخلص شروع کېږي. (4) شنسب د غوريانو د لوی نيکه نوم و (طبقات ناصري) د پښتو شين اسپه به وي. (5) کهول ـ خاندان. (6) راغه ـ د غره لمن او دښت. (7) يعني د ښندلو وربخو. (8) اېواد ـ اوسنی هېواد دی. (9) قصدار ـ په اوسني بلوچستان کې يو ښار و چې اوس يې خضدار بولي. (10) ديبل ـ د بحيره عرب پر غاړه يو ښار و اوسي کراچي ته نژدې. (11) يون ـ تګ. (12) نيلی ـ بوز اس. (13) دري ـ درېږي قديم شکل. (14) ستهان ـ ستان ـ ځمکه ـ سرزمين ـ په سنسکريت کې هم شته. (15) تېرون ـ تېرېدل ـ عبور. (16) ښايي له تړېدل څخه په خوا په بله معنی و خو اوس نشته.

نه به ده غوندې روڼ ستوری په هسک ځلي
که څه پورته سي له غوره ډېر مېړونه

نه به راولي جګړن[١] د سیند په لوري
نه بره بري[٢] څوك د هند خپاره ښهرونه

نه به څوك زلمي د غور سره راغونډ کا
د داور[٣] تورې به چېرې کا ځلونه[۴]

یو خاوند شهاب الدین دی چې یې وکا
په هر لوري هر اېواد ته یرغلونه

په جوپو جوپو جګړن یې هند ته یون کا
چې د غور باداره همت وکا زغلونه[۵]

نن په سیند باندې تېرېږي یرغل کاندي
په پرتم[۶] یې زمري رېږدي په ځنګلونه

څپان سیند یې هم له ډاره ایلایي[٧] کا
پر اوږو وړي د غوریانو ښه ایړونه[٨]

په هر کال اتك دده ښه راغلي کاندي
غوړوي په ځېنډو خپل پاسته سالونه[٩]

ښتونخوا ښکلي زلمی، چې زغلي هند ته
نو اغلیه پېغلې کاندي اتڼونه

---

[١] جګړن- ظاهراً له جګړې څخه د جنګي په معنی خو اوس نشته. [٢] بری- فتح کوي- د بري څخه؛ خو اوس د برل مصدر نشته. [٣] داور- اوسنی زمینداور. [۴] ځلونه- د ځل جمع ده- ځلېدل. [۵] زغلونو- د زغل جمع ده- تاخت و تاز. [۶] پرتم- دبدبه. [٧] ایلایي- د ایل څخه د اطاعت په معنی. [٨] ایړ- یوه دسته کېښتي. [٩] سال- سرمه رېګ.

زرغــونې ختـې[۱] اغوســتې وي دې غرونــه
بــټ[۲] بيــديا هــم پســوللي[۳] وي ځانونــه
هــر ګهيـځ[۴] چـې لمـر ځرکېږي[۵] لـه خاتيځـه[۶]
ځـو چـې يـون کـا د لويديځيــه[۷] پــه څنډونــه[۸]
کــه بربخـر[۹] وي کــه غرمــه وي، کــه برمــل وي
کــه لرمـل[۱۰] کــه لمـر لوېـد[۱۱] کــه ترملونــه[۱۲]
د شــهاب جګـړن بــه نــه کښېنــي لــه زغلــو
نــه بــه پرېـږدي دا زلمــي خپــل بهيرونــه[۱۳]
زمــري کلــه کــاږي[۱۴] ځــان لــه يرغلګريــو[۱۵]
ځــو يــې نــه کــا مــات متونــه[۱۶] ورمېږونــه[۱۷]
يــا بــه جـګ کـا د بريـو[۱۸] رپـي[۱۹] پــه هنـد کـې
يــا بــه پرېــږدي[۲۰] هـم پــه دې چــاره ســرونه



[۱] ختې ـ البسه ـ اوس خت کميس تــه وايــي. [۲] بــټ بيــديا ـ تــود بيابــان.
[۳] پســوللل لــه پسـول (زېـور) څخــه قــديم مصــدر دی چـې اوس يــې فعلــي مشـتقات نــه ويــل کېـږي. [۴] ګيهځـي ـ سـحر. [۵] ځرکېږي ـ لــه ځـرك (طلــوع) څخــه؛ خــو اوس يــې فعلي ډول نــه دی مسـتعمل. [۶] خـاتيځ ـ پخــوا د مشـرق پــه معنــی و، د ختلــو ځـای؛ خــو اوس عــام نــه دی. [۷] لويــديځ ـ پخــوا د مغــرب پــه معنــی و؛ خــو اوس عــام نــه دی ـ لوېـدل ځـای. [۸] څنډه ـ اوس افــق او کنــارې تــه وايــي؛ خــو څنډونــه نشــته. [۹] بربخـر ـ ضـحی. [۱۰، ۱۱، ۱۲] دا درې کلمــې اوس نــه واي، ښـايي برمــل مــاپښين او لرمــل مــازيګر او ترمــل مابنــام وي. مــل بــه د مهــال مخفف وي چـې اوس وخـت تــه واي؛ نــو بايــد مــل (لــوړ مهــال)، لرمــل (کــوز مهــال)، ترمــل (تــور مهــال) وي. [۱۳] بهيــر ـ قطــار. [۱۴] ځــان کښــل ـ تېښتــه. [۱۵] يرغلګــري ـ متهــاجم. [۱۶] مــټ ـ بــازو. [۱۷] ورمېږ ـ مغــزی. [۱۸] بــری ـ فــتح. [۱۹] رپــي ـ ښــايي د رپېــدل لــه رېښــې څخــه پخــوا د بيــرق پــه معنــی و؛ خــو اوس نشــته. [۲۰] اوس پــه داســې ځـای کـې د پرېـږدي پـر ځـای کښېـږدي وايــو. ســر بــه پر کښېږدي

يا بـه وران كـا بودتونونـه[۱] د بمبـو[۲]
يا بـه سره كانـدي پـه وينـو اېوادونـه[۳]
پـه ږنـا اوسـې تـه تـل د ديـن شـهابه!
نـوم دې تـل[۴] وه پـر دريـغ[۵] پـه نمزد كونـه[۶]
څـو رانـه شي ستا پـه تـوره د هنـد لوريـه
څـو چـې نسـت[۷] كـړې لـه نړيـه بودتونونـه
ستا پـه زړمـه[۸] دې خاونـده لـوى ښتن دى
مـوږ[۹] څـو ستا پـه مرسته يونـه څـو چـې يونـه

## ***كتنه او څېړنه:***

د ښكارنـدوى دا قصـيده د پښتـو ادب يـو شـهكار دى او د شـاعر مهـارت او اسـتادي او د قـريحې غښتلـوالى او سـپېڅلتوب څنې ښكارېږي. لومړى مزيت چې پـه دې قصيده كې ليـدل كېږي د كـلام سلاسـت اوروانـي او بلاغـت دى، چـې هېـڅ تعقيـد او ابهـام نـه لـري او شـاعر پـه خـورا مهـارت خپـل مقاصـد پـه سـاده او سپېڅلو عباراتو ادا كوي.



كـه څـه هـم ښكارنـدوى ښـاروال او دربـاري سـړى و؛ خـو كـلام يې د غـرو د ژبې كلكـوالى او اسـتحكام لـري او ډېـر د پښتـو نـادر لغات او مـواد پـه كې شـته چې پخـوا ژونـدي وو او مـا د كتـاب پـه

[۱] بودتـون. بتكـده اوس دا كلمـه نشـتـه خـو پخـوا وه پـه قديمـه پښتـو بـود بـت و او تـون ظرفيـت ادات دي [۲] بمـبن. د هنـدوانو پيـر [۳] اېـواد د هېـواد قديمـه امـلا ده. سـرزمين. [۴] نـوم دې تـل دعائيـه ده. بـادا. [۵] دريـغ. اوس دا كلمـه نشـتـه پخـوا وه د امـير كـروړ پـه شعر كې هـم راغلـې ده ښـايي منبـر تـه يې ويلـه دربـدل خـاى لكـه خـاتيغ لويـديغ [۶] نمزدك. ښـايي پخـوا يې مسـجد تـه ويـل اوس نشـتـه، پـه قديمـه پارسـي هـم مزكـت مسـجدت و. [۷] نسـت. نابود [۸] زړمه. حمايت [۹] پټه خزانه ص ۴۹_۵۷.

حاشيو کې دروښوول. دا لغات موږ ته دا راښيي، چې پښتو خورا وسيعه ژبه وه او اوس يې ډېر پخواني کلمات له رواجه لوېدلي دي؛ لکه خاتيځ- لويديځ- لرمل- برمل او نور چې اوس يې په عوض کې موږ عربي يا پاړسو کلمات وايو.

ښکارندوی چې د قصيدې په تشبيب کې د پسرلي کوم زيبا او ښکلي منظر تصوير کړی دی، د وطن له ښکليو دښتو او غرو څخه يې الهام اخيستی دی دده حساسه قريحه د مناظرو په تصوير کې ډېره ګړندی ده، د پسرلي زرغونتوب د ګلو غوړېده د نسيم نڅا او ښه بوی، د غوټيو د پېغلو په شان مکېزونه، د بلبلانو خواږه ږغونه، د نيسان مرغلرې پاشل، د لمر وړانګې پر سپينو واورو غرونو لوېدل او هغه لکه هينداره څلول د سيندونو مستي او غورځنګ دا ټول د وطن د پسرلي طبيعي او ښکلي مناظر دي، د پښتونخوا د جمال نخښې دي چې شاعر يې په ترسيم او محاکات کې استادي او مهارت ښکاره کړی دی.

له دغې بوللې (قصيدې) څخه چې د ښکارندوی اوستاد له ديوانه موږ ته پاته ده معلومولای شو، چې دا شاعر په ادبي فنونو او د بلاغت په اساسونو کې هم پوخ و او دده اشعار له ښکليو تشبيهاتو او استعارو ډک دی او اسلوب يې کلک او پوخ دی؛ مګر دا خبره هم بايد هېره نه کړو، چې لکه د پښتو نور اشعار د ښکارندوی قصيده هم له سره تر پايه پر نېچر او طبيعت بنا ده او لکه د پاړسي بعضې استادي پخپل شعر کې د هيئت، نجوم، فلسفې او نورو علومو اصطلاحات نه

ګڼل‌شوي [1] او په کلام کې هيڅ راز درونډوالي او تکلف او بې خوندي نشته او په دې مزيت کې دی منوچهري ته ډېر ورته دی، چې هر کله طبيعي او حسي او د نېچر په لمن کې نغښتي اشعار وايي.

په دې قصيده کې د غور د سلطان د لښکرو عبور پر سيند باندې تصوير شوی دی او شاعر په دغه پسرلي کې د سيند څپان توب او د پېغلو اتڼونه او د دنيا ښکلايي او د غرونو زرغونېدل په داسې ډول راوړي دي، چې دا ټول د دغو زلمو په استقبال کې دي او اتڼ هم هر کال خپل پاسته سالونه (رېګ) پر مځکه غوړوي، چې د سلطان د لښکرو زلمي پر تېر شي.

څپان سيند هم سلطان ته اېل دی او د غوريانو کښتۍ پر واړو وړي، که څه هم له دې يرغله د زمريو زړونه په ځنګلو کې رپېږي؛ مګر بيا هم د خلکو مينه له دې سلطانه سره دونې ده، چې زړونه يې د تېرېدلو لپاره پلونه کړي دي. تاسې قصيده سر تر پايه وګورئ، ټوله طبيعي پيرايه لري او له ما فوق الطبيعه مبالغو او حشوياتو څخه پاکه ده او دا د يوه شاعر قدرت او مهارت ثابتوي، چې د طبيعت په لمن او دايره کې خپل مقاصد بېله غير طبيعي مبالغو ادا کړي او خپل ممدوح که هم ستايي د يوه انسان په ډول يې ستايي او د هغه اصلي او حقيقي مقام ساتي.

موږ د ايشيا په ادب کې تر ښکارندوی دمخه کټ مټ يوه دغسې واقعه لرو، چې يوه پادشاه د جيحون د تېرېدلو پر وخت

---

[1] مثلاً لکه عنصري چې وايي:

| | |
|---|---|
| وګر حديث بقول منجمان راني | بحکم اختر و ايام و طالع و دوران |
| بصد دلي عيانست پادشاهی او | که کدخدای جهانست و پادشاه قرآن |

د یوه درباري شاعر له خوا ستایل کېږي که څه هم شاعر استاد دی او په ستاینه کې مهارت ښکاره کوي؛ مګر که تاسې دغه مدح د ښکارندوی له اداء، اسلوب او مضمون آفرینۍ سره مقایسه کړئ؛ نو به درته ښکاره شي، چې پر دې شاعر د فطرت او نېچر په لمن کې مضمون درېدلی و او له ناچارۍ یې ما فوق الطبیعه ته لاس اچولی دی او غواړي چې پاچا په بې حقیقتو ستاینو خوښ کړي:

هغه وخت چې د سلطان محمود لښکر پر جیحون تېرېږي فرخي وایي:

پیمبران را از آن بیش معجزات نبود
که شاه دادرـ و این سخت روشنست و عیان

بر آب جیحون پل کردن و گذاره شدن
بزرگ معجزه ای باشد و قوی برهان

ملک بوقتی کز آبـ رود جیحون بود
چو اسمانـ که مراوارا پدید نیست کران

بر آب جیحون در هفته ای یکی پل بست
چنانکه گفتی کز دیر باز بود چنان[1]

په دې بیتو کې ستایونکی خپل ممدوح سپکوي او د صفت پر ځای یې په معجزو لوړوي او حال دا چې پر جیحون پل تړل او تېرېدل چندان عجیب کار او خرق عادت نه دی او نه دا معجزه ګڼله شي؛ ځکه چې دا معجزه د هر مانو کار دی، رښتیا خو داده، چې د طبیعت په دایره کې پر ده خبره درېدلې وه؛ نو یې

[1] دیوان فرخي ص ۲۵۲.

داسې ښېځایه او له حقیقته لرې مدح پورې نښلولې ده، چې ده ته د پیمبرۍ مقام ورکړي.

اما په تشبیب کې چې کوم تصویر ښکارندوی کښلی دی، دا د هغه عصر د اکثرو استادانو رویه او ادبي سنت و، د اکثرو قصیدو په اغاز کې په پسرلي یا کوم عشقي موشوع تشبیب کېده؛ لکه د منوچهري دا تشبیب:

نوروز روزگار نشاطست و ایمنی
پوشیده ابر دشت بدیبای ارمنی

خیل بها و خیمه بصحرا برون زند
واجب کند که خیمه بصحرا برون زنی

در، ست ناخریده و مشک است رایگان
هر چند بر فشانی و هر چند بر چنی...

شاخ بنفشه بر سر زانو نهاده سر
مانندهٔ مخالف بو سهل زوزنی[۱]

وګورئ تشبیب یو راز دی، د دواړو شاعرانو موضوع بهار دی مګر فرق یې دونې دی، چې ښکارندوی د غرو او دښتو پهار تصویر کوي او منوچهري د ښاروالو د عیاشۍ مناظر په بهار کې ښیي؛ خو د دواړو د قریحې د جولان او شاعرۍ د کمال مظهر طبیعت دی او په دې ډول د ښکارندوی قصیده د خپل عصر د ادبي روح نمایندګي په ښه توګه کوي او د پښتو شعر خصوصیات هم ښه خوندي کوي.

---

[۱] ددې قصیدې یو څو بیته نمونه ولیکله شوه او تر دې بیت وروسته د بو سهل زوزني مدح ته ګریز دی چې د غزني یو وزیر و.

(۱۱)

# ملکیار غرشین

## (۵۸۰ هـ) حدود

غرشین د پښتنو یو مشهور ستانه قوم دی، چې پخوا یې یو وچ غر سر سبز او اباد کړی و؛ نو ځکه دوی غرشین بولي، دا قوم د کندهار خواوو کې اوسي او په شمېر ډېر لږ دي[۱].

ملکیار له دغه قومه یو خورا ستانه او مشهور سړی دی، چې د پښتنو مؤرخانو دده ذکر پخپلو مشاهیرو کې راوړی دی، نعمت الله هروي لیکي، چې: ملکیار د شیخ ابوبکر طوسي معاصر و او په ډیلي کې یې یو خای درلود چې سلطان شهاب الدین غوري د ملتان د یرغل پر وخت ده ته بخښلی و او دده مرقد هم هورې دی[۲].

دا روایت چې نعمت الله کښلی دی څو سوه کاله دمخه سلیمان ماکو هم دغسې راوړی دی او څنې ښکاري چې د ملکیار د ژوند وخت د سلطان معز الدین غوري عصر و او دی په جګړو کې د سلطان ملګری هم و؛ ځکه چې سلطان لومړی پلا پر ملتان په (۵۷۱ هـ) حمله کړې وه؛ نو دده د حیات زمانه هم په دغو وختو کې تخمینولای شو.

سلیمان ماکو دده په احوال کې هسې لیکي: ((نقل کاوه شي

[۱] حیات افغاني ص ۱۵۲.
[۲] قلمي مخزن افغاني.

چې په روزګار د غازي شهاب الدین چې په ډیلي کې هغه ستر[۱] واکمن تاتوبی[۲] وروښانده او او هم هورې مړ شو نقل کاوه شي چې په جوبله[۳] کې مسلمانان تر شا ولاړه او کفارو بری وکړ، لېږې نه وه چې مسلمانان شي د کفارو په کتارو[۴] پوپنا[۵] او دښمنه بری وکړي، ناڅاپه شیخ ملکیار راغی او پر دښمن یې یرغل وکاوه او ډېر زښت یې ووژل. نورو مسلمانانو هم د ملکیار تر اړخ توري وکښې او سره ومروړل یې دښمنه، ستر ښتن دوی ته په مېړانه دشیخ ورکړه لو سوبه[۶] او بري چې پخوا هم نهٔ وُ په برخه شوی د چا ، هېڅکله په هېڅ ځای کې))[۷].

د سلیمان ماکو له دغه بیانه ښکاري چې ملکیار یو غښتلی او توریالی سړی هم و او د تورې او ادب له ښتننانو څخه و چې د سلطان سره یې په جهاد او جګړو کې ملګرې کړله، داسې ښکاري چې ملکیار تر جنګیالي توب او توریالي توب علاوه، ادبي ذوق هم درلود ، پخپله هم شاعر و او د نورو پښتو شاعرانو اشعار یې تل لوستل؛ لکه چې سلیمان ماکو د شیخ اسماعیل سړبني شعرونه د ملکیار له خولې رانقل کړي دي[۸] د زهد او تصوف او عرفان له پلوه هم ملکیار ښه شهرت لري او مؤرخان دده له نامه سره پران هم لیکي او دده عرفاني شهرت دونې ډېر

---

[۱] ستر۔ لوی، واکمن۔ مختار.
[۲] تاتوبی۔ قرار گاه.
[۳] جوبله۔ جنگ.
[۴] کتاره۔ نېزه.
[۵] پوپنا۔ نیست و نابود.
[۶] سوبه۔ فتح.
[۷] د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء.
[۸] د اسماعیل احوال به وروسته راشي

و، چې تخمیناً دوه نیم سوه کاله وروسته سلطان فیروز شاه (۷۲۵_۷۹۰ هـ) ډهلي ته نژدې فیروز آباد ښار کړ؛ نو هلته دې پاچا د شیخ ملکیار پران په یادګار یو سرای هم جوړ کړ چې د هغه عصر مؤرخ ضیاء الدین برني یې په (۷۵۸ هـ) کال ذکر کوي[1] لکه چې مؤرخان تصریح کوي، ملکیار په ډهلي کې اوسېده او هم هورې مړ شو او په دغه ښار کې د شیخ ابوبکر طوسي له مزاره سره یو ځای ښخ دی[2] او سلیمان ماکو دده یو شعر داسې رانقل کړی دی:

په هغه میدان کې چې شیخ ملکیار د سلطان معز الدین د لښکرو سره یو ځای جنګېدی او نژدې و چې د سلطان لښکر ماته وکړي؛ نو دې توریالي ادیب او عارف یوه د ننګ او جنګ سندره وویله او لښکریان یې همت او شجاعت او توریالیتوب ته تشویق کړل، څو په پای کې بریالی شو او د جنګ پر ډګر یې سوبه په برخه شوه، سلیمان لیکي: په جوبله کې ملکیار دا پاړکي[3] وویل، چې غازیان وپارېدل[4] او په څېر د زمریو ورتوی شول:

ښبنتن مو مل دی		اوس مو یرغل دی		هېواد د بل دی
غازیانو ګورئ		ښبنتن مو مل دی
تورې تېرې کړئ		دښن مو پرې کړئ		منګولې سرې کړئ
څله به تېښتو		ښبنتن مو مل دی

[1] تاریخ فېروز شاهي ص ۱۳۴.
[2] د سلیمان ماکو تذکره او مخزن افغاني.
[3] پاړکي- پخوا یې د شعر قطعې ته پاړکي ویل
[4] پارېدل- توندېدل.

که ټينګ کړو زړونه پر بري يونه چې زمري يونه
اسلام راځخه دى ځښتن مو مل دى
غازيانو راشئ تول شاوخوا شئ د شهاب په ملا[1] شئ
دښن مو غوځ کئ ځښتن مو مل دى[2]

د ملکيار دا شعر چې د قديمو اقوامو د حماسياتو او رجز رنګ لري له هغو سندرو ځخه دى، چې پخوانو پښتنو به د جګړې پر ميدان ويلې او مقصد يې دا و چې د ظلمو احساسات تاوده کړي او پر جنګ يې ښه وپاروي. ددې شعر عروضي کيف الفاظ او کلمات سوچه دي او لکه نورو ګړني (عوامي) اشعار يو تکرارېدونکی، کسر (غبرګ) هم لري، چې د هر بند په پای کې ويل کېږي او د پښتو د مخصوصو اشعارو يو ښه خاصيت دی. شاعر په حقيقت کې يو مبلغ هم دی او په هر ځای او هره موقع کې د خپلو ويناوو د اغېزمنولو لپاره د بيان طرز او اسلوب داسې ټاکي چې دده وينا پر اورېدونکيو باندې اغېزه وکړي او د شعر مقصد حاصل شي.

په دې پارکي کې هم ملکيار د غوري سلطان د جنګياليو د پارولو لپاره دوی ته داسې خطابونه کړي دي چې بايد په اورېدلو يې متاثر شوي وي او په دوی کې يو ملي او ديني هيجان پيدا شوی وي دا پارکی بې له نومو نور ټول سوچه پښتو دی او په اخر پارکي کې (ملا) د ملګری او همراهۍ په معنی هغه زړه کلمه ده چې د اسعد سوري په قصيده کې هم راغلې وه (نه به ملا کړي له بې وزلو له ترار) او له دې ځخه هم ښکاري چې دا پارکی د پښتو ژبې په قديمه دوره اړه لري او په دغه وخت کې

---

[1] ملا ـ د مل ځخه د ملګری په معنی

[2] د سليمان ماکو تذکره او پښتانه شعراء ج ۱ ص ۵۶

لا داسې قديم كلمات مړه نه وو او له استعماله نه وو لوېدلي. د پښتو په پخوانو اشعارو او د قدماوو په دوره كې چې ګورو د جهان پهلوان امير كروړ سوري تر شعر وروسته دا لومړی جنګي اثر دی؛ مګر فرق يې دونې دی چې امير كروړ په خپل شعر كې د يوه زبردست او غښتلي قايد رنګ لري او د يوه نامور اتل (قهرمان) په ډول شعر وايي؛ خو ملكيار دلته د يوه مبلغ په دود خبرې كوي او غواړي چې ملي احساسات په ديني تبليغ وخوځوي او له خپل عرفاني مقامه هم كار واخلي او د شعر په وسيله د لښكرو روح تقويه كړي؛ نو ملكيار په پخوانو شاعرانو كې هم عارف و، هم شاعر و هم جنګيالی او دا درې سره خواوې يې په شعر كې شته.



# (۱۲) تايمني

## د (۵۸۰ هـ) حدود

د تايمني په نامه موږ د پښتنو يو پخواني اديب او شاعر پېژنو مګر دا نه ده ښكاره چې ددې شاعر نوم تايمني و كه د تايمني قوم ته منسوب و چې دا قبيله په غور كې اوسي.

د غوري شاهانو په عصر كې لكه نور مشهور پښتانه شعراء چې تېر شوي دي يو له هغو څخه تايمني دی، چې دده ځينې اشعار تر اوسه هم د زمينداور په غرو او رغو كې د خلكو په ياد دي، د غوري سلطان غياث الدين معاصر و او څكه چې دده يو شعر په زمينداور اړه لري او هم په زمينداور كې موندل شوی دی: نو دا په ټينګه ويلای شو چې دی به په زمينداور كې اوسېده چې ددغه سلطان پاچاهي د (۵۸۰ هـ) په حدودو كې وه؛ نو

د تایمني ژوند هم په دغه عصر کې و. تر دې زیات نو دده احوال نه لرو.

په (۱۳۱۰ش) کال چې زه د هلمند په کلیو او لتو کې ګرځېدم په یوه کلي کې د شپې د زلمو بنډار و او د نشاط او مسرت بزم تود و هلته به ځینو په ځوارېږغ ناري کولې او ځینو به نځل او بعضو به بدلې او سندرې ویلې ددې بنډار په یوه خوا کې یو سپین ږیری ناست و که څه هم زمانې نتلی و او وېښتان یې تك سپین و؛ خو خوش ارواح سړی و او زړه یې ځوان و.

دې سپین ږیري د زمینداور په غرو کې د زلمي توب ښې شپې ورځې تېرې کړې وې او د هلمند پر غاړو یې د مینې په دنیا کې خپله ځواني خاورې کړې وه، د سترګو دید یې لږ شوی و؛ خو زړه یې بینا و، غوږونه یې درانه وو؛ خو سد یې پر ځای و، زلمو ده ته په درنه سترګه کتل او ده هم پخپلو خوږو سندرو، بزمونه تودول، د خپل زلمي توب کیسې به یې کولې او د هلمند د غاړو او د لور د ودانۍ او مدنیت زړې افسانې چې ده ته له تېرو نیکونو څخه رسېدلي وې، بیانولې به یې. دې سپین ږیري پخپلو سندرو کې د تایمني په نامه دا شعر په ملي وزم او خوږه لهجه ولوست، چې د پښتو یوه زړه ادبي ټوټه ده:

نن زه ږغېږم په صفت د سلطان
چې دی بادار غازي ملك د جهان
د فېروز کوه او غور رنا له ده ده
هم د تېرو، تورو برېښنا له ده ده
چې توره وکاږي چړتون[1] کې خالي
غلیم یې کله کړي په توره سیالي

[1] چړتون- نیام- د تورې پوښ.

غیاث الدین د غور زمری عالیشان
د اسلام دین دده په توره روښان

ما د "داور" په مځکه ولید "ارم"
دا د جنت په څیر و بڼ ښه خورم
د فېروز کوه په دود وران دی نا
ښکلی هر ګل څه ښه خندان دی نا
دلته کړو نګي دي ږغونه کوي
او به بهېږي سرودونه کوي
هر سړی ګوري چې ولاړ وي اریان
کړي ننداره د خداوند د بستان

غیثا الدین د جهان لمر دی نا
عالم له ده ډېر بهره ور دی نا
هند یې روښانه په اسلام کی نا
له ځانې خوښ خیر الانام کی نا
چې یې په غور کې نیلی زین کی نا
پر کافرانو یې ناورین کی نا
تل دې بری وي د غازي پر میدان
زه تایمني ستاینه کړم د سلطان[1]

د تایمني له اشعارو څخه فقط دغونې موږ ته پاتې دي او په دې کې دی زمینداور ستایي او ددې ځای تاریخي ودانۍ او مدنیت بیانوي، دی په زمینداور کې د "ارم" باغ ستاینه کوي او وایي چې د فېروز کوه په ډول ودان دی او د تاریخ له پلټنې

[1] پښتانه شعراء ج ۱، ص ۵۸

ښکاري، چې دغه ارم په داور کې یو باغ و د غوري عصر یو مؤرخ منهاج سراج جوزجاني هم ددې باغ ارم یاد داسې کوي:

((ثقات چنین روایت کرده اند: که سلطان غیاث الدین در اول جوانی معاشر عظیم بود و شکار دوست و از حضرت فیروز کوه که درالملک او بود تا بشهر زمین داور که دارالملک زمستانی، بوده هیچ افریده را مجال نبودی که شکار کردی... در زمین داور باغی ساخته بود آنرا باغ ارم نام نهاد و الحق درمیان دنیا مثل نزاهت و طراوت آن باغ هیچ پادشاهی رانبود و طول او بقدر دو میدان وار زیادت بود...))[1]

منهاج سراج د غوري عصر یو مشهور سړی دی چې د غوري شاهانو په دربار کې اوسېد، د بامیان فېرو کوه، هرات زمین داور مدنیتونه یې پخپلو سترګو لیدلي دي، د تایمني ښتون شاعر دغه بدله هم ددغه مؤرخ د بیان تایید ښه کوي او دا دوه معاصر ادباء د غوریانو د ثقافت نمایندګان دي، د تایمني دغه شعر روان او ساده دی او ضمناً حماسي خوا هم لري او لکه د ښتو افواهي اشعار په وزم هم ویل کېږي، که څه هم ظاهراً د عروضي اشعارو په تقلید د قافیې تر اصولو لاندې دی؛ مګر د ښتو د پخوانیو او اوسنیو ازادو سندرو رنګ لري او د اکثرو بیتو په پای کې د ترنم (نا) راغلی دی او دا خاصیت د ملي اشعارو دی چې په ترنم ویل کېږي.

داسې ښکاري چې تایمني په شعر کې د پخوانو او خاصو وطني اسلوبو تابع و؛ مګر بیا هم د ماحول اثر پرې شوی او ښایي د پارسي ادب اغېزې پرې لوېدلې وي، چې دده له دغه یوه شعره ښه ښکاري.

[1] طبقات ناصري ج ۱ ص ۴۲۹.

# (۱۳)

# قطب الدین بختیار

## (۶۰۰ هـ)



قطب الدین د احمد زوی د موسی لمسی په قوم پښتون بختیار او د خپل عصر له نومیالیو عرفاوو څخه و، چې تر اوسه هم په هند کې لوی شهرت لري. پر دیو مؤرخانو دا سری نه دی پېژندلی او دده د پښتونوالي ذکر یې نه دی کړی؛ مګر د پښتنو مؤرخانو دی د پښتنو په عرفاني مشاهیرو کې راوړی دی. نعمت الله په مخزن کې دده مناقب په تفصیل سراوړي او داسې وايي: ((حضرت خواجه قطب الدین بختیار کاکي قدس الله سره نام پدر ایشان احمد بن موسی است ساکن اوش بود که از توابع بغداد است و تولد ان برگزیده، در سنۀ پانصد و هفتادو پنج اتفاق افتاد، چون سال عمر ایشان به بیست و پنج رسید حضرت معین الدین سجزی بآن مکان تشریف آورد خواجه

قطب الدین بختیار دست انابت بذیل هدایت ایشان در آورده مرید شد ... بعد برفاقت شیخ جلال الدین متوجه هندوستان شدند، در بلدهٔ ملتان بغوث العالم شیخ بهاء الدین زکریا ملاقات نمودند ...))[1].

په دې ډول نعمت الله د پښتنو مؤرخ ـ قطب الدین بختیار د خپل کتاب په ډېرو ځایو کې "اقطب افغان" بولي او دده د نورو هم قومانو مشاهیرو نومونه هم راوړي، لکه خواجه یحیی بختیار، شیخ شهاب بختیار، شاه ابوبکر بختیار او نور... دا خو ښکاره ده، چې بختیار د پښتنو یو خورا مشهور او ستانه قوم دی، چې تر اوسه هم د سلیمان غره په شاوخوا کې پوندګلي او سوداګري کوي ځکه چې پردي مؤرخان د پښتنو په دغه قوم نه وو خبر، نو یې قطب الدین پښتون نه دی لیکلی، تش دده سره بختیار لیکي، فرشته وایي، چې: دی په اوش کې زوکړی دی چې د ماوراء النهر له ښارو څخه و[2]. ابو الفضل علامي هم دی د فرغانې د اوش بولي[3].

اوش یا اوچ خو دوه زاړه ښارونه وو، چې د سیحون پر هغه بله غاړه ودان وو[4]. ابن خرداذبه وایي: دا یو لوی کلی و چې له قبا څخه اوه فرسخه لرې و او اوزګند ته لس فرسخه پروت و[5] یاقوت هم دا دوه کلي بېل بېل یادوي اوش له فرغانې څخه او اوچ د سیحون پر غاړه ګڼي[6] نو که موږ د نورو مؤرخانو دغه

---

[1] مخزن افغاني خطي

[2] تاریخ فرشته ص ۳۲۸.

[3] آیین اکبري ج ۲ ص ۱۶۹

[4] حدود العالم ص ۲۴.

[5] االمسالك والممالك ص ۳۰ـ۲۰۸

[6] معجم البلدان ج ۱ ص ۳۶۸.

قول چنې قطب الدين په اوش کې اوسېدو منو ځکه چې دده پښتنواله پښتنو مؤرخانو تصديق کړې ده؛ نو دا ويلای شو، چې دده نيکه يا پلار به هغې خوا ته تللی او قطب الدين به هلته زوکړی وي. دلته دا خبره هم د غور وړ ده، چې زموږ پښتون مؤرخ سليمان ماکو پخپله تذکره کې ددې قطب الدين ذکر داسې کړی دی:

((نقل کاوه شي چې: بختياري ستر ستانه و، له ده څرګند شوي دي هغه کرامات چې موږ وکښل او وويل۔ موسی چې ستر پلار و د قطب، تللی و له بختيارانو څخه او مېشت و پر اېواد چې سيند باله شي))[1] دا روايت خو د قطب الدين د نيکه تګ له خپله وطنه ثابتوي؛ مګر د ماوراء النهر پر ځای سند ښيي که موږ دقت وکړو، په سند کې هم په دغو وختو يو ښار ودان و چې (اوچ يا اوچه) بلل کېده، مؤرخان يې د سلطان معز الدين غوري په فتوحاتو کې د ملتان سره يو ځای راوړی[2] او دا ښکاري چې (اوچ) د سند يو مشهور ښار و؛ نو که د قطب الدين پلار او نيکه په دغه ښار کې اوسېدلي وي. ځکه چې د قطب او دده د پلار نور عرفاني معاصران هم په ملتان کې و؛ نو به د سليمان ماکو قول اصح وي. په هر صورت قطب الدين خو پښتون و، چې نيکه يې له خپله قومه بختيارنو څخه تللی دی يا د سند په اوچ يا د ماوراء النهر په اوش کې اوسېد او وروسته يې لکه دمخه چې وويل شوه په هند کې شهرت موندلی دی.

قطب الدين د مخزن افغاني او آيين اکبري او مخبر

---

[1] د سليمان ماکو تذکره.

[2] وګورئ: تاريخ معصومي ص ۳۳ تاريخ، مبارکشاهي ص ۵_۶، طبقات اکبري ج ۱ ص ۶۱.

الواصلين په قول د لومړي خور په ۱۴ مه په هجري كال (۶۳۳ هـ) او (فرشته ۶۳۴ هـ) د عمر پر (۵۸) كا وفات او په ډهلي كې ښخ شو، چې تر اوسه يې مزار ډېر مشهور دى.

## د قطب الدين اشعار:

د قطب الدين علمي او عرفاني شهرت خو له تېرو ليكنو څخه تاسې ته ښكاره شو، چې دا نوموړى بختياري پښتون په عرفاني دنيا كې څوني لوړ مقام لري او اكثر د اولياوو تذكره نګاران دده احوال ذكر كوي؛ مګر دا عارف د پښتو يو خورا ښه شاعر هم دى، چې سليمان ماكو يې پخپله تذكره كې د مناقبو تر شرحې وروسته يوه عشقي سندره هسې رانقل كوي او څكه چې سليمان دده معاصر دى؛ نو يې قول د منلو وړ هم دى:

((بختيار په پښتو سندرې كړينه_ او ښې تويوينه_ خداى ته نارې كړې غلبلې كړې_ پاړكى لرينه_ چې يو دادى:

وير مې زړه سوري سور كړ	راته وګوره ملوكې!
په بېلتون كې دې وباسم:	له خوږمنه زړګي كوكې[1]
راته وګوره ملوكې_ راته وګوره ملوكې!

د بېلتون اورونه بل دي	هر ګړى مې زړګى سوځي
لېونى يمه د مينې	سوځم زه لكه پېلوځى[2]
راته وګوره ملوكې!_ راته وګوره ملوكې[3]

---

[1] كوكې_ د ژړا نارې.
[2] پېلوځې_ د اور بلولو خاشې.
[3] ملوكه_ محبوبه.

غـــوړولی دې وربـل[1] دی اور زمـــا پـــه زړګـــي بـــل دی
زه بختيار خاورې ايرې سوم پـــه اور ســـوی مـــې ګوګـــل دی
راته وګوره ملوکې![2] ـ راته وګوره ملوکې

په دې اشعارو کې د پښتو شعر زوړ اثر اوس لا شته، يوه پردۍ کلمه پرې ګډه نه ده او د اداء ډول يې هم ساده، اما ډېر بليغ دی. د مينې واردات او د مين د زړه حساسات يې ښه پکې ځرګند کړي دي دا شعر لکه اوسني عاميانه اشعار تکرارېدونکی غبرګ کسر هم لري.

داسې ښکاري، چې قطب افغان د مينې په دنيا کې تاوده جذبات لرل او سليمان ماکو، چې دده معاصر دی دغه عشقي احساسات په داسې ډول بيانوي:

((تا ژاړې، او نارې، غلبلې کړې او د عشق سندرې لولې)) له دغو عشقي نارو او سندرو څخه يوه لوړه سندره اوس موږ ته پاتې ده، چې د شاعر د زړه درد او سوزناکه جذبات ښکاره کوي.

قطب يو فارسي لوی ديوان هم لري، چې ټول عشقي غزليات دي او له هغو څخه هم دده عشقي جذبات ښکاري؛ مګر په پارسي کې دده اشعار ډېر ښه او بليغ او روان نه دي؛ ځکه چې اصلي او مورنۍ ژبه يې پښتو وه؛ نو يې په پارسي هغسې اشعار نه دي ويلي چې د پارسي له لوړو شاعرانو سره مقابله وکړي په اکثرو پارسي اشعارو کې تعقيد او شعري عيوب شته لکه دا شعر:

---

[1] اوربل ـ دلته د پېکي معنی لري.
[2] د سليمان ماکو تذکره.

هـــــر کرا برسر کوی تو مقامش باشد
شربت وصل تو هر لحظه بکامش باشد

چې په لومړۍ مسرۍ کې (را) او بیا د مقامش (ش) ښخونده دي او دا دواړه په یوه جمله کې په دغه ډول سره یو ځای کول د بلاغت له اصولو سره نه ښايي، که دا لاندې ابیات هم ولولئ، دغه خبره به ښه څرګنده شي او هم به مو دده د پارسي کلام نمونه لوستلې وي:

| | |
|---|---|
| ای خـــــاک درت بفرق سرتاج | محتـــاج تـــو هـــم غنـــی و محتـــاج |
| هستی وجود عـــــــاشقان را | کـــردی بـــه کرشـــمهٔ تـــو تـــاراج |
| از دولت عـــــــشق تو دل من | چـــون بحـــر عميـــق گشـــته مـــواج |
| از مملکت وجـــــــود عشقت | هـــر چيـــز کـــه بـــود کـــرد اخـــراج |
| خـــامی که زند دم از انالحق | بـــر دار ز نـــيش همچـــو حـــلاج |

محتاج تو قطب دین نه تنهاست
باشـــــد بتو کاینات محتاج

که ددغه پارسي دیوان انتساب قطب افغان ته ثابت شي؛ نو به موږ ووايو چې دا په رښتیا د یوه غیر پارسي ژبان سړي کلام دی، چې پارسي یې خپله ژبه نه ده او یو پښتون به هم داسې ماته ګوډه پارسي وايي، که څه لوړه غزل د ویونکي د فکر پوخوالی هم ښيي؛ خو ژبه یې هغومرې پخه او سوچه او خوږه نه ده.



# اووم څپرکی

## نثر او لیکوال

## تر (۶۰۰ هـ) پورې

لکه چې تاسو ددې کتاب په لومړي ټوك کې ولوستل: د آريايي ژبو او اقوامو پخواني کتب او ادبي آثار ټول منظوم دي، ويدا، اوستا او د سنسکريت زاړه کتابونه لکه مهابهارته اور امـاين او نور ټول يو راز ازاد نظم دی، چې ښايي د تغني او ترنم په ډول به ږغول کېده، دا خبره چې نظم تر نثر په ادبي آثارو کې دمخه دی يوازې په ارين ژبو پورې لاهم اړه نه لري، په اکثرو ژبو کې دغسې وي، که څه هم اساساً ژبه منثورې خبرې دي؛ خو

داسې منشورې خبرې د خلکو لږ په یاد پاتېږي او تش په لیك او تحریر سره خوندي کېږي؛ مګر منظومې ویناوې خلك په یادوي او پښت پر پښت یې انسان خپلو نوو نسلونو ته سپاري، له هم دغه جهته تر هغه وخته چې لیك او تحریر په یوه قوم کې ډېروي؛ نو د دوی ادبي آثار هغه منظومې ټوټې دي، چې د خلکو په یاد وي او له یوې سینې بلې ته ورنقلېږي څو په پای کې د لیك په ډول خوندي شي او کتابونه ځنې جوړ شي، په هم دغو سببو سره د اکثرو اقوامو پخواني آثار او ادبي نخښې منظومې دي او نثر تش د کتابو په ذریعه د لیکلو له اوقاتو څخه ساتل شوی دی، د پښتو پخواني ادب آثار هم دغسې دي او ځورا زړې سندرې او ادبي ټوټې چې زموږ لاس ته راغلې دي، منظومې دي او د منشورو آثارو بولګه یې ډېره لږ پاتې ده او لکه تر (۶۰۰ هـ) پورې چې موږ منظوم آثار لرو، هغسې منشور آثار نه دي رامعلوم او که څه وو هغه هم زمانې له منځه وړي او ورك شوي دي.

د ځینو مؤرخانو له اشارو څخه ښکاري، چې د اسلام په ابتدایي پېړیو کې هم په پښتو ځینې کتابونه کښل شوي وو او لکه خلکو چې په دې ژبه اشعار ویل کتابونه یې هم پکې کښل؛ مګر تر (۶۰۰ هـ) وروسته پر خراسان او پښتونخوا د مغولو هسې یو مدهش تاړاك راغی، چې ډېر مدني آثار یې له منځه یوړل نو ښایي چې په دغه تاړاك کې د پښتو کتب او آثار تباه شوي وي؛ نو ګویا د اسلامي دورې لومړې پنځه پېړۍ هسې وختونه دي چې موږ د پښتو کوم منشور کتاب نه شو پکې موندلای او فقط له یوه کتابه چې په پښتو کښل شوی و دا لږ معلومات لرو.

# د سالو وږمه

## د (۲۹۰ هـ) حدود

ددې کتاب په دریم څپرک کې تاسې د ابو محمد هاشم د زید سرواني د زوی اشعار ولوستل او دده شرح حال هم هورې ولیکل شو، دا سړی د پښتو پخوانی شاعر او هم عالم دی چې مخصوصاً یې په عربي ادب کې لوی لاس درلود او د عربو د مشهور استاد ابن خلاد شاګرد و او په کلو کلو په عربي ممالکو کې اوسېدلی و.

هاشم په (۲۹۴ هـ) له عراقه راغی او په بست کې یې یو کتاب د عربو د اشعارو د بلاغت او فصاحت په بیان کې وکېښ چې نوم یې ((د سالو وږمه)) و یعنې د رېګستان نسیم[1] چې په پښتو سال رېګ ته وایي او وږمه د نسیم په معنی ده. زموږ د اوسنیو معلوماتو له قراره دا د پښتو ډېر پخوانی کتاب دی چې تر اوسه موږ ته معلوم دی او د پټې خزانې مؤلف یې د ((لرغوني پښتانه)) په حواله نوم اخلي او د هاشم سرواني له مؤلفاتو څخه یې ګڼي.

نور نو موږ معلومات نه لرو چې ددې کتاب نثر څنګه و او څونې و خو فقط د پټې خزانې د مؤلف له دغې مجملې نوشتې څخه داسې نتیجه اخیستلای شو، چې په پښتو ژبه قدماوو کتابونه لیکل او دا رسم موجود و.

---

[1] پټه خزانه ص ۵۹.

# اتم څپرکی

## د قدماوو دورې ته عمومي کتنه

## یا

## د لومړۍ برخې لنډون

تاسو په دغه لومړۍ برخه کې ولوستل چې د پښتو ژبې لومړی ادبي اثر او شعر د هجرت د دوهمې پېړۍ په ابتدايي کلو اړه لري او ددې ژبې خورا پخوانی شاعر چې تر اوسه موږ ته معلوم دی د سوريانو د کورنۍ پهلوان امير کروړ د امير پولاد زوی دی، چې په (۱۵۴ هـ) کال په فوشنج کې مړ شوی دی او بل هم د لويکانو يو بيت دی، تر دې وروسته نو د پښتو شعر نخښې ډېرې دي او ډېر شعراء لرو چې بعضې د غور له درباره سره اړه لري او ځينې داسې شعراء دي چې د سليمان په غره او د پښتونخوا په نورو ځايو کې اوسېدل او ځينې په ملتان او هند کې وو. ددې لومړنۍ برخې له عمومي کتنې څخه موږ دا نتيجه اخلو چې پښتو د اسلام په اولو کلو کې تر (۶۰۰ هـ) پورې په ټوله پښتونخوا کې له بادغيس او هراته رانيولې په غور او زابل او د هلمند او ارغنداو په ورشوګانو او د سليمان غره په لمنو او په پېښور او ننګرهار کې تر ملتانه ويله کېده او ددې ژبې ويونکي

په دغو ورشوګانو کې له بادغیس تر اباسینده پورې خپاره وو او مهم مراکز یې غور او د سلیمان غره لمنې وې، په دې لومړۍ دوره کې چې موږ یې د پخوانیو او قدماوو دوره بولو او تر (۶۰۰ هـ) پورې رارسېږي، په پښتو ډول ډول اشعار ویل شوي دي، چې د مضمون له پلوه حماسي او عشقي آثار پکې ډېر دي او د ستاینې او مدح او ویرنې او رثاء او پند او نصیحت او اخلاقي تلقیناتو ځینې شعري ټوټې هم شته.

دا اشعار چې د (۵۰۰ هـ) کلو د مختلفو ادبي تمایلاتو او جذباتو نمایندګي کوي اکثر د پښتو ژبې د مخصوصو عروضو او اوازنو په ډول چې سندرې او پارګي یې بولي، ویل شوي دي؛ مګر تر (۴۰۰ هـ) راوروسته ځینې داسې اشعار هم شته چې د عربي او پارسي عروضو او قافیو ته نږدې دي، لکه ځینې قصاید چې د غور په دربار کې ویل شوي دي او په پښتو یې (بولله_ جمع: بوللې) بولي.

عموماً د قدماوو په دوره کې د شعر ژبه خالصه پښتو وه او اکثر زاړه اشعار د نورو ژبو کلمات هېڅ نه لري او که په ځینو کې څه پردي کلمات وي، هغه هم زښت لږ دي. هغه اشعار چې په غرو او رغو کې ویل شوي دي، د نورو ژبو له اثره خالي دي؛ مګر ځینې اشعار چې تر (۴۰۰ هـ) راوروسته په ښارو او مدني ځایو او دربارونو کې ویل شوي دي، لږ لږ د نورو ژبو د کلماتو ګډون پکې ښکاري او دا هغه د محیط کلك اثر دی، چې تل پر ادب باندې لوېږي.

عموماً ټول د لومړۍ دورې منقول اشعار د پښتنو د روحیاتو او د دوی د محیط د اثر او د غرو او رغو د مناظرو او د دوی د اجتماعي شعور او ملي جذباتو نمایندګي کوي او هغه اخلاق

او افکار او احساسات او مناظر تصویروي، چې د پښتنو په محیط کې موجو وو.

په دغو اشعارو کې د پښتو ډېر داسې کلمات او لغات هم شته چې اوس ژوندي نه دي او په اوسنۍ پښتو کې نه استعمالېږي، دا لغات اسماء او صفات هم دي او ځینې مصادر یا افعال هم شته چې اوس یې څوك نه وایي.

د قدماوو د دورې اشعار اکثر د پښتو ژبې د فصاحت او سلاست له پلوه خورا سلیس او روان دي، تعقیدات نه لري، ابهام او تکلف نه پکې لیدل کېږي، پېچلي او نغښتلي عبارات نه لري، د اداء طرز او اسلوب یې نهایت ساده او روان او د سهلو ور دی.

د قدماوو د شعر یوه مهمه ښېګړه داده چې د شعر مضمون یې سره نښتی او پیوستی او مسلسل دی، تر دې دورې وروسته چې نور شاعران په پردو اشعارو روږدي شول، دغه خاصیت یې بایلود. د پارسي شعر د خراسان پر سبك چې د سامانیانو او غزنویانو او سلجوقیانو په دوره کې کوم شعرونه ویل شوي دي هم دغه ښېګړه لري؛ مګر وروسته دغه د شعر د مضمون تسلسل له منځه ووت.

د پخوانو شاعرانو په تصویر او تخییل کې عموماً د محیط اثر دونې ټینګ دی، چې اکثر تشبیهات او استعارې یې طبیعي او محیطي دي، د بڼ تازګي او د اوبو شور هار د پسرلي ښکلا او د غرو او رغو زیبا ننداره د پېغلو اتنونه د زرکو کتهار او نور داسې محیط الهامات دي چې د پخوانیو د شعر د شمزۍ کړۍ دي او هر شاعر یې هم په ستاینه، هم په رثاء، هم په عشقي جذباتو او سندرو او هم په تبلیغ کې تصویروي.

# یوه تاریخي کتنه

د هجرت د شپږمې پېړۍ له ابتداء بیا تر اخره پورې په پښتونخوا کې دوې لویې سلطنتي کورنۍ وې چې په اوایلو کې د غزنوي شاهانو لویې کورنۍ سلطنت کاوه، دوی په پښتنو ګډه شوي وو او د شرقي پښتونخوا پښتانه یې ملګري وو، بیا نو د غوریانو د کورنۍ شاهان غالب شول او پر تخارستان، بامیان، خراسان، زابل، غور، هرات او شرقي پښتونخوا د دوی لاس بر و، دوی په هند کې هم ډېر فتوحات وکړل او د غور شاهنشاهي یې له خراسان او امو څخه د ګنګا تر څنډو پورې ورسوله[1] غوریانو د پښتو ادب ته توجه کوله او د دوی په دربار او مملکت کې مشهور شعراء تېر شوي دي، خو د شپږمې پېړۍ په اواخرو کې دغه کورنۍ ضعیفه شوه او پس له (۵۰۰ هـ) وه چې د مغولو د تاړاك لومړۍ څپې پر بلخ او غور او خراسان راغلې. د (۶۱۸ هـ) حدود وو چې د مغولو څخه د چنګېز خان وحشي لښکر تر امو راواوښتل، په دغو وختو کې د پښتونخوا شمالي خواوې لکه تخارستان، بلخ، بامیان، غرستان (غرجستان) خورا معمور وو، مشهور ښارونه یې لرل. بادغیس، مرو، هرات، غور داسې ښکلي او ودان ښارونه درلودل چې په هغو وختو کې د منځنۍ اسیا د تهذیب او علم مرکزونه وو، خلك په ډېره هوسایۍ پکې اوسېدل، علماء، شعراء، ادیبان او پوهنوال

---

[1] طبقات ناصري ج ۱.

ډېر وو؛ مګر د چنګېز خان وحشي لښکر او دده د زامنو مدهشه قواء پر دې ودانو ښارو او ښکليو مدنيتونو هسې راتوی شول چې له لويو ښارو څخه يې يوه لوټه روغه نه پرېښوه او ښکلي ښارونه يې وران کړل، کتب خانې يې وسوې ځمکې يې په وينو ولړلې او اکثر خلك يې مړه کړل، پاتې غرونو ته وختل.

پښتانه په دغو وختو کې ډېر د شرقي پښتونخوا په غرو کې وو، د سليمان د غره په شاوخوا او د کابل په جنوبي خوا او ننګرهار کې اوسېدل، خپله ژبه او خپل تهذيب يې د مغولو له تاړاکه خوندي کړی و او خپل استقلال يې ساتلی و؛ خو د پښتونخوا سيمې مغولو نيولې وې، په دغو وختو کې پښتو اديان لرل او خپله ژبه يې روزله، لکه د مغولو چور چې د پارسي ژبې پر ادب اغېزه وکړه او د ادبياتو افکار او د بيان طرز يې ورواړاوه، دغسې هم دې خونړۍ واقعې پر پښتو ادب خپله اغېزه وکړه چې زه به يې ددې کتاب په يوه بېل څپرکي او درېم ټوک کې بيان وکړم. د مغولو سلطه او اقتدار څلور پنځه پېړۍ اوږد شو، د چنګېز خان د کورنۍ مدهش تاړاکونه لانه وو ساړه شوي، چې له دې خاندانه يو بل سفاك سړی د (۷۷۱ هـ) په حدودو کې راووت، دا ګوډ تيمور و، چې ده هم پر دې ځمکه خپل تاړاکونه شروع کړه او په کلو کلو يې دا خواوې سره ورېږدولې دا اور لانه و مړ شوی او هرې خوا ته يې دودونه ښکارېدل، چې بيا يو بل خونکار او ډېر د لوی زړه خاوند هم له دغه ټبره راووت او د (۹۱۰ هـ) په حدودو کې بيا پښتونخوا سره ونښتېځله او د وينې تويولو او تاړاك سلسله يې هسې جاري وساتله، دا سړی بابر و چې مخصوصاً يې د پښتو سره دښمني وه او د دوی سرونه يې ورکوتل.

په دې ډول له هغه وخته چې د پښتنو غوریانو د عظمت جنډې تر (۶۰۰ هـ) وروسته کښته شوه، بیا نو دې قوم د مغولو له لاسه ښه ورځ نه ولیده او څلور پېړۍ یې په دغه اړ و دوړ سره تېرې کړې، ویې وژل، ووژل شوه، وجنګېدل، جنګونه ورسره وشوه کله به یې د چنګېز د لښکرو په وینو خپل غرونه لړل، کله به تیمور د دوی پر کور و په زابل او ننګرهار کې غدۍ اچولې، کله به بابر او اکبر او نورو په دوی پسې تورې راکښلې وې. په دې مدهش او خطرناك حال کې هم پښتنو خپل ځانونه ساتلي وو، دوی د خپلو زلمو په وینو خپله مځکه او خپل غرونه خوندي کول، څو پېړۍ زلمو غشي او تورې له لاسه نه واچول، دوی پر خپل استقلال مین وو او دغه مرغلره یې ساتله، څو یې وس و، پر دې غرو به د دوی د زلمو تېرونه سپر وو او تل به د خپل وطن لپاره په وینو کې رغښتل، په دې ملي حشر کې لکه د زلمو تورې چې ځلېدې، د ادیبانو ژبې هم هغسې چلېدې، دوی خپل قوم ویښاوه او د وطن دفاع او د استقلال ساتلو ته یې ولاړ وو، دوی خپله خپلواکي په توره او قلم ساتله، ډېر شاعران او ادباء وو، چې ددې ملي جهد پر میدان ولاړ وو او تل به یې زلمو ته پخپلو اشعارو د وطن ساتنې تبلیغ کاوه او تورې به یې وهلې؛ نو د مغولو دورې لکه نور ضعیف اقوام دوی مړه نه کړل؛ بلکې ژوندي یې کړل، دوی یې زمول نه کړل؛ بلکې د زمرو په څېر یې خروړي کړل، چې دا روح د دوی په ادب کې ښه ځلېږي او د مغولو دوره په یوه ادبي دفاعي تبلیغ امتیاز مومي؛ ځکه چې ددې دورې ادبي ممیزات او خصایص بېل بېل پر خپل ځای راوړل کېږي؛ نو به تر دغې تاریخي لنډې کتنې وروسته په مقصد پیل وکړم.

# نهم څپرکی

## شعراء

### (۱۴) شيخ متي
### (۶۳۳_۶۸۸ هـ)

دا مشهور عارف او متقي شاعر د پښتنو غوريا خېلو څخه دی، چې دده لوی نيکه خرښبون هم د پښتو اديب او شاعر و او دمخه يې احوال او آثار تاسو ولوستل.

شيخ متي د عباس زوی و، چې عباس د عمر او عمر د خليل زوی و خليل د غوريا او غوريا د کند بن خرښبون زوی و. دا مشهوره کورنۍ د خرښبون تر مرګ وروسته په ارغسان، پښين او پښور کې سره خپره شوه او شيخ متي دوه نور ورونه هم درلودل چې حسن او امران نومېدل د امران مزار تر اوسه د کوږک پر غره دی، چې هغه غر دده په نامه ((د خواجه امران غر)) هم بلل کېږي او يوه خور يې ((بي بي خالا)) چې قبر يې تر اوسه هم په پښين کې مشهور دی او په کلات کې د ترنک پر غاړه د ((خالا کلی)) هم ددې په نامه تر اوسه باله شي، چې دا به په ژوند هلته اوسېده. شيخ متي په (۶۲۲ هـ) زېږېدلې او د (۶۵) کالو په عمر د ترنک پر غاړه په (۶۸۸) هجري کال وفات شوی دی، دده مزار تر اوسه هم د کندهار شمال شرقي خوا ته تقريباً (۵۰) ميله لېرې پر يوه غونډۍ واقع دی، چې کلات يې بولي او دی په کلات بابا مشهور دی، ده خپل ژوند هم د ترنک پر غاړو او د

غونډان په غره او د کلات په حدودو کې تېر کړي دي[1].

د شيخ متي کورنۍ په خليلو غورياخېلو کې خورا مشهوره ده، دوی د پښتنو له رغو څخه بېرته د کندهار خواوو او د ترنک غاړو ته ولاړل، په علم او عرفان معروف وو او د پښتنو مؤرخانو يې ذکر ډېر راوړی دی. نعمت الله په مخزن کې (ص ۳۰۲ قلمي) او اخوند درويزه پخپله تذکره کې (ص ۸۷) او حيات افغاني (ص ۱۵۹) او نور مؤرخان ددې کورنۍ احوال په تفصيل ذکر کوي او ددغې عرفاني کورنۍ خلک تر اوسه هم د کندهار د "ناکودک" په کلي کې اوسي، په دوی کې شعراء، مؤرخان، عارفان ډېر تېر شوي دي، چې په دغه کتاب کې به د دوی احوال پر خپل ځای راوړل شي. تر خرښبون وروسته هم ښايي، چې دوه قرنه په دې معروفه کورنۍ کې ډېر مشاهير او شعراء تېر شوي وي، چې زمانې د دوی آثار سره مروړلي او پرېولي ي؛ خو دوه قرنه وروسته د پښتو شعر يو خورا ښاغلی او عارف اديب موږ پېژنو، چې د مغولو د تاړاك په منځ کې دنيا ته راغلی او هغه نو شيخ متي دی[2].

## ددہ اخلاقي او عرفاني شهرت:

شيخ متي په پښتنو کې لوړ اخلاق او عرفاني شهرت لري او لکه ځينې خورا لوړ مشاهير دي هم د "بابا" په لقب يادېږي او دا

---

[1] پټه خزانه ص ۲۳.

[2] مت يا مټ په پښتو قدرت او توان او متانت ته وايي، متره قوت او قلبي جرائت او طاقت دی... مټ او متينه هغې مځکې ته وايي چې د خاورو اجزا يې دراه او ټينګ وي... متار مضبوط او کلك لرګی دی؛ نو متي هم له دغې ريښې څخه د کلك متين او جرائتمند او جدي په معنی دی.

رود پر غاړه د سپینې سپوږمۍ په ښکلې رڼا کې وغولي ده دده خطاب غورځند رود او ډک سین ته دی چې دده او محبوبا ترمنځ حایل شوی دی د مینې اور ده ته قرار نه ورکوي او دی داسې تصور کوي چې دا اور څکه چې د پر تېز دی؛ نو د سین څپې او طوفان او د سېل زېږې اوبه په وچې کړي.

د سین پر غاړه ناسته دی، ته شي تېرېدلای؛ نو د محبوبا کلي ته د سپوږمۍ په ذریعه خپل احترام تقدیموي او په پای کې دې خروشانه سېل ته د مینې په قوت خطاب کوي او تر اوړي.

د ملکیار دا د عشق شپه او د مینې وینا وې د پټنې خزانې خاوند داسې نقل کوي:

هسې نقل کا، چې: په سنه (۷۴۹ هـ) کې په پسرلي ترنک د پر ډک شو، په سختو تېزو[1] او په یوه میاشت یې چر[2] ته وموند او خورا ډک غاړې غاړې بهېدی، ملکیار بابا چې د ترنک څنډو ته راغی هسې سندرې یې ویلې:

ترنک بهېږي ترنک بهېږي غاړې تر غاړې
زما زړګی خو خپل لالی غواړي
که روده، روده! د ترنک روده! خاوند دې وچ کا
چې زړګی مومي زما خپله سوده[3]
که تېزدی تېزدی تېز د بیلتون دی زړه تېزه وړی[4]
په وير ژړلی په غم زیون دی

---

[1] تېزو: سېل.

[2] چر- پایاب چې ډېرې ولاړې.

[3] سوده- اطمینان.

[4] تېزه وړی د سیلاب خس و خاشاک.

که اور دی اور دی — په زړه مې اور دی — دا اور به وچ کا

د ویر تیږوته — بیل ډیر په زور دی

تمتڅه یوسه — سپیني سپوږمیه — ورته ووایه

چې ترنګ تیال کړم — ستا له خولګیه

که خړو خړو — اویو سوان[۱] کړه — بیل "ملکیار" دی

پاتې له یار دی — سوب[۲] بې جانان دی



## (۱۷)

# زمیندوري اکبر

## (د ۷۸۰ هـ حدود)

د پښتنو له نوموړکو شاعرانو څخه دی، چې دده آثار هم ورک دي او فقط یو څو پاتې په زمیندوري کې ما میندلي وې چې دا نوموړکی شاعر د هغو پاتو په مرسته وپېژاند شو.

لکه تاسې چې ددې کتاب په مختلفو برخو کې ولوستل. داور زموږ د وطن یو معروف ولایت او ډېر عمر د اسلام له ابتداء څخه بیا د مغولو تر تاړاکه د مدنیت او ثقافت مرکز و مشهور ښاروته یې لرل او اکبر هم په دغه ځای کې پیدا شوی و.

دا شاعر هم د مغولو د دورې په ابتداء کې ژوندی و او د هغو

[۱] سوان ـ سهولت او رعایت.

[۲] سوب ـ حاضر.

شاعرانو له مخکښانو څخه دی چې دوی پخپلو اشعارو کې د مغولو له تاړاکه شکوې کړې دي، یا یې د هغو مظالم لیدلي دي. دی په دې بیت کې هسې وایي:

د مغلو لوتمر[1] هسې په اور وسوم
چې به هېر په دې ماتم زمیندا ور کړم

له دې بیته ښکاري چې دی د ګوډ تیمور معاصر دی؛ ځکه چې (تمر) د تیمور قدیمه املا ده او دې پاچا له (۷۷۱_۸۰۷ هـ) پورې سلطنت کړی دی؛ نو د اکبر د ژوندانه عصر هم په دغو کلو کې د (۷۸۰ هـ) حدود ټاکلای شو؛ ځکه چې امیر تیمور په (۸۰۰ هـ) د افغانستان نور ځایونه فتح کړل او له کابله یې د هند خوا ته حرکت وکړ[2].

## د اکبر اشعار:

د اکبر ډېر لږ اشعار د زماني له انقلابه ساتلي پاتې دي، فقط له څو زړو پاڼو څخه موږ یقین کولای شو، چې دی د دیوان خاوند و او په شعر کې یې غزل او مثنوي موږ ته پاتې دي. اکبر که څه هم په عروضي ډول لکه فارسي غزلیات ویلي دي؛ خو په وطني وزن هم دده د شعر یو څو نمونې شته او دده دغه مخصوص ډول پښتو اشعار او نور عروضي غزلیات دواړه سلیس او خواږه دي. په دې مثنوي کې اکبر د مینې د دنیا ډېر نازک حالونه او احساسات تصویر کړي دي:

---

[1] تمر_ د تیمور قدیمه املا ده

[2] د علي یزدي شرفنامه قلمي.

## مثنوي

زه عاشق یم یار هم تیز — تور څه ته لرو تمیز!

یو پر بله عاشقان یو — پخپل عشق کې صادقان یو

یو په بل پسې رنځور یو! — چې نږدې نه یو مهجور یو

عشق که ښه دی که بلا دی — پیدا کړی زموږ مولی دی

که دروغ نه کا عاشقان څوک — مړه سي دوی پر دا جهان څوک

خو به دواړه شهیدان وي — که رښتیني مسلمان وي

زه که مخ په اوښو سور کړم — زړه کباب صورت تنور کړم

لایق دا چې دا زه وکړم — څه تهمت به پر یار نه کړم

ولې هر ځای زه پېلتون کړم — یا د سرو اوښو، رژون کړم

هم اشنا خوار کړم هم ځان — یا تهمت کړم پر دوران

که نژدې که پر هیواد یم — زه دده په خیال و یاد یم

چې غه[۱] ښه دیدن یې یاد کړم — په تش خیال یې خاطر ښاد کړم

زه چې ژاړم مراد مې دادی — چې اشنا له ما جلا دی

که موږ بیا سره خوشحال سو — چې محکوم زموږ وصال سو

زه د یار سم، یار مې خپل سي — زه بلبل سم، یار مې ګل سي

په سپین مخ یاندې تپېږم — چې دی خاندي تري جارېږم

د لیدو شربت یې نوش کړم — غم د هجر فراموش کړم

سره کښېنو په خندا سو

په دا تېر احوال ګویا سو

چې تېر سوي په هجران دي — خوشال شوي غمازان دي

له غه پسه به صحبت کړو — زده زړونه به راحت کړو

چې غماز پاتې له میانه — همنشین شم له جانانه



(۱) غه ـ د «هغه» مخفف دی.

چې غـــماز له میانه دور سي | نور که شپه وي هم په نور سي
ولې یار زما خــــواهان دی | بیـا پـه عشـق کـې پهلـوان دی
د پر تفرت کا له غـــــمازه | رب دې دی کـــا ســـرفرازه
زه هـــر څو چې یاتدې چور یم | خـــو دده پـه پند مـــامور یـم
کـــه زلمی دی خو عاقل دی | بیـا د عشـق پـه کـار کامـل دی
تر ما زیات د عشق په کار دی | هـم معشـوق هـم مینـه دار دی

خـــو پخپله ترې جلا شوم
مـــدام سر په واویلا شوم

په دې مثنوي کـې اکبر د عشـق او مینـې هغـه تـازک او خونـدور حالونـه تصویر کـړي دي، چـې عاشـق او معشـوق دواړه یـو لـه بلـه سره غـواړي، یـوه د انجذاب او ایتلاف قـوه پـه ټولـو کایناتو کـې ساري ده، چـې هغـه عرفاء عشـق بـولي او نـور پوهـان یـې د جاذبې په نامه یادوي.

د کاینـاتو پـه اتـومي ذراتـو کـې، چـې دا عـالم څنې جوړیـږي، یـوه قـوه پرتـه ده چـې تـل دوی سـره نښلـوي، دغـه قـوه پـه انسـاني افـرادو او بیـا پـه اجتماعـاتو کـې هـم تـاثیر لـري عرفـاء لـه دغـه تجـانس او مجـاذبې څخـه چـې «عشـق» یـې بـولي، دا نتیجـه اخلي، چې یـدن او مـواد خو پـه مـادي دنیـا کـې یـو لـه بلـه علاقـه سره لـري او یـوه بلـه غـواړي: مګـر د انسـان «روح» یـوه بـل تـر مـادي لـوړ مرجع تـه میـل کـوي، ولـې چـې دا «روح» پـه ابتـداء کـې هم له هغې خوا راغلی دی.

مولینـای بلخـي څـه ښـه ویلـي دي او کـټ مـټ دغـه د اکبـر د مثنوي موضـوع ده، چـې پـه دې بیتـو کـې راغلـې ده: خـو دونـې شـوي دي، چـې اکبـر پـه یـوه مـادي رنـګ کـې دغـه معنـوي کیـف

شودلی دی:

هیچ عاشق خود نباشد وصل جو
که نه معشوقش بود جویای او
لیک عشق عاشقان تن زه کند
عشق معشوقان خوش و فربه کند
چون درین دل برق مهر دوست جست
اندران دل دوستی میدان که هست
هیچ بانگ کیف زدن آید بدر؟
از یکی دست توبی دست دیگر
تشنه می نالد که کو آب گوار
آب هم نالد که کو آن آب خوار
جذب آیست این عطش در جان ما
ما از آن او، و او هم زآن ما
حکمت حق در قضا و در قدر
کرد ما را عاشقان همدگر
جمله اجزای جهان ز آن حکم پیش
جفت جفت و عاشقان جفت خویش
هست هر جزوی ز عالم جفت خواه
راست همچون کهربا و برگ کاه
آسمان گوید زمین را مرحبا
با تو ام چون آهن و آهن ربا
میل هر جزوی به جزوی می نهد
ز اتحاد هر دو تولیدی جهد
هر یکی خواهان دگر را همچو خویش
از پی تکمیل فعل و کار خویش

تـر دې وروسـتـه مولينـا خپلـه عرفـاني نتيجـه لـه دې علمـي بحثه هسې اخلي:

خـاک گويـد خـاک تـن را بـاز کـرد
ترک جان گو سوی ما آهمچو گرد
گويـد آری ليـک هـن پـا بسـته ام
گر چه همچون و ز هجران خسته ام
چونکـه هـر جز وی بجويـد ارتفـاق
چـون بـود جـان عزيـز انـدر فـراق
گويـد ای اجـزای پسـت فرشـيم
غربـت مـن تلـخ تـر مـن عرشـيم
ميـل تـن در سـبزه و آب روان
زان بـود کـۀ اصـل او آمـد از آن
ميل جان اندر حيات و در حی است
زانکه جان لا مکان اصل وی است
حاصـل آنکه هر که او طالب بود
جـان مطلـوبش بـرو راغـب بـود
کهربـا عاشـق بشـکل بـی نيـاز
کـاه ميکوشـد در ان راه دراز[1]

اکبـر پخپـل مثنـوي کـې دا خيـره چـې عشـق پـه حقيقـت کـې معاشـقه او جـذب بـوه مجاذبـه ده پـه ښـه ډول ادا کـړې ده او د مولينای روم سره همنوا شوی دی چې وايي:

زه چې ژاړم مراد مې دادی
چې اشنا له ما جـلا دی

[1] مثنوي مولينای بلخي ص ۲۰۹ دريم دفتر.

ځکه چې مولینا هم هره ژړا او ناره په «از جدائی ها شکایت میکند» تعبیر کړې ده.

د اکبر له حیاته او احواله موږ ته یو خبر؛ خو فقط له یو څو اشعارو څخه دده د فکر ډول معلومېږي او ښکاري چې د خپل عصر په ادب پوه سړی و او هغه ادبي تمایلات او اذواق چې دده په عصر کې وو، ده ته ښکاره شوي وو او په عین دغو ادبي جریاناتو کې ده مخصوصاً د پښتنو شاعرانو روحي میلان او ذوق هم ساتلی و، چې دده له دغې خوږا مستې پښتو بدلې څخه ښکاري:

زه چې په مینه معشوقو د ښکرو شرنګ لره ځم
زه د هجران د ېېلتانه د تورو جنګ لره ځم
زه ایوته[1] یم په هجران سره قرار نه لرم
هجر مې اوېد شو د وصال د امید کار نه لرم
بېلتون په خوله راکړې ځاپېږې زه لاعار نه لرم
و ام د معشوق پر سینه پروت زه تور لونګ لره ځم



ځیني ي ولې څوك عاشق څورنګ[2] په توري کاندي
پر خوار مین د شها هومره هوري ژوري[3] کاندي
بې نیازه نکا چې پلو له مخه لیري کاندي:
چې راویاځي په اخلاص چې خپل څورنګ لره ځم



[1] ایوته، پریشان.
[2] څورنګ، زخمي.
[3] هوري ژوري، ظلم.

اول خو ته تجلي په عشق یا تدي اقراره سولي
اور دي راپورې کې تور کښېنستي قراره سولي
هېڅ ګفتګوی له عشقه ته کوي بېزاره سولي
یو وار خو، ووایه قرار چې د یار څنګ لره ځم



## د اکبر دوې غزلې:

د خپل ځان له حیرانۍ څه ویل کړم
د عشق ویر به تل پخپله پتهول کړم
ما مدام لکه یورا پر ګلو ګښت کړ
اوس به ځم په سر تور سر فراق د ګل کړم
د غماز لړموږ به زه په لمبه کښېږدم
ځیني هېر به د یار بزم ګل او مل کړم
زما د یار د مینې اور په زړه کې بل دی
زه به سر او مال ښندم دید به حاصل کړم
د بېلتون له ویره ژاړم اوښکې ویني
زه "اکبر" پر خپل اشنا د سر ښندل کړم



چې مدام زه ستا و مخ وته نظر وړم
د بېلتون له بیرې زړه زېر و زبر وړم
که په ما دي حکم وشي چې خادم شه
دغه ستا د تغري سور انګار پر سر وړم
چې جمال په مهر او میند ، راښکاره کې
شین توتي شم په هوا د مینې پر وړم
چې ګفتار دي په ښه مینه راته وسي
تو بدای سم کوتې کوتې دُر ګوهر وړم

که مې وژني که مې پېږي رضا ستا ده
ستا وغشي ته مدام موخه[1] ځيګر ورم
چې جمال دې په هجران کې را په یاد شي
هغه دم په تصور شمس و قمر ورم
ستا د تورو څڼو خيال هسې طويل دى
تل په زړه کې دغه فکر زه "اکبر" ورم[2]

(۱۸)

# سلطان بهلول لودي

(جلوس ۸۵۵ هـ ۸۹۴ هـ وفات)

ددې کتاب په یوه دمخه څپرکي کې تاسې د لودیانو د کورنۍ احوال ولوست، چې دې کورنۍ تر غزنوي سلطنت دمخه په ملتان کې پښتو ژبه او پښتني ثقافت خپور کړی و، که څه هم هغه کورنۍ د سلطان محمود په لاس له منځه لاړه او د (۴۰۱ هـ) په شاوخوا کې یې کميله تړوله شوه؛ مګر د لودي قوم بقايا په هند کې وه او له دوی څخه ډېر حربي مشاهير راووته[3] او په (۸۵۵ هـ) کابل بيا له دې لوديانو پښتنو څخه ابوالمظفر بهلول شاه د پښتنو د سلطنت اساس کښېښو او هغه رڼا يې بيا خپره کړه، چې څلور نيم قرنه دمخه د لوديانو په هبوط پټه شوې وه.

---

[1] موخه، هدف.

[2] پښتانه شعراء، ج ، ص ۷۰.

[3] مثلاً: دولت خان لودي، چې په (۸۱۵ هـ) يې له تغلقيانو څخه پاچاهي وتيوله، سلطان شه لودي، مسلك كالا او نور نور.

د هندوستان په پاچاهانو کې يو معروف سړی خضر خان د ملك الشرق ملك سليمان زوی دی، چې په «۸۱۷ هـ» د دهلي پر پاچاهي کښيناست[۱]. او دده له کورنۍ څخه څو تنو تر «۸۴۷ هـ» پورې پاچاهي وکړله، چې دوی خضر خانيه پېچاهان بولي، د خضر خان زوی معزالدين مبارکشاه په «۸۷۴ هـ» پر تخت کښيناست؛ ځکه چې دا کورنۍ د پښتنو پاچاهانو سره محشوره او هم د پښتنو د مځکې خلك وو؛ نو د دوی په سلطنت کې پښتنو او خاص بيا لوديانو ډېر اعتبار درلود او ملك سلطانشه لودي د مبارکشاه په زمانه کې د سر هند امير و او ددغه پاچا له خوا په «۸۳۱ هـ» د "اسلام خان" په نامه هم مخاطب او سرلوړی شوی و او له مشهورو خلکو څخه ګڼل کېده[۲]. د سلطانشاه (اسلام خان) ورو ملك کالا (کالو) تومېده، چې دی هم لکه خپل ورور د عصر له مشهورو سپه سالارانو څخه و او په مبارکشاهي عصر کې يې په اکثرو جګړو کې برخه لرله او يو مشهور سړی و[۳]. دده زوی ملك بهلول هم له خپله پلاره او اکا سره تربيه شو او ځکه چې سلطانشاه لودي ډېر پلوی امير او په هند کې د غټ اقتدار خاوند و؛ نو ده خپل وراره ملك بهلول ته وروزه او تر خپل مرګ وروسته يې په هند کې پرېښودی.

ملك بهلول دلاور او مدبر او پوه پښتون و، د اکا تر مرګ وروسته يې استقلال وموند او د هند پښتانه يې سره راغونډ کړل او دوی ته يې د لوديانو تېر شوی شوکت ور په ياد کړ او

---

«۱» دا کورنۍ سيادت ته منسوب ده؛ مګر فرشته او سهرندي او نور مورخان د دوی سيادت نه مني او وايي چې پښتانه وو.

«۲» تاريخ مبارکشاهي ص «۱۸۱ ـ ۲۰۰» او دول اسلاميه ص ۴۶۷.

«۳» تاريخ مبارکشاهي.

وېي غوښته چې بیا د لودي سلطنت مشال روښ کړي، لومړی ده د پښتنو په ملګرې سرهند او ټول پنجاب ونیول، وروسته یې دهلي هم فتح کړ او د (۸۵۵ هـ) په ربیع الاول یا محرم کې د هند پر پاچاهۍ کېښناست او پښتانه سرداران لکه قطب خان لودي او دریا خان لودي او توري یې د خان ملګري کړل او د هند هرې خوا ته یې ښکاره فتوحات وکړه، دی د سلطنت په وخت کې ابوالمظفر بهلول شاه بلل کېده، تر (۳۸) کالو سلطنت وروسته په دهلي کې قصبه جلالي ته نژدې په (۸۹۴ هـ) وفات شو او تر ده وروسته یې زوی سلطان سکندر پر ځای کېښناست او دې کورنۍ تر (۹۳۲ هـ) پورې په هند کې پاچاهي کوله[1].

دده شعر: سلطان بهلول لودي؛ لکه د توري او تدبير خاوند چې و، دغسې هم ده ادبي ذوق درلود او کله کله به یې شعر هم وایه او دده په دربار کې به په پښتو خبرې او مشاعرې کېدې او دا لودي سلطان لکه خپل اسلاف د ملتان لودیان د پښتو ژبې شاعر هم و او دده یو شعر د پټې خزانې مؤلف هسې ضبط کړی او دده احوال یې هم داسې کښلي دي.

په مخزن افغاني کې نعمت الله هسې کښلي دي چې ملك بهلول د ملك کالا زوی و، په هندوستان یې د سلطنت لوا هسکه کړه او دغه ملك له لودي طايفې څخه و له ډېرې زماني دې لودي تیر سلطنت کا په هند کې، ملك بهلول په سرهند د اسلامخان تر وفات راهیسې استقلال ومونډ او تر جنګو په وروسته یې پر دهلي خطبه او سکه ووهله، پاني پت، لاهور، هانسي او حصار او ناګوري یې د ملتان تر څنډو پورې ونیول او د هندواتو د راجګانو سره یې سخت جنګونه وکړل او اته دېرش

[1] تاریخ سلاطین افاغنه او مخزن افغاني او تاریخ مبارکشاهي.

کاله یې پر هندوستان سلطنت وکړ او ډېر عادل او عالم پادشاه و
په (۸۶۴ هـ) کال وفات شو لکه چې وایي:

به هشت صد و نود چهار رفت از عالم
خدیو ملک ستان و جهانکشا بهلول

د سلطان بهلول علیه الرحمه وفات په تبه د جلالي په قصبه
کې و.... [۱]

تر دې وروسته د پټې خزانې مولف د محمد رسول کلاتوال د
بیاض په حواله لیکي چې خلیل خان د سلطان بهلول د دربار
شاعر یوه پښتو رباعي د سلطان په ستاینه کې ویلې وه، چې
دغه رباعي به زه وروسته د خلیل خان په احوال کې راوړم دی
وایي چې سلطان هغه رباعي واورېدله، په جواب کې یې دا
رباعي سم دستي وویله:

ملك به زرغون کړم په ورکړه راسه    کوره اوریځې د داد، له پاسه
خول مې د عدل په درو روڼ دی    جهان به زېب مومي زما له لاسه [۲]

تاسې چې وروسته د خلیل خان رباعي هم ولولئ: نو به د
سلطان بهلول د ارتجالي شعر کمال درته معلوم شي، علاوه پر
ادبي ښېګړو له دې یوې رباعي څخه موږ ددغه پښتانه سلطان
فکر هم څرګندولای شو، چې ده د مملکت د ودانۍ او عمران
فکر درلود او په انصاف او عدالت یې حکمراني کوله.

**خلاصه:** سلطان بهلول د پښتنو د لودي ټبر د شوکت او
لوړتیا داستان دوهمه پلا تازه کړ او هم دی د پښتو ژبې مربي او
شاعر او ادیب و چې متاسفانه نور آثار یې ورك دي او فقط یوه
رباعي د یوې یتیمې مرغلرې په دول په پټه خزانه کې مومو.

---

[۱] پټه خزانه، ص ۵۷.

[۲] پټه خزانه، ص ۷۷.

# (۱۹)

# خلیل خان نیازی

## د (۸۹۰هـ) حدود

نیازي د پښتنو یوه قبیله ده چې د لودیانو یوه پښه شمېرله کېږي، دوی د لودیانو سره یو ځای په هند کې خپاره شوي دي، په افغانستان کې لږدي، یو څو کوره یې په قندهار او غزنې او شیوکیو او لغمان کې شته. له دوی څخه هم په هند کې مشهور جنګیالي او مشران راوتلي دي، د لودیانو او سوریانو په دوره کې یې ډېر مشاهیر درلوده مثلاً هیبت خان نیازی د شېرشاه سوري په وخت کې د «اعظم همایون» په خطاب د لاهور حکمران و[1] او نیازیان د لودیانو او سوریانو غښتلي ملګري وو او تر اوسه یې هم بقایا په هند کې شته. له دې قبیلې څخه یو سړی «خلیل خان» دی، چې دی د سلطان بهلول لودي د دربار معتمد او ادیب و او پټې خزانې دده یوه مدحیه رباعي راوړې ده، په دې ډول:

«محمد رسول کلاتوال پخپل بیاض کې هسې کښلي دي، چې: په هندوستان د برسات په موسم خلیل خان نیازي هسې رباعي انشا کړه او د سلطان بهلول پادشاه په مخکې یې وویله»:

[1] حیات افغاني ص ۲۹۸

## رباعي

خړې وریځې ژاړي لــــه پاسه        کوېلـه[1] رغ کــا، بېلتــون لــه لاسـه
په هغه لوتي[2] ګوهر په خول ستا        دا مرحبا که ستا، زموږ مواسه[3]

د خلیل خان ددې رباعي په ځواب کې پښتون شهنشا هغه رباعي ویلې ده، چې دمخه دده په احوال کې راغله. د خلیل خان نور آثار متاسفانه زموږ لاس ته نه دي راغلي او داسې ښکاري، چې د سلطان بهلول د دربار پښتون شاعر و.

په لوړه رباعي کې خلیل خان په ډېر ښه صورت د خپل ممدوح ستاینه د رجوع په صنعت کې کړې ده. لومړی د وریځې ژړا او د کوېلې د بېلتانه رغ بیانوي، بیا په دوهم بیت کې رجوع کوي او د لومړي بیت مطالب نقض کوي. د ستاینې لپاره په یل رنګ هغه مقصد وايي.



## (۲۰) زرغون خان نورزی

### د (۸۹۰ هـ) حدود

نورزي د پښتنو یوه لویه طایفه ده، چې په فراه، نوزاد، کدنې او دهراوت کې اوسي او زرغون خان په دوی کې یو لوی او جنګیالی او ادیب سړی تېر شوی دی. د پټې خزانې مؤلف د دوست محمد کاکړ د غرغښت نامې په حواله لیکي، چې زرغون خان اصلاً د نوزاد (زمین داور) و او د قوم مشرتوب یې

[1] کوېله: په هند کې یو خوش آوازه مرغه دی. [2] لوتي: یاشي او نثاروي. [3] پټه خزانه ص ۴۹_ مواس محافظ او نګهدار.

کاوه، په دغو وختو کې چې د ماوراء النهر شيباني خان پر هرات او سيستان هجوم وکړ؛ نو زرغون خان د وطن له مدافعينو څخه ګڼل کېده او له متهاجمينو سره يې سختې جګړې کړې وې، زرغون خان په (۸۹۱ هـ) د هرات او خراسان او عراق (پارس) سفر وکړ او چې شيباني خان پر سيستان راغی؛ نو زرغون خان د خپل قومه سره له وطنه دفاع کوله او خپله آزادي يې ساتله[۱].

داسې معلومېږي، چې: زرغون خان يو ملي قايد او د وطن آزاديخواه مدافع او جنګيالی سړی و، علاوه پر دغه د قلم او علم خاوند هم و، لکه د آزادۍ د جګړو پر ډګر چې په مېړانه درېده، دغسې هم د علم او ادب په ميدان کې پوخ شهسوار و، لکه پټه خزانه چې د دوست محمد کاکړ له روايته ليکي: زرغون خان خورا ډېر عمر ژوندی و او د نهايت ضعف او سپين ږيرتوب پر وخت په (۹۲۱ هـ) د قندهار په دهراوت کې وفات شوی دی[۲].



## د زرغون خان ديوان او اشعار:

زرغون خان د پښتو ژبې ښه شاعر او د ديوان خاوند دی، چې دده ديوان په کجران[۳] کې په (۹۱۲ هـ) له ملا ايوب تيمني څخه و او په دغه کال چې دوست محمد کاکړ هرات ته تی، هلته يې دا ديوان کتلی و، چې (۳۰۰) پاڼې يې درلودې او دغه سړي پخپل کتاب (غرغښت نامه) کې له هغو ديوانه دا دوه يخ

[۱] پټه خزانه ص، ۸۱.

[۲] پټه خزانه ـ ص ۸۳.

[۳] کجران: د غور د جنوبي خوا کجوران يو تاريخي ځای دی چې د قندهار د دهراوت پر شمالي خوا تر اوسه هم په دغه نامه مشهور دی.

(مثنوي) نقل کړی دی چې د پټې خزانې مؤلف هم له هغه کتاب را اخيستی دی[۱].

## ساقي نامه

ساقي پاخه پياله راکړه — مرور يار مې پخلا کړه
اوبه تويې په لنبو کړه — اور مې مړ په دې اوبو کړه
پسرلی سو، غنچه ګل کا — زلفې تاوې د سنبل کا
بلبلان شور و فغان کا — کړېدن[۲] په ګلستان کا
زاهد وزي صومعې څخه — شراب پېري[۳] ميخانې څخه
هر سړی په ميو مست دی — دې بهار کې ګلپرست دی
په راغو کې سرې لمبې دي — د غټول[۴] ننداري دي
جهان ټول سور او زرغون سو — وچ راغه ښکلی ګلګون سو
سړي ټول شور و شغب کا — ياراني کاندي طلب کا
بهار وقت د ياراني دی — ښه موسم د پيماني دی
نو ساقي پاخه بهار دی — نن ژوندون سبا رفتار دی
دنيا پاته موږ به ځونه — تورو خاورو کې به يونه
پيمانه ډکه له مې راکړه — بزم تود په پياپې کړه
چې يو دم سمه آزاد — ناښاد زړه مې سينه[۵] ښاد
ساقي پاخه وقت د ګل دی — په جوشش کې خم د مل دی
وقت د ميو د وېشو دی — د پيالو د ډکېدو دی



---

[۱] پټه خزانه ص ۸۳.
[۲] کړېدن: طواف او ګردش.
[۳] پېري: ميخرد.
[۴] غټول: لاله.
[۵] سينه: شي نه.

هغه څـــوك اوس د پېغور دی — چې یې جام تش و نسکور دی
مستان ګرځي په باغـــو کې — مستي کاندي په راغو کې
لاس په لاس دي یارانـــې کا — یو په بل ناز و نخرې کا
مجنون وصل لـــه لیلا دی — د جمال په تماشا دی
نه غمجن سته، نه بېلتون سته — نه مهجور، نه ځیګرخون سته
تر تا وګرزمه[1] راسه — ساقي یو ګړی پخلا سه
ماته جام د ربل و لور[2] را — چې یو تش سي ډك یې نور را
اور مې بل د زړه په کور کړه — له هر چا، هر څه یې تور کړه
چې بل څه نه وي الفت وي — ټول له مهر و محبت وي
ټول اخلاص وي او صفا وي — تیاره ورکه سي رڼا وي
له زړه کم غش او دغل سي — جهان ټول له ګل او مُل سي
ساقي ستا مهر مطلوب دی — نو بهار ځکه مرغوب دی
که ستا لور پېروز نه وي — نو بهار به په څه ښه وي؟
خوند به نه کا رنګ د ګلو — بې مستیو، بې له مُلو
نه به بزم په شور تود سي — نه نغمې نه به سرود سي
جام به تش د آرزو سي — ورك به مهر او پېرزو سي
نو ساقي پاڅه بهار دی — بزم تا له امیدوار دی
یاران ناست سترګې خلور دي — ستا د جام په امید نور دي
ته هم راسه عنایت کړه — بزم تود د محبت کړه
له سرو ملو څخه ډك جام کړه — د یارانو یې انعام کړه
چې سوړ بزم په می تود سي — د رندانو غوږ و سرود سي
د جهان ویر و غم هېر کا — یو دم ښه په عشرت تېر کا
چې په مخ کې مو بېلتون دی — له جهانه سبا یون دی[3]

---

[1] یعنې تر تا قربان شم.
[2] ربل: رواداري، لور مهرباني. [3] یون: کوچ.

د زرغون خان دغه د ساقي نامې مثنوي، د نهمې هجري پېړۍ له هغو آثارو څخه ده، چې په ښه ډول د پښتو ژبې اختلاط له پارسي سره ښکاره کوي. په دغه پېړۍ کې هغه پښتانه چې په سمو او ښارو کې (يې) ژوند کاوه، په پوره ډول د پارسي ادب تر اثر لاندې راغلي دي؛ لکه ددې مثنوي کلمات چې اکثر پارسي او عربي دي، دغسې هم تخیل او د شاعر د ادا، طرز او د کلام نوعیت هم پوره پارسي ته ورته دی او په دغو وختو کې چې کوم ادبي جریان په منځنۍ ایشیا او خراسان کې و، دا ساقي نامه (يې) ښه نمایندګي کولای شي، د پارسي ژبې په پخوانو شاعرانو کې مخصوصاً له غزنوي دورې څخه یعنې د (۴۰۰ هـ) له حدودو، بزمي اشعار او خمریات ډېر شوي دي، اکثر شعراء لکه عنصري او منوچهري او عسجدي او نور د خپلو قصایدو تشبیب او نسیب په بزمي او خمري مضامینو سره کوي، وروسته سنایي او نور متصوف شعراء د عرفان په کتوریو کې د وحدت شراب څښي او دا نشه او کیف په عرفاني ډول پخپلو اشعارو کې نغاړي:

طلب ای عاشقان خوشرفتار — طرب ای نیکوان شیرین کار
تا کی از خانه، هین ره صحرا — تا کی از کعبه، هین در خمار
زین سپس دست ما و دامن دوست — بعد ازین گوش ما و حلقهٔ یار

در جهان شاهدی و ما فارغ؟
در قدح جرعه ئی و ما هشیار؟

(سنائی)

دا عرفاني کیف په ډېرو بزمو کې، د میو او رنګینو جامونو په نشه هم اوړي او دغسې خمري اشعار په مثنوي کې په ښه ډول ځای مومي، نظامي ګنجوي ډېرې ساقي نامې لري، عمر خیام

پخپلو رباعياتو کې د خمري اشعارو يوه بهترينه نمونه دنيا ته پرېږدي او په پاى کې (ساقي نامه) په سبک مثنوي کې ويل يو بېل فن ګرځي او په پارسي ادب کې يو مخصوص رنګ مومي او شعراء يې تقليد کوي.

عبدالنبي فخر الزماني چې د پارسي ژبې ساقي نامې سره يو ځاى کړې دي (۱۰۲۸ هـ) يو غونډ کتاب يې د (ميخانې) په نامه ځنې ترتيب کړى دى او د نظامي، عراقي، خسرو دهلوي، خواجو، حافظ، جامي او نورو پارسي شاعرانو ساقي نامې سره يو ځاى کوي، چې ځينې له دغو ساقي نامو بېل بېل کتابونه ګڼل کېږي او د ظهوري تهراني (متوفى ۱۰۲۵ هـ) ساقي نامه تقريباً زر بيته ده.

په دغو ساقي نامو کې د شعراوو لار دا وه چې دوى به له ساقي څخه د سرو ميو آرزو کوله، د ساقي او د جام او صراحي او ميو صفات به يې بيانول، د دنيا بې وفايي او يو څو ورځې ژوندون په خوښى سره تېرول او بزم په ميو تودول، د ساقي نامو عمومي مضمون و. شاعر به په سبک مثنوي کې دا مطالب ليکل او اثرناک الفاظ او کلمات به يې پکې استعمالول.

حُسن طلب او حسن تعليل او رشيق عبارت او روان بيتونه د ساقي نامو ادبي مزايا وو. مثلاً د شېراز خواجه حافظ خپله ساقي نامه هسې شروع کوي:

| | |
|---|---|
| بيا ساقى آن آتش تابناک | که زردشت ميجويدش زير خاک |
| بمن ده که در کيش رندان مست | چه آتش پرست و چه دنيا پرست |
| بيا ساقى آن بکر مستور مست | که اندر خرابات دارد نشست |
| بمن ده که بد نام خواهم شدن | خراب مى و جام خواهم شدن |

په دې ډول ساقي ته متواتر خطابونه کوي او په ډول ډول

غوښتنو او الفاظو له ده څخه می غواړي:

| | |
|---|---|
| بده ساقی آن می که شاهی دهد | بپاکی او دل، گواهی دهد |
| بیا ساقی آن می که حال آورد | کرامت فزاید کمال آورد |
| بیا ساقی آن کیمیای فتوح | که با گنج قارون دهد عمر نوح |

شعراء د میو سره رقص او سرود و جد او پاکوبي، رندي او هوسناکي هم لازم ګڼي او خواجه حافظ بزم ته هسې مغني او رامشګر راغواړي او د دنیا بې ثباتي هم څرګندوي:

| | |
|---|---|
| مغنی بزن آن نوائین سرود | بگو با حریفان بآواز رود |
| مغنی نوای طرب ساز کن | بقول و غزل قصه آغاز کن |
| درین خون فشان عرصهٔ رستخیز | تو خون صراحی و ساغر بریز |
| بمستان نوید سرودی فرست | بیاران رفته درودی فرست |
| مغنی دف و چنگ را ساز ده | بائین خوش نغمه آواز ده |

فریب جهان قصهٔ روشن است
ببین تا چه زاید شب آبستن است



لنډه یې دا چې د عربو د خمریه اشعارو تقلید د عجمو شعراوو کړ او ورو ورو د (ساقي نامې) ویلو سبك په پارسي ادب کې پیدا شو، د نورو ایشیایي ژبو شاعرانو یې هم تعقیب وکړ؛ مګر په ساقي نامو کې د شاعر مهارت او استادي دا وه، چې د مستۍ احوال تصویر کړي او د مستانو په شان خبرې وکړي، د استادانو ساقي نامې ټولې له مستۍ او وجد او ذوقه ډکې دي او هغه شعراء چې په ساقي نامه کې مستي نه کوي او د عقلاوو په څېر ګډ وي، د دوی ساقي نامې د ادب له پلوه ښې نه ګڼلې کېږي.

په پارسي ساقي نامو کې که څه هم د ظهوري ساقي نامه خورا مفصله او هم خوږه ده او د مستۍ او میخورۍ مختلف مناظر

ښیي؛ مګر کلام یې د مستانو په څېر نه دی او لکه څېنې اهل ذوق چې وایي. دده دا اول بیت:

ثنا میکنم ایزد پاک را ثریا ده طارم تاک را

د مستانو خبرو ته نه دی ورته او د یوه نارمل سړي وینا ده؛ نو ځکه دده ساقي نامه هم عمومي مقبولیت نه لري او دده زر بیته د خواجه حافظ تر (۶۰) بیتو نه درنېږي!

زرغون خان هم په دې پښتو ساقي نامه کې د استادانو پر لار تللی او مستانه وینا یې کړې ده، دده شعر روان او خبرې یې هم د مستانو په څېر دي؛ ځکه نو ده ته یو کامیاب او پوخ ساقي نامه ویونکی وایو او دا ساقي نامه هم د پښتو له پخو اشعارو څخه ګڼو؛ ځکه چې ده په خپل شعر کې د احساساتو رقت، حسن طلب او هم د عباراتو رواني او رشاقت او خوږ سلاست سره یو ځای کړی دی او په دې تولو شیانو کې کامیاب دی.



## (۲۱) زرغونه کاکړه

### د (۹۰۰ ه) حدود

د پښتو شعر په تاریخ کې دا لومړی ښځه ده، چې موږ یې پېژنو او د شاعرانو په ډله کې په اول صف کې درېږي.

دا شاعره مېرمن د قندهار د پنجوایي وه، د پلار نوم یې ملا دین محمد کاکړ و او دې د خپل عصر مروج علوم زده کړل، د فصاحت احکام یې ولوستل او د فصحاوو اشعار او آثار یې وویل. زرغونه د سعدالله خان نورزي په نکاح کې وه او د علم او هنر او توري خاوندان زامن یې درلوده، دې مېرمنې د خپل عصر په شاعرانو کې شهرت درلود او ددې اشعار به یې

لوستله. زرغونې په (۹۰۳ هـ) د شيخ مصلح الدين سعدي پارسي بوستان په پښتو شعر ترجمه کړ او دا علاوه پر شعر او ادب د ښه خط خاونده هم وه او د خط ډېر اقسام يې ليکلای شو، داسې خوش خطه وه چې کاتبانو به يې له خطه زده کړه کوله او لکه د پټې خزانې مؤلف چې ليکلي دي: دې پخپل ښه خط خپل پښتو کړی بوستان کښلی و چې مرغلرو يې خط ته عاجزي کوله[1].

**اشعار**: د پټې خزانې په روايت زرغونې غزليات او د اشعارو نور اقسام هم درلوده، چې په فصحاوو کې مشهوره وه؛ مګر متاسفانه له هغو څخه اوس کومه نمونه نه لرو، فقط له هغه پښتو بوستانه يو حکايت د پټې خزانې مؤلف رانقل کوي، چې د زرغونې د کلام سلاست او متانت ځنې ښکاري.

که مونږ په پښتو ادب کې د اخلاقي شاعرانو لپاره يوه مخصوصه ډله ومنو نو به زرغونه د خپله بوستانه سره د هغو په سر کې ولاړه وي؛ ځکه چې تر دې دمخه يو اخلاقي شاعر چې مستقل اثر ولري، مونږ ته نه دی معلوم او زرغونه د شيخ سعدي د بوستان په منظومه ترجمه د اخلاقي شاعرانو له ډلې څخه بللای شو.

هغه حکايت چې د زرغونې له زرغونه بوستانه پاتې دی، دا دی:

### حکايت د پښتو ((له بوستانه))

| | |
|---|---|
| اورېدلې مې قصه ده | چې له شاتو هم خوږه ده |
| د اختر په ورځ سهار | بايزيد چې و رويدار |
| له حمامه راوتلی | په کوڅه کې تېرېدلی |

[1] پټه خزانه، ص ۱۹۱.

ایرې خــــاورې چا له بامه    راچپـــه کــړلې ناپامـــه
مخ او ســــــر یې سو ککړ    پـه ایـرو پـه خـاورو خـړ
بایزید په شـــــکر کښنو سو    د خپـل مـخ پـه پاکېـدو سـو
چــــې زه وړ یم د بل اور    چې په اور کې سم نسکور
له ایرو به څه بـــــد وړمه    یـا بـه لـږ شـکوه کومـه
هـــو، پوهانو ځان ایرې کړ    له لوینې[1] یې ځان پرې کړ
څـوك چې ځان ته ګوري تل    خدای ته نه سي کړای کتل
لــــويي تل په ګفتار نه ده    لـو خبـره پـه کـا، نـه ده

تواضع به دې ســر لوړ کا
تکبر به دې تل څــوړ کا[2]

# (۲۳) رابعه

## د (۹۲۰ هـ حدود)

بلـه شـاعره مېـرمن رابعـه ده، چـې هـم پـه هغـه عصـر پـه قنـدهار کـې اوسېدله او ددې شـاعرې نـور احـوال مـوږ تـه نـه دي ښکـاره، د پټـې خزانې مولف یـې پـه لنـډ ډول هسـې معرفـي کـوي: "حـال ددې شـاعرې ماتـه نـه دی معلـوم سـوی؛ خـو لـږ څـه چـې ښکـاره ده، هغـه هسـې ده چـې دا شـاعره د قنـدهار وه او پـه دوران د محمـد بـابر پادشاه یې ژوند کاوه".

پټـه خزانـه رابعـه د ډېـرو اشـعارو خاونـده ګڼـي؛ بلکـې یـو دیـوان یـې هـم درلـود چـې متاسفانه ددې لـه اشـعارو څخـه بلـه نمونـه نـه ده لیدلـه شـوې، فقـط د هغـه کتـاب مؤلـف د خپـل رفیـق محمـد طـاهر جمریاني له خولې دغه رباعي رانقلوې:

---

[1] لوینه، تکبر.
[2] پټه خزانه، ص ۱۹۳.

آدم یــــــې مځکې وته راستون کا    په اور د غم یې سوی لړمون کا
دوزخ یې روغ کا، پر مخ د مځکې    نوم یې د هغه، دلته بېلتون کا[1]

لـه دغـي يـوې رباعي څخه چې د رابعې لـه کلامـه موږ تـه پاتې ده، دونـې معلومـولای شـو، چې رابعـه د پښتـو د منځنـۍ دورې ښـه شـاعره ده او پـه کـلام کـې يـې جزالـت او سلاسـت دواړه لیـدل کېږي او ښايي چې اشعار بـه يـې هـم عشقي وو او ديـوان بـه يـې د پښتو له ښو آثارو څخه و.

## (۲۳) دوست محمد کاکړ

د (۹۲۰ هـ) حدود

دوسـت محمـد د بـابړ خـان کـاکړ زوی دی، چـې د کاکړستان پـه ژوب کـې اوسـېده، دده پـلار هـم عـالم او شـاعر سـړی و، چـې يـو کتـاب يـې د ((تـذکره غرغښـت)) پـه نامـه نظـم کـړی و، دوسـت محمـد هـم علـم او ادب لـه پـلاره پـه ارث وړی و او د کـاکړو د علمـي او ادبي عشيرې يو پخوانی اديب دی.



دی پـه (۹۱۳ هـ) لـه ژوبـه هـرات تـه ولاړ او هلتـه يـې د کـاکړ بابـا زيـارت وکـړ[2] پـه (۹۲۹ هـ) يـې خپـل يـو کتـاب ((غرغښـت نامـه)) نظم کړه او د غرغښت نيکه احوال يې پکې په مثنوي وليکه.

لکـه پټـه خزانـه چې ليکـي: د دوسـت محمـد کـاکړ (غرغښـت نامـه) هغـه حکايـات وو چـې بـابړ خـان د "تـذکره غرغښـت" پـه نامـه نظـم کـړي وو؛ څکـــه چـــې هغـــه کتـــاب ورك شـــوی و؛ نـــو دوسـت محمـد د ((غرغښـت نـامې)) پـه نـوي نامـه بيـا وپېودلـه. دا

[1] پټه خزانه، ص ۱۹۵
[2] د کاکړ مزار د هرات د لويې جامع په اړخ کې م[illegible] دی.

کتاب په لر وخت کې د پښتنو په ادبي محافلو کې مشهور شو او ځکه چې اخلاقي منظومې يې لرلې؛ نو يو درسي او کلاسي کتاب ګڼل کېده او پښتنو هلکانو به درساً لوست. په قندهار کې د پټې خزانې د مؤلف کورنۍ چې يو با ذوقه ادبي کهول و، دوی هم ددې کتاب نسخې د کوږک غره په "توبه" کې مېندلې وې او درساً به يې په کورنيو مکتبو کې په هلکانو لوستې[1] داسې ښکاري، چې (غرغښت نامې) د غرغښت نيکه له احواله زيات ځينې نور مضامين هم درلوده؛ ځکه چې د زرغون خان ساقي نامه چې د مخه ذکر شوه، هم د پټې خزانې مؤلف له ((غرغښت نامې)) څخه رانقل کړې ده او هم لاندې حکايت په کاکړ اړه لري چې د غرغښت له اولادې څخه دی؛ ځکه چې اوس ددغه کتاب نسخه نشته؛ نو تر دې زيات نور څه نه شو ځنې ويلای.

((غرغښت نامه)) د پښتو ژبې په اخلاقي شاعرۍ کې د زرغوني تر بوستان راوروسته ډېر پخوانی کتاب دی، له دغه يوه حکايته چې پټې خزانې ځنې رانقل کړی دی، معلومېږي، چې لنډه مثنوي و او ژبه يې هم سليسه او روانه وه:

## حکایت له غرغښت نامې څخه

| | |
|---|---|
| له نېکانو روايت دی | هسې توګه[2] حکايت دی |
| نورمحمد کاکړ راوي دی | چې يې فيض تل جاري دی |
| د نيکونو له خولې وايي | چې منښت[3] يې راته ښايي |

[1] پټه خزانه، ص ۸۷،۰
[2] تګه: طور او طرز.
[3] منښت: منل او قبلول.

چې کاکړ نیکه زاهد و — لوی څښتن له تل عابد و
تل تر تل بې[1] عبادت کا — پر دې لیار یې ریاضت کا
شپې یې روڼې په لمانځو وې — په ژړا او په نارو وې
نه یې خوب نه یې خوراك و — عبادت یې ژوند و ژواك و
چې به کښېناست په لمانځنه[2] — یا به کښېووت په ستاینه
ورځ یې توله په قعده وه — شپه یې هم یوه سجده وه
تل یې سیر د لاهوت کا — په یوه ګوله یې قوت کا
غرق به تل په ذکرالله و — هر سبا او هر بېګاه و
یوه شپه یې عبادت کا — پر ګناه یې ندامت کا
سترګې پټې سوې له خوبه — په شپو شپو یې و ویښتوبه
هسې خوب یې ولید ګرانه! — چې غرغښت ښیې ښهانه[3]
وایي: "ای کاکړه" زویه — له تا خوښ یمه نېکخویه!
ستا قدم زما پر لار دی — ماسوا کې دې قرار دی
شپه و ورځ دې ده لمانځنه — د څښتن عبادت کړنه
ولې پاته له تا نور دي — شپې او ورځې دې په کور دي
څه جهاد کړه پر تا فرض دی — دا هم ستا د غاړې قرض دی
یوه ورځ جهاد افضل: — تر کلو کلو لمانځل[4]
څوك چې تل لمنځ و روژه کا — په جهاد به یې پوره کا
لومړی شرط د دین همدا دی — بیا خدمت د خلق الله دی
له تا پاته دواړه دي نه — خان خبر کړه ښه له دینه[5]



---

[1] بې: د به یې مخفف.

[2] نمانځه: عبادت او لمونځ کول.

[3] ښهانه: ښکي.

[4] لمانځل: لمونځ او عبادت کول.

[5] یعني له دین څخه یا له دې خبرې څخه.

توره واخله مجاهد شه | د لوی خدای د دین قاصد شه
د خدای نور پر جهان خپور کړه | دا خدمت یې په ځان پور کړه
چې دې بشپړ عبادت سي | ځان دې خلاص له معصیت سي
چې له خوبه ویښ کاکړ سو | د غزا پر خوا نومړ[1] سو
زغره خول یې آراسته کړل | د غزا غشي[2] تېره کړل
هرات خوا ته په تلو تلو سو | د سلطان غیاث له ملو سو
وې کړه هورې جهادونه | د سلطان مل سو په ملونه[3]
ځو هورې تر دنیا تېر سو | د غازیانو په ټول شمېر سو
چې یې هلته هم وفات سو | ښخ په خاورو د هرات سو[4]

مېړه هسې ژوندون کاندي
مري د خدای په رضا باندې

دا یوه ټوټه چې له غرغښت نامې ځخه زموږ په لاس کې ده، د پښتو د اخلاقي شعر غوره نمونه ګڼله کېږي. د منځنۍ ایشیا په شاعرۍ کې اخلاقي برخه له قدیمه ګډه ده، هر شاعر که څه هم اساساً بزمي یا رزمي وي، په شعر کې اخلاقي پنګه لري، د

[1] نومړ: نامزد.
[2] د (غشي یې) مخفف دی.
[3] ملونه د مل جمع ده، چې اوس یې په مله سره جمع کوو. یا به مصدري معنا لري؛ لکه ملتیا او ملګري. دلته سلطان هغه معروف غیاث الدین غوري دی، چې د هرات په اطرافو کې یې لوی جنګونه کړي دي؛ ځکه چې دغه جنګ د دیني جهاد په نامه یاد شوی دی، ښایي چې مقصد به هغه جهاد وي، چې په (۵۸۸ هـ) سلطان غیاث الدین غوري د سلطان شاه جلال الدین محمود خوارزمشاه سره وکړ او د خوارزمشاه لښکر اکثراً نامسلمانه خطائیان و (طبقات ناصري او نور).
[4] د کاکړ بابا قبر تر اوسه د هرات په لو جامع کې مشهور دی او خلک یې زیارت له ورځي.

پارسي شاعرانو په لومړنيو اشعارو کې هم اخلاقي ټوټې شته، مثلاً بادغيسي حنظله چې د (۲۰۰) و (۳۰۰ هـ) په منځ کې ژوندی و وايي:

مهتری گر بکام شير دراست　　　شو خطر کن ز کام شير بجوی
يا بزرگی و ناز و نعمت و جاه　　　يا چو مردانت مرگ روبا روی

له اکثرو پخوانو شاعرانو لکه ابو سليك (د ۲۷۰ هـ حدود) شهيد بلخي (د ۳۰۰ هـ حدود) رود کي (د ۳۰۰ هـ حدود) او نورو څخه اخلاقي ټوټې او اشعار رانقل شوي دي، د فردوسي شهنامه هم غوره اخلاقي پنګه لري، اما په مستقل ډول د پارسي پخواني شاعر چې اخلاقي مستقل کتاب يې نظم کړ، ابو محمد بديع بلخي دی، چې د سلطان محمود معاصر دی، د (۴۰۰ هـ حدود) دې سړي د انوشيروان پندنامه په پارسي نظم کړه[1] او تر ده وروسته سنايي غزنوي، نظام ګنجوی، ناصر خسرو علوي او نور ډېر شاعران راغله، چې پخپلو اشعارو کې (يې) اخلاقي برخه ډېره کړه، د سنايي غزنوي (حديقة الحقيقه) د اخلاقو او تصوف پوخ او بې مثاله اثر دی، د ناصر خسرو (روشنايي نامه) او (سعادت نامه) هم په فلسفي اخلاقي رنګ کې د پارسي ژبې بهترين آثار دي؛ مګر د شيراز شيخ سعدي پخپلو دوو کتابو (ګلستان او بوستان) دا بڼ هسې ښکلی او تازه کړ، چې د اخلاقي شاعرۍ دوه شهکاره ګڼل کېږي!

په پښتو شعر کې هم يو اخلاقي مستقل کتاب ښايي چې دغه ((غرغښت نامه)) وي او ددې کتاب له وجوده موږ څرک اېستلای شو، چې د پښتو اخلاقي شاعري هم په پخوانو کې

[1] شعر العجم، ج ۵، ص ۱۶۵.

رواج درلود او له دې پلوه هم دا ژبه بې پنګې نه ده؛ ځکه چې عموماً د پارسي ژبې اخلاقي اشعار د مثنوي په ډول دي؛ نو "د غرغښت نامې" مؤلف هم خپل کتاب په مثنوي کې پيودلی دی او وروسته چې په پښتو کې هم ځينې مستقل اخلاقي کتب نظم شوي دي، په مثنوي دي، چې ددې کتاب په دریم ټوک کې به دروښودل شي.

له دغې يوې نمونې څخه چې له ((غرغښت نامې)) څخه پاتې ده، داسې ښکاري، چې د کتاب ژبه ډېره روانه وه او مقاصد يې هم لنډ لنډ اداء شوي دي، حشو او زوايد نه لري، له ابهامه خالي شعر دی او دا هم ښکاره کوي، چې په دغو وختو کې ډېر پارسي او عربي کلمات د پښتو په ادب کې داخل شوي او د تابعيت حق يې پوره موندلی و.



د زرغون خان ساقي نامه خو تاسې ولوستله، هغه د هلمند او ارغنداو د غاړو او ورشوګانو ژبه وه او ځکه چې له پارسي ژبې سره نژدې او ګاونډۍ وه، بايد هم د پارسي اثر پر لوېدلی وای؛ مګر ((غرغښت نامه)) په ژوب او د سليمان د غره په لمنو کې نظم شوې ده؛ خو سره ددې هم د هغې ساقي نامې له ژبې سره څه ښکاره فرق نه لري او له دې څخه نتيجه اخلو چې په دغو وختو کې د پښتنو اختلاط ډېر شوی او ژبې يو متحد او مثبت ادبي معيار موندلی دی.

او دغه ادبي رنګ او عمومي معيار دی چې د متاخرينو په دوره کې تر (۱۰۰۰ هـ) راوروسته د شعر او ادب محور دی او اکثر شعراء او ادباء هم په دغه ژبه شعر وايي او ليک کوي، چې ددې خبرې تفصيل به د کتاب په نورو برخو کې څرګند شي.

(۲۴)

# شیخ عیسی مشوانی

مشواني د پښتنو يو قوم دی چې د کاکړو يوه پښه ګڼله کېږي او يوه برخه يې د کابل په کوهدامن کې اوسي او نور شاوخوا سوداګري کوي او له قديمه د هند په لتو کې هم خپاره شوي دي[۱].

شيخ عيسی هم له دې قومه د پښتو د متوسطينو د دور يو شاعر دی، چې د شېرشاه سوري پښتانه شهنشاه معاصر و، نعمت الله هروي په مخزن افغاني کې دده د ژوندانه بيان ليکي چې د هند په داملـه کې اوسېد او هلته يې مځکې او پټې درلوده، شېرشاه ته چا وويل، چې شيخ عيسی شراب خوري؛ مګر د شېرشاه سړي چې ورغی په صراحي کې شيدې وې[۲].

د شيخ عيسی احوال د پټې خزانې مؤلف هم کټ مټ له مخزن افغاني څخه نقل کوي او وايي چې دی لوی ولي و او د خدای په توحيد کې (يې) په پښتو، فارسي (او) هندي شعرونه ويل[۳].

دده نور احوال مونږ ته نه دي معلوم؛ خو څکه چې شېرشاه سوري په (۹۴۷ هـ) د هند پر تخت کښېنستلی دی؛ نو مونږ د شيخ عيسی د ژوندانه وخت پس له (۹۰۰ هـ) ټاکلای شو.

---

[۱] حيات افغاني ص (۴۴۱).

[۲] مخزن افغاني قلمي.

[۳] پټه خزانه ص (۷۵).

## دده اشعار:

مخزن افغاني د شیخ عیسی پښتو او پارسي او هندي یو یو شعر رانقلوي؛ خو متاسفانه دغه اشعار کاتبانو مسخ کړي دي، په ښه ډول نه ویل کېږي، د پټې خزانې مؤلف هم له مخزنه دده یو پښتو شعر هسې رانقل کړی دی:

پخپله کار کړې! پخپل انکار کړې — کله بادار یم[1] کله مې خوار کړې!
ته خو قـــادر یې! په صفتونو[2] — کله مې نور کړې کله مې نار کړې!
"عیسی" حیران دی په دې شیونو[3] — کله مې یار کړې! کله اغیار کړې!

له دغو بیتو څخه ښکاره ده، چې عیسی د پخو متصوفینو څخه و او په هغه شان وینا لري: لکه د هرات خواجه انصاري او نور عرفاء چې له خدیه سره راز او نیاز کوي.

د نعمت الله له لیکنې څخه معلومېږي، چې شیخ عیسی یوه ((رساله)) درلوده، چې د درو ژبو اشعار یې پکې لیکلي وو، چې له هغو څخه یو پښتو لوړ شعر او یو پارسي بیت او څو هندي اشعار یې دی په مخزن کې نقل کوي او په دې ډول شیخ عیسی له هغو پښتنو څخه دی، چې خپله ژبه یې په هند کې هم ساتلې وه او په دغه دور کې د یو ګډ افغاني او هندي ثقافت ممثل و.



[1] د مخزن په قلمي نسخه کې هسې ویلی کېږي: جګ پر هوا یم.

[2] مخزن: ته ښه قادر یې صفت دې دادی.

[3] مخزن: په دې صفت کې

(۲۵)

# شيخ بستان بړيڅ

د (۹۶۰ هـ) حدود

شيخ بستان د پښتنو له ادبي او روحاني مشاهيرو څخه دی او پلار يې د قندهار په ښوراوك کې اوسېده، چې نوم يې محمد اکرم او روحاني سړی و. دی قوماً بړيڅ و او له ښوراوکه ولاړ، د هلمند پر غاړه يې درويشانه ژوند کاوه او په عبادت به بوخت و. بستان له خپله پلاره فيض وموند او د ځوانی په سن کې هند ته ولاړ او په سير او سياحت مشغول شو[1].

دې سير آفاق زموږ شاعر پوخ کړ او د فطرت په مطالعه بوخت شو. شيخ بستان د پښتو ژبې شاعر او ليکوال او مؤلف دی، چې مؤرخان يې ښه پېژني او ده روحاني شهرت هم تر ادبي خوا لړ نه و، نعمت الله مؤرخ ليکي:

((په ځوانی کې له روهه هندوستان ته راغی او په سمانه کې مېشت شو او د تجارت په لباس کې يې ځان پټاوه، تل به يې سترګې د اوښکو ډکې وې او پښتنو اشعار به يې په حزين صورت ويل او خلك به يې په دردناك حالت ژړول))[2].

د مخزن له دې بيانه زموږ د شاعر اخلاقي هويت ښه ښکاري او دا څرګندوي چې شيخ بستان سياح او ګرځند سړی و او د عمر تر اخره هم په سياحت بوخت و، نعمت الله د عمر په اخر کې د بستان ملګری و او له ده څخه يې خوارق ليدلي وو. دی

[1] پټه خزانه، ص ۶۵.

[2] قلمي مخزن افغاني، ص ۲۵۰.

وايي، چې: د درياب په سفر کې د بستان مل وم، چې د ګجرات احمدآباد ته راغلو، شيخ راته وويل، چې: زما عمر تمام دی او هم دلې د جمعې په ورځ چې د ربيع الثاني (۱۱) وه، په (۱۰۰۲هـ) کال د اسهال په مرض د ماپښين تر لمانځه وروسته مړ شو او هم هورې ښخ شوی دی[1].

## تاليف او اشعار:

شيخ بستان که څه هم پر کور ناست سړی نه و او عمر يې په سير او سياحت تېر اوه؛ خو بيا هم کوم وخت چې د جهان له مطالعې فارغ شوی دی: نو يې قلم را اخيستی او په پښتو يې ښه آثار ليکلي دي.

تر مرګ څلور کاله دمخه دی په (۹۹۸ هـ) کال خپل وطن ته راغی او د خپلو مطالعاتو نتايج يې په يوه کتاب کې راټول کړه، چې نوم يې ((بستان الاولياء)) و[2].

د پټې خزانې له بيانه ښکاره ده، چې دا کتاب هم د روحاني خلکو تاريخ و او هم د پښتنو رجالو او مشاهيرو اشعار او احوال پکې وو، لکه چې محمد هوتک د خپل پلار په روايت چې دغه کتاب يې د ښوراوك د حسن خان په کور کې ليدلی و، د شيخ تيمن اشعار او احوال له ((بستان الاولياء)) څخه رانقل کړی دی. (پنځم څېرکي ته رجوع وکړئ) نو دا خبره ښه ښکاري، چې بستان الاولياء د پښتو شاعرانو احوال او اشعار هم درلوده او علاوه پر دې شيخ خپل اشعار هم پکې راوړي وو او په دې مقصد د پټې خزانې مؤلف هم تصريح کوي: نو بستان د خپل

[1] قلمي مخزن افغاني، ص ۲۵۰.
[2] پټه خزانه، ص ۶۵.

عصر شاعر او مؤلف او مؤرخ سړی و چې په پښتو یې اشعار
ویل او روحاني ژوند یې کاوه د عشق او مینې په سوی ګرفتار
و. محمد هوتک د خپل پلار له خولې د شیخ بستان یوه بدله
رانقلوي، چې په عامي او وطني وزن ده او له دې څخه ښکاري،
چې د بستان په شعر کې (لکه نعمت الله چې هم لیکلې دي) د
تغنی او ترنم خوا غالبه وه.

**بدله**

**کسر**

د مینې اور دې زما زړګی وریت په انګار کی نا		ښې تار و نار کی نا
خود به ویلېږم چې مې زړه پر تا مفتون کی نا		ځان مې زبون کی نا
اوښکې مې ځاځي پر ګرېوان یو وار نظر که پر ما		راسه ګذر که پر ما

وکه نظر زما پر حال چې پروت رنځور یمه تل		په ویر ناسور یمه تل
له زړه مې ځاځي وینې، سور په وینو خپل یمه تل		په اور جلبل یمه تل
اوښکې مې ځاځي پر ګرېوان یو وار نظر که پر ما		راسه ګذر که پر ما

له درده، سوزه تل ناري او غلبلې وهمه کرېږې[1] سورې وهمه
یو آن مې چېرې نه آرام نه تیکاونه[2] وینم		نه راحت ګړنه وینم
اوښکې مې ځاځي پر ګرېوان یو وار نظر که پر ما		راسه ګذر که پر ما

د خوږو زړو له حاله ته یې ای باداره آګاه		یې د بې وزلو همراه
د خپل عزت په روی "بستان" ته کړه د مهر ښندل کړې له ګناهه ګواښل[3]
اوښکې مې ځاځي پر ګرېوان یو وار نظر که پر ما		راسه ګذر که پر ما[4]

---

[1] کرېږې. فریاد و صیحه.
[2] تیکاونه: آرام، راحت.
[3] ګواښل، منع کول.
[4] پټه خزانه، ص ۶۷.

دا بدله د پښتو د ملي شعر یو خاص وزم راښیي، چې مکرر کېدونکی کسر هم لري او په ملي وزمو کې یو د تغنی او ترنم خاص مزیت څرګندوي داسې اشعار د رږغ د پوره کولو او د موسیقیت لپاره کله کله د کلماتو په پای کې ځینې صوتي وروستیزونه لري چې هم د شعر سلاییل بشپړ کوي او هم د ترنم لپاره رږغ ته دوام ورکوي، چې په پښتو عروضو کې دغه کیفیت ډېر لیدل کېږي. ددې بدلې په لومړي بند کې د بیت آخر ته د معنی د تکمیل لپاره فقط (کی) کافي وو؛ خو د ترنم لپاره (نا) ورسره نښتی دی. دا وروستیز د ګرامر له رویه بالکل زاید دی؛ خو د عروض او موسیقیت له پلوه ضروري ګڼل کېږي.

## (۲۶) علي سرور لودي

### د (۹۶۰ هـ) حدود

علي سرور په قوم شاهوخېل لودي و، چې د هندوستان له هغو لودي ادباوو او عرفاوو څخه ګڼل کېږي، چې دمخه موږ ذکر کړل.

دده احول او خوارق مخزن افغاني بیانوي او د پټې خزانې مؤلف یې هم د ((تحفه صالح)) کتاب په حواله احوال راوړی او داسې ښکاري، چې دی متقي او پارسا او متصوف سړی و او د خپل عصر رهبر بلل کېده او په ملتان کې به یې ژوند کاوه.

علي سرور د ارشاد او تدریس حلقه درلوده او ډېر خلك یې مریدان وو دده عمر په وعظ او ارشاد کې تېر شوی دی او د لسمې پېړۍ په پای کې ژوندی و.

نعمت الله مؤرخ وایي، چې: علي سرور د ملتان د کهرور (کرور) په قصبه کې اوسېده، مستجاب الدعوات و او د ډېرش

کاله اوږد، ونه غځېد او نه شو بیده، یوه ورځ یوه نایي سرورخرایه وې ویل، چې: شیخ نجم الدین کبری به په یوه کتنه خلك د کشف خاوندان کول، علي سرور ورته وویل، چې: دا خو آسانه کار دی؛ نو چې نایي له خپله کاره فارغ شو، بل حال پر راغی او د کشف و درجې ته ورسېده او په عبادت او ریاضت مشغول شو[1] له دې قصې څخه د علي سرور د حیات دول او د خلکو نظر چې ده ته یې درلود، ښه ښکاري او د ((تحفهٔ صالح)) له روایته څرګندېږي، چې دی د خلکو مرجع و او عرفاني او علمي مشکلات به یې دده په فکر حل کول.

## دده اقوال او اشعار:

پټې خزانې د ((تحفهٔ صالح))[2] په حواله د علي سرور لودي یو تقریر هسې رانقل کړی دی: ((یوه ورځ سوال څنې وشو چې:

((پس ترا هر لحظه مرگی رجعتی است
مصطفی فرمود دنیا ساعتی است))

څخه مقصد لري؟ زموږ مرګ و رجعت کله دایم او مستمر دی؟ او که دا مرګ و رجعت دایم او مستمر وي؛ نو به حیات بعدالممات متعدد شي او د تناسخیانو عقیده به شي.

هغه عارف رباني هسې جواب ورکا، چې: ذات ماسوا دی له بدنه، ذات دایماً ثابت او بدن متحلل دی، هسې چې وایي: ((انت انت لا ببدنك فان بدنك فی التحلل ولیس عندك منه خبر، فانت وراء هذه الاشیاء)) دغه مرګ و رجعت بدني دی، نه ذاتي او هر کله چې تحلل وموند سابقه ذراتو؛ نو یې پر ځای درېږي

---

[1] مخزن افغاني قلمي، ۳۶۸.

[2] دې کتاب د پېژندلو لپاره وګورئ (۹) څپرکی (۱۶) عنوان.

لاحقه ذرات او همدغه تجدد دی، چې د دنیا عدم تحقق ثابتوي او هغه چې مصطفی علیه السلام وویل: ((الدنیا ساعة)) رشتیا کوي))[1].

په دې تقریر کې د علي سرور پاخه د تصوف افکار ښکاري او د تصوف او فلسفې یوه پخوانۍ عقیده وه چې د اجسامو اتومي ذرات مسلسلاً فاني کېږي او په ځای یې نوي نوي درېږي؛ ځکه چې د فاني او نورو ذراتو دغه تسلسل تل جاري دی او نوي اجزاء د پخوانو ذراتو ځای ډکوي؛ نو څوك د جسم په فنا نه پوهېږي. صوفیان وایي: چې مادي دنیا د الهي اسماوو مظهر ده او موجودات د خدای تعالی د کمالاتو د تجلی مظاهر دي؛ ځکه چې په تجلی کې تکرار نشته او پر یوه شي مکرراً یو راز تجلی نه کېږي (کل یوم هو فی شان) نو جلالي اسماء تل له موجوداتو څخه ((وجود)) قلع کوي او جمالي اسماء یې تر خپلو تاثیراتو لاندې راولي او بېرته ((وجود)) ورکوي او دغه مسئله ((تجدد امثال)) بلله کېږي.

شیخ ابو طالب مکي وایي: ((لا تجلی فی صورت واحدة لشخص و احد مرتان ولا فی صورة واحد للاثنین))[2] صوفیان له دې پله پسې فنا څخه دا نتیجه اخلي، چې دغه فنا په حقیقت کې د ((اثبات)) او ((وجود)) بنسټ ده؛ ځکه هر کله چې لومړی صورت فنا کېږي؛ نو دوهم صورت یې په مترقي ډول پر ځای درېږي او که دغه فنا نه وای؛ نو به ((وجود)) هم نه و تکمیل شوی؛ نو ګویا ((عدم او فنا)) د ((ارتقاء او تکامل)) وسیله ده. له علي سروره چې د کوم پارسي بیت پوښتنه شوې وه، هغه د

---

[1] پټه خزانه، ص ۱۰۷.

[2] قوت القلوب.

مولانای بلخي (رومي) له مثنوي څخه دی، چې مولانا هم دې عرفاني خبرې ته هسې شرح ورکوي:

تـو ازان روزیکه در هست آمدی — آتشی یا خاک (ی) یا آبی بُدی
گر بر ان حالت ترا بودی بقا — کی رسیدی موترا این ارتقا
از مبدل هستی اول نماند — هستی دیگر بجای او نشاند
همچنین تا صد هزاران هست ها — بعد یکدیگر دوم به ز ابتداء
این بقاها از فناها یافتی — از فنا پس رو چرا در تافتی؟
در فناها این بقاها دیده ئی — بر بقای جسم چون چسپیده ئی
تازه میگیری کهن را می سپار — ز انکه امسالت فزون آمد ز پار
پس ترا هر لحظه مرگ و رجعتی است — مصطفی فرمود دنیا ساعتی است
هر نفس نومی شود نیا وما — بی خبر از نوشدن اندر بقا

(مثنوي)



د مثنوي شارح لیکي، چې: په دې بیتو کې ((د تجدد امثال)) بیان دی، چې د کایناتو صورت هر ګړی اوړي، یو صورت معدوم کېږي او بل صورت په (وحدت عین) موجود کېږي؛ مګر چې زایل صورت د حادث صورت سره شبیه وي؛ نو یې د اوښتلو حس نه کېږي او داسې ګومان کېږي، چې هغه مستمر صورت دی[1].

د علي سرور په تقریر کې هم تاسې ددې عرفاني، خبرې شرح وینئ او دده عرفاني مقام او علمي منزلت ځنې ښکاري، ده د خبرې د څرګندولو لپاره د حضرت شیخ الاشراق شهاب الدین سهروردي مقتول (۵۸۷ هـ) له اقوالو څخه ځینې عربي جملات رانقل کړي دي، چې هغه هم دغه مسئله بیانوي[2].

---

(۱) بحر العلوم د مثنوي شرح.

(۲) د تفصیل لپاره وګورئ هیا کل النور دوهم هیکل ص (۱۲)، د مصر طبع.

اوس چې د علي سرور د عرفاني تقرير وضاحت د نورو عرفاوو د بيان په ترڅ کې وشو؛ نو به دده يو غزل رانقل کړو، چې د پټې خزانې مولف هم له ((تحفه صالح)) څخه اقتباس کړې ده او ښه عرفاني رنګ لري.

## غزل

محبت پياله مې نوش کړه په مجاز کې
د حق نور وينم په سترګو د اياز کې

درست وطن راته درياب شو بې ديدنه
ديد مې نه شي مګر خداى مې سبب ساز کې
که زه مړ شم هم له ګوره کړم سر پورته
ناګهان چې مې دلبر پورته آواز کې
که مې سر غوڅ د رقيب په تېره تېغ سي
هم به څم که دلبر غوښت په مهر و ناز کي
زه و يار مداماً ناست يو، يو له بله
پر غماز دې بارې کاني د غم ساز کي
ګران بېلتون به د هغو مينو وينه
چې تل ناست وي په خلوت کې سره نياز کي

اى سروره غمازان شوه بې حسابه
پاك الله دې صورت تش بې مغزه پياز کي [1]

[1] پټه خزانه ص، (۱۰۳).

(۲۷)

# میرمن نېکبخته

د (۹۶۰ هـ) حدود

د پښتو له شاعراتو مېرمنو څخه ده، ددې کورنۍ د پېښور په اشنغر کې اوسېده او پلار نیکه یې روحاني خلک وو او د ممن زيو مرشدان ګڼل کېده، ددې پلار شیخ الله داد مموزی د خپل عصر عالم او مرتاض سړی و او لکه شیخ امام الدین چې پخپل کتاب ((اولیای افغان)) کې کښلي دي، نېکبخته هم عارفه او زاهده مېرمن وه، دیني علوم یې لوستلي او عمر یې په ریاضت او عبادت تېراوه، دې کورنۍ د خپل وخت له یوې بلې عرفاني او ادبي کورنۍ سره چې د پېښور په لتو کې مشهوره ده؛ خوېښي وکړه، دا کورنۍ د مرحوم شیخ متي اولاد او احفاد وو، چې نېکبخته په (۹۵۱ هـ) د شیخ متي یوه لمسي ته په نکاح ورکړه شوه، چې شیخ قدم نومېده او د محمد زاهد متي زي زوی و، نېکبختې په (۹۵۶ هـ) میا قاسم افغان وزېږاوه، چې د پښتنو له عرفاني او علمي رجالو څخه دی او ددې کتاب په درېیم ټوک کې به یې احوال ولیکل شي.

د پټې خزانې د ((اولیاء افغان)) په حواله لیکي، چې: نېکبختې په (۹۶۹ هـ) یو کتاب ((ارشاد الفقراء)) په نامه وکېښ، چې د پښتو اخلاقي او تلقیني اشعار پکې وو او د فقیر مشربو خلکو لپاره نصایح او وعظونه وو[1].

---

[1] پټه خزانه، ص ۱۸۳.

لکه چې مونږ وینو: په پښتو ادب کې تر (۱۰۰۰ هـ) وروسته یوه ډله ناظمان او لیکوال شته، چې د دوی د منظوماتو مضامین فقط وعظونه او دیني نصایح دي.

ډېر کتب په دې ډول نظم شوي دي، چې دد غو دیني منظوماتو ډېره پخواني نمونه مونږ د نېکبختي په منظوماتو کې مومو.

دغه ډله نظم کوونکي عموماً واعظان او ملایان او دیني مرشدان وو، چې د عباداتو او اخلاقو په خصوص کې به یې لنډې لنډې منظومې جوړولې او د نېکبختي منظومات هم داسې دي، چې د نمونې په ډول یې دلته رانقلوم. دا نمونه د پټې خزانې مؤلف له ((ارشاد الفقراء)) څخه را اخیستې ده:



## نصیحت

د خدای حق ته غاړه کښېږده — نورې نورې وینا پرېږده
دنیا پاته له هر چا ده — په اخلاص کې ځنې بلېږده
څو قوت لرې په ځان کې — سر د یار په رضا کښېږده
ځان له بده خویه ژغوره — زړه په ذکر د یار بلېږده[1]
کل دنیا به دې دښنه شي — اوس له بېرې ځنې ړېږده
تو له غواړې حسابونه — که دې اوښې، که دې مېږده
دنیا ترک وهه که پوه یې — د بقا [illegible]، پښې ږده[2]

---

[1] بلېږده: وېېچه.
[2] پټه خزانه، ص ۱۸۳.

# (۲۸)

# شیخ محمد صالح الکوزی

## د (۱۰۰۰ هـ) حدود

شیخ محمد صالح په قوم الکوزی او د قندهار په جلدك کې اوسېده، چې دغه ځای د قندهار شمال شرق ته تقریباً (۳۰) میله لېرې د کابل پر لار واقع دی او تر اوسه هم هلته د الکوزو ټبر اوسي.

شیخ صالح موږ د پټې خزانې په کومك پېژنو او دغه کتاب دده د اشعارو نمونه هم موږ ته رارسولې ده، داسې وایي، چې: شیخ یو عالم او عابد سړی و او په علم او تقوی یې په خلکو کې شهرت درلود، اوقات یې په تدریس او د خلکو په ارشاد تېرول. منزوی او په ګوښه کې ناست سړی و، علمي او روحاني استغنا دی له دنیوي جولانه منع کاوه او همېشه د خپلو شاګردانو او مخلصانو د مجلس څراغ و، د تدریس حلقه یې د شاهانو تر دربار او عزت خوښه وه؛ نو ځکه تل د تدریس او ارشاد په حلقه کې له دنیوي مزخرفاتو څخه فارغ او مستغني و[1].

---

[1] پټه خزانه، ص ۹۹.

داسې معلومېږي، چې: شیخ صالح تر (۱۰۰۰ هـ) دمخه زېږېدلی و او په دغه وخت کې دده د علمي شهرت او تقوی او فضیلت ږغ لوړ و، چې پر قندهار نه؛ بلکې پر ټولې پښتونخوا د دوو لویو امپراطوریو یعنې د هندي تیموریانو او صفویانو جګړې پله پسې جاري وې او پښتنو آرام نه درلود. د شیخ صالح په وخت کې د قندهار صوبدار (والي) شاه بېګ خان کابلی و، چې په (۱۰۰۳ هـ) کال یې د جلال الدین اکبر باچا په امر قندهار ونیو او تر (۱۰۱۴ هـ) پورې هم په قندهار کې حکمران و[1].

پټه خزانه د شاه بېګ او شیخ صالح داستان داسې رانقلوي:

نقل دی، چې: شاه بېګ خان د قندهار صوبدار، شیخ محمد صالح وغوښت، چې کابل ته ولاړ شي او هلته خلکو ته فیض ورکړي او په تدریس د علومو طالبانو ته هدایت وکا، شیخ محمد صالح ورته وکښل، چې: ((ماله طمع د عزت نشته او په دنیا پسې تګ نه غواړم، زما داسې مقصد دی، چې دنیا ماته راشي، نه چې زه ولاړ شم دنیا پسې، که زما عزت غواړې، ما پرېږده او په دنیا پسې مې مه مسافر کوه...)) چې دغه خط ورسېده شاه بېګ خان وویل: ((زما هم ستا عزت مقصود و، نه بې عزتي...))[2].

له دې روایته موږ د شیخ صالح د ژوندانه طرز او دده د تفکر صبغه معلومولای شو، چې عزت نفس، پوهه، تقوا، استغنا ټول ورسره وو او دغه صفات او مزایا ده په دغه غزل کې سره یو ځای کړي دي، چې شاه بېګ صوبدار ته یې لېږلې وه:

---

[1] اکبر نامه، تزك جهانګیري، منتخب اللباب.

[2] پټه خزانه، ص ۹۹.

د لیلـــی د میـــنې فـــیض هـــر ســـبا وړم
بېهـــوده منـــت بـــه ولـــې د نـــور چـــا وړم؟

چې اشنا د شپې ناڅاپه (په) لاس کښېوت
روښـان زړه پـه ګوګـل پټ لمـر پـه سـما وړم

پـر دنیـا کـه تجـارت څـوك د دنیـا کـي[1]
زه د زړه پـه بـازار بـار د عشـق سـودا وړم

د لیلـی لیـدل دې رب پـه بهانـه کـي[2]
خـزانې کـه ددې کـل جهـان پـه شـا وړم

که پر تخت مې د سلیمان سپور کړې سرپه!
عاقبـت خـاورو تـه ښـه عمـل پېشـوا وړم

بـې لـه عشـقه خوشـحالي پـر مـا حرامـه
زه "صالح" که په خوله خوښ په زړه ژړا وړم[3]

## دده اشعار او اقوال:

داسـې ښکـاري، چـې شیـخ صـالح د شـاګردانو او مخلصـانو یـوه لویـه حلقـه درلـوده او دده اشـعار او اقـوال او احـوال بـه هغـو لیکـل، د پټـې خـزانې مؤلـف یـوه کتـاب تـه حوالـه ورکـوي، چـې ((تحفـه صـالح)) یـې نـوم و او دا کتـاب د شیـخ یـوه شـاګرد مـلا الله یـار دده پـه نامـه کښلـی و او پـه دې کتـاب کـې د شیـخ صـالح احـوال او اشـعار او اقـوال راټـول شـوي وو او دده د اشـعار وو یـوه

[1] کړي.
[2] نه کړي.
[3] پټه خزانه، ص ۹۹.

مجموعه وه، چې محمد هوتك له هغو اشعارو څخه لوړه غزل او هم دا لاندې پښتو غزل رانقل کړی دی:

چې په زړه یې غشی څرخ[1] سي د چشمانو
روغ به نه سي په دارو د طبیبانو

چې نور تن له رنځه خلاص په زړه رنځور وي
دا د زړه دارو جوړ نه کړه حکیمانو

مګر الله چې حبیب دی هم طبیب دی
کار سازي کا د خوارانو رنځورانو

هیڅ اثر را باندې نه کاندي عالمه!
بیه ویل دُر و ګوهر د ناصحانو

نصیحت زړه غواړي، زړه نسته ګوګل کې
زړه مې وړی په منګولو خوبرویانو

که "صالح" غوندې د زړه په وینو پایئ
نور دولت پر دنیا نسته طالبانو[2]

د شیخ صالح له دغو درو غزلو څخه ښکاري، چې دی د پښتو ژبې یو متوسطه درجه شاعر دی، کلام یې ساده او روان او د قندهار د پښتو محاورې یوه نمونه ده.

[1] څرخېدل: ننوتل. جګېدل عبدالقادر خان وایي:

خوب یې باندې نه شي لټ په لټ وبله اوري
ګل یې د نهالی په نازك بدن څرخېږي.

[2] پټه خزانه ص ۱۰۱.

# لسم څپرکی

## نثر ليکونکي او مؤلفات او کتابونه

لکه چې دمخه مو وويل: د پخوانو آريايانو او اکثرو نورو اقوامو، زاړه ادبي آثار منظوم وو او منثور آثار يې ډېر لږ پاتې دي.

ويدا او اوستا، دواړه منظوم وو. د سنسکريت زاړه کتب هم اکثر منظوم دي؛ نو له دغه جهته د آريايي اقوامو د نظم تاريخ تر نثر دمخه دي، په دې کې هېڅ شك نشته چې د ژبې اساس پر نثر اېښول کېږي؛ مگر څکه چې بشر خپل پخواني ادبي آثار په حافظه کې ساتل او د ليك او تحرير فن لا نه و ايجاد شوی؛ نو د حافظې د ساتلو لپاره نظم تر نثر آسانه و او هر کله به د آريايي اقوامو ريشيانو (شاعرانو) خپل ديني او اجتماعي مطالب نظم کول او حماسي شاعرانو به خپل جنگي او حماسي اشعار په منظوم ډول پېودل، د ويدا قديم آثار ددغو ريشيانو د قريحې نتايج دي. او ستا هم د زرتشت او دده د اتباعو گېتونه او سندرې دي، د زاړه يونان ايلياډ او اوديسه هم د هومر حماسي سرودونه دي.

د پښتو ژبې په ادبي تاريخ کې هم موږ ته تر اسلام راوروسته، لومړي منظوم اشعار لاس ته راغلي دي او د قدماوو په دوره کې تر (۶۰۰ هـ) دمخه کوم منثور اثر درك نه لرو، فقط د هاشم سرواني (د سالو وږمه) يو کتاب په نامه راته معلوم دی؛ مگر منظوم اشعار لکه چې تاسې ولوستل خورا ډېر دي، چې

لکه پخواني آریایي متون سینه په سینه رانقل شوي او وروسته په کتابو کې ضبط شوي او تر موږ پورې رارسېدلي دي؛ ځکه چې پښتو ژبه د قدیمو منظوماتو په شهادت موجوده وه؛ نو طبعاً به یې نثر هم درلود مګر ښایي چې د لیك او تحریر د نه والي په سبب (نثر) نه وي ضبط شوی او که څه هم و. هغه به د زمانې څپو ورسره وړي وي.

په دغه علت نو موږ د قدماوو په دوره کې تر (۶۰۰ هـ) پورې د پښتو د نثر نمونه نه شو موندلای او تر دغه وروسته د متوسطینو په دوره کې چې څلور پېړۍ ده، د نثر نمونې لرو او نثر لیکونکي پشتانه پېژنو چې کتب یې تالیف کړي دي.

د مغولو تر تاړاك دمخه، یعنې تر (۶۰۰ هـ) پخوا، د پښتو ژبې ادبي مراکز غور، د هلمند او ارغنداو (او) ترنك ورشوګانې وې؛ ځکه چې دغه مراکز د مغولو خونخوارو لښکرو وران کړل او د مدنیت یوه بولګه یې نه پکې پرېښوده؛ نو ښایي چې د پښتو کتب او آثار هم ورسره تباه شوي وي.

یو ټینګ دلیل شته، چې تر (۶۰۰) دمخه هم د پښتو نثر موجود و او د پوخوالي او متانت درجې ته رسېدلی و او هغه حجت دادی چې د (۶۰۰ هـ) په حدودو کې چې د نثر کومه نمونه موجوده ده، هغه ډېره پخه او متینه او خوږه ده، د یوې ژبې نثر چې دې درجې ته رارسېږي، طبعاً یې باید دمخه ابتدایي مراحل طی کړي وي، څو د طفولیت له مراتبو څخه د رشد او پوخوالي درجې ته راغلی وي.

نو له دې خبرې څخه استدلال کوو، چې باید ډېر دمخه اقلاً دوې درې پېړۍ پر پښتو نثر تېرې شوې وي، څو د پینځمې هجري پېړۍ متانت او پوخوالی یې میندلی وي. پس له دې

لنډې کتنې څخه به په لاندې کرښو کې زه هغه نثر ليکونکي او مؤلفان او مؤرخان درسره معرفي کړم چې تر اوسه ماته معلوم دي:

(۱)

## سليمان ماکو

(د تذکرې ليکوال) "۶۱۲ هـ"

د پښتو ژبې له پخوانو ليکوالو او نثر ليکونکو څخه چې تر اوسه معلوم شوي دي يو غښتلی او مقتدر ليکوال سليمان ماکو دی.

دی د بارك خان صابزي ماکو زوی دی، چې د قندهار په ارغسان کې اوسېده د ماکو قوم تر اوسه هم لږ تعداد هورې اوسي او په ابداليو (درانو) کې شاملېږي. سليمان له دې قومه يو پوه ليکوال راوتلی دی او د پښتونخوا په غرو کې يې سياحتونه کړي او د خپل عصر مشهور روحاني او ادبي رجال يې ليدلي دي.

دی پخپله وايي، چې: په (۶۱۲ هـ) تللی وم او د پښتونخوا په غرو او رغو ګرځېدم او د لويانو مراقد مې ليدل او پلټل، داسې ښکاري، چې سليمان تر دغه مفيد او ګټور سفر وروسته موفق شو چې د پښتنو د نوموړو بزرګانو په احوال کې يوه (تذکرة الاولياء) وليکي او د دوی وينا وې او اشعار په دې کتاب کې خوندي کړي؛ دا کتاب متاسفانه اوس ورك دی؛ خو لومړي اووه مخه يې ما تر (۱۳۱۹ هـ) کال دمخه په قندهار کې وموندل او د هغو مخو عکسونه مې د کابل په سالنامه (۱۳۱۹ ش) او په پښتانه شعراء لومړي ټوك کې خپاره کړل.

سلیمان ماکو د پښتنو پخوانی مؤرخ او نثر نویس دی او دده د نفیس او ګټور کتاب دغه څو مخه د پښتو ژبې او رجالو د تاریخ لپاره داسې مفیدې ثابتې شوې چې د ادب او پښتنو تاریخ یې تر ابده مرهون دی.

## سلیمان ماکو مؤرخ:

د سلیمان تذکره د پښتنو مشاهیرو او ادبي رجالو یو مفصل تاریخ دی، چې دی د هر سړي احوال بیانوي. د هغه علمي او روحاني مقام ښيي او بیا یې اشعار او ویناوې رانقلوي.

د تذکرې یو څو پاڼې چې پیدا شوې دي، دا څنې معلومېږي، چې سلیمان د پښتنو مشاهیرو احوال په داسې ډول لیکه چې د هغو د ژوندانه وقایع ثبت شي او دا خبره هم څرګنده شي، چې پلاني سړي څنګه ژوند کاوه، چېرې اوسېده پلار، نیکه او کورنۍ یې کومه او چېرې وه؟ او له هغه سړي څخه د خلکو په خولو، زړو کې کومه وینا او کوم شعر پاتې دی؟ دی په خپل سیاحت کې د کاملانو حضور ته رسېدلی او کوم مشاهیر چې مړه وو، د هغو مراقد یې موندلي او لیدلي دي او د تاریخي وقایعو په ضبط کې یې ډېر دقت کړی دی. د تذکرې په دیباچه کې پخپله وایي:

((په سن دوولس او شپېږ سوه د هجري تللی وم او د پښتونخوا په راغو او کلیو ګرځېدم او مراقد د اولیاوو او واصلینو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل او د دوی په خدمت خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ، چې له دې سفره په کور کېښېنستم او تنهاکې وچاودلې د پښتو، بیا پاڅېدلم او له څښتنه مې مرستون شوم، چې احوال د هغو کاملانو وکاږم او دوی چې

هغه وينا وې پ ته کړې دي او پښتانه يې لولي اوس))[1] له دې څخه ښکاري، چې سليمان په تذکره کې خپل مشاهدات او د سياحت ليدل شوي او کتل شوي معلومات کښلي دي او لکه پاخه مؤرخان د خپلو ليدلو او کتلو څخه حکايت کوي او يا هغه روايت ليکي، چې د پښتنو څخه يې په ټينګه اورېدلي دي.

د سليمان تذکره د پښتنو پخوانو شاعرانو په احوال او آثارو کې زموږ يو پخواني تاريخي او پوخ ماخذ دی. هغه اووه مخه چې له دې تذکرې څخه لاس ته راغلي دي[2] د دغو شاعرانو احوال پکې شته چې موږ په دې کتاب کې هر يو پر خپل موقع ليکلي دي: (۱) بيټ نيکه (۲) ملکيار غرشين (۳) د شيخ اسماعيل پارکی (۴) قطب بختيار. دا خبره هم بايد هېره نه کړو، چې سليمان د پښتنو رجالو په تاريخ ليکلو کې هغه سبک نه دی تعقيب کړی، چې د شيخ عطار په تذکرة الاولياء کې تاکلی شوی و؛ ځکه چې شيخ عطار يوازې د اولياوو د زهد او تقوی حکايات سره راټول کړي دي؛ مګر سليمان د رجالو د ژوندانه احوال او د دوی اخلاق او کورنۍ او هم ادبي موقعيت ښيي او په دې ډول يو پوه سړی او سترګه ور مؤرخ ښکاري؛ نو دده تذکره په حقيقت کې د تصوف کتاب نه دی؛ بلکې د شعر او ادب يوه ګرانبها مجموعه ده.

د سليمان په عصر کې د پارسي ژبې تذکرې ليکلې شوې دي، چې مشهورې يې هغه د شيخ عطار تذکرة الاولياء او بله د

---

[1] قلمي تذکرة الاولياء.

[2] دا اووه مخه ما لومړی پلا په (۱۳۲۰ ش) د پښتانه شعراء په اول ټوک کې د ۶۴_۶۵ مخ تر منځ کښې متن نشر کړه او په اصلي خط يې له اصلو پاڼو څخه عکس چاپ شو.

شاعرانو تذکره لباب الالباب ده، چې محمد عوفي د (۶۱۸ هـ) په حدودو کې کښلې ده، د شیخ عطار تذکره خو تاریخي ډول کوروټ نه لري؛ اما تر عطار دمخه کشف المحجوب د صوفیانو مقامات او ملفوظات او اخلاق او اقوال بیانوي؛ خو لږ لږ تاریخي احوال هم لري، د سلیمان تذکره لږ څه دغه د علي هجویري غزنوي کتاب ته ورته ده.

اما لباب الالباب چې د پارسي ژبې د شاعرانو تذکره ده، هم د دوی احوال او دقیقانه تاریخي کوائف نه لري؛ بلکې زیاته برخه یې د دوی د اشعارو په نمونو ډکه کړې ده.

د سلیمان تذکره دا مزیت لري، چې هم د رجالو اخلاق او احوال وایي او هم یې د کلام نمونې لري او هم د دوی روحاني مقامات او د تصوف برخه ښکاره کوي، له دې جهته موږ د سلیمان تذکره د تذکره اولیاء او تذکره شعراء تر منځ یوه جامعه نسخه ګڼو او سلیمان یو بصیر او مدقق مؤرخ او تذکره نګار بولو.

## د سلیمان ماکو نثر:

تر سلیمان دمخه د پښتو نثر کومه منثوره نمونه موږ ته نه ده معلومه چې پخوا به د پښتو نثر څنګه و؟ او څه سبك او ډول یې لاره؟ خو د سلیمان د نثر پوخوالی او متانت دا راته ښکاره کوي، چې ددغه عصر نثرونه به دغسې پاخه وو او لکه د پارسي نثر چې هم په دغو غزنوي او غوري دورو کې متین او پوخ او خوږ و، د پښتو نثر به هم ښه او د فصاحت اصولو ته نږدې و.

د سلیمان ماکو نثر که په تحلیلي سترګه ولیدل شي، تر دغو لاندې درو عواملو لاندې یې نښو و نما راته ښکاره کېږي او په

هغه ادبي محیط کې چې دې نثر وجود موندلی و هم دا درې عوامل موجود وو.

۱_ د پښتو ژبې خپل اثر چې سلیمان پښتون و او د پښتو ژبې ویونکی و؛ نو طبیعي ده، چې دغه عامل به دده د نثر پر ادبي بنیه او جوړښت پوره اثر درلود او ښایي چې تر ده دمخه چې کوم نثاران موجود وو، د هغو د لیکلو سبك به هم پر ده درووند اثر لاره.

۲_ په پارسي ژبه کې چې کوم ادبي حرکت موجود و او د سلیمان ماحول یې نیولی و، ضرور به یې دده پر نثر هم اثر کړی وي.

۳_ په دغه عصر کې پارسي نثر رشد موندلی و، هم په غزني، هم په خراسان او هم په هند کې خپل عروج ته رسېدلی و. تاریخ بیهقي او زین الاخبار او د محمد عوفي لباب الالباب او جوامع الحکایات او تاریخ سیستان او بیا طبقات ناصري او نور کتب ددغه عصر مهم منثور آثار دي؛ ځکه چې پښتو هم ددغه ادبي چاپېر په منځ کې ژوند کاوه؛ نو یې اغېزې هم طبیعي دي.

په دغه عصر کې عربي ادب او عربي ژبې هم پوره او بشپړ اثر کړی و. پخپله پارسي نثر هم په ابتداء کې تر دغه اثر لاندې نشو و نما وکړه. د (۵۰۰ هـ) په حدودو کې چې کوم پارسي منثور کتب ولیکلی شوه، د عربي ژبې اغېزې پکې څرګندې دي؛ ځکه چې پښتانه هم د عربي ثقافت سره په دغهٔ زمانه کې پوره ارتباط لري پر پښتو هم د عربي اثر شوی دی.

د سلیمان ماکو په حیاتي محیط کې دغه درې سایقه موجود وو، چې هر یو پر ادبي تحول او د لیك او نثر پر ډول باندې طبعاً

اثر کوي او زه هم تر دغو درو عواملو لاندې د سلیمان نثر تحلیل کوم.

## ۱_ دده پښتو:

د سلیمان نثر د پښتو ژبې له خوا، دوه اړخه لري، چې دواړه هم په ادبي تدقیق او پلټنه کې خورا مهم دي. یو اړخ یې دا د طرز او جمله بندۍ او د عباراتو تلفیق او سره نښلول دي، چې دی څنګه خپل مطالب ادا کوي؟ څنګه جملې لیکي؟ او د کلام عمومي سیاق او سباق یې څنګه دی؟

دوهم دده د نثر کلمات او الفاظ او لغات څنګه دي؟ آیا دده په پښتو کې هم لکه پخواني شعراء ځینې متروك او مړه کلمات شته که یه؟ نو پخپله د پښتو ژبې له پلوه که دده نثر وسپړل شي، روان دی، اغلاق او تعقید نه لري، اوږدې او پېچلې جملې نه استعمالوي او د طبیعي مکالمې رنګ لري.

سلیمان د عباراتو په تلفیق او سره نښلولو کې استاد دی او عبارت یې لنډ لنډ او واضح دي، جملې سره پرېکوي او هرې مبتدا ته بېل خبر ورکوي، د متعددو معطوفو مبتداوو دپاره په یوه خبر اکتفا نه کوي او هم له دې جهته یې نثر وضاحت او سلاست لري او جزیل کلام باله کېږي.

د پښتو ژبې اصلي او طبیعي رنګ هم دغه دی، چې خبرې یې پرې پرې وي او هر کلام ځانله مستقل وي او ډېر معطوفات ونه لري او یوه پر بله بار شوې جملې نه وي، چې په پخوانۍ پارسي کې هم د نثر لیکلو مقبول سبك دغه و؛ مګر وروسته چې د مغولو د دورې ناوړه نثر رواج شو، دغه وضاحت او جزالت او خوږوالی یې بایلود.

لاندې د دواړو ژبو ځنې مثالونه وګورئ: د ابو الفضل بیهقي سره پرېکړې او واضحې جملې:

((پس رسول بر پای خاست و منشور و نامه را بر تخت نهاد و امیر بوسه داد، و بو سهل زوزنی را ارشادات کرد تا یستند و خواندن گرفت))[1].

د عطا ملک جویني اوږده او سره نغښتلې معطوف عبارات چې څو قرنه تر بیهقي وروسته د مغولو د دورې په سبک لیکل شوي دي:

((بسبب تغییر روزگار، و تاثیر فلک دوار، و گردش گردون و اختلاف عالم بوقلمون، مدارس درس مندرس، و معالم علم منطمس گشته، و طبقهٔ طلبهٔ آن دردست لکد کوب حوادث، پایمال زمانهٔ غدار و روزگار مکار شدند، و بصنوف صروف فتن و محن گرفتار، و در معرض تفرقه و بوار معرض سیوف آبدار شدند و در حجاب تراب متواری ماندند))[2].

په پخوانۍ پارسي کې د بیهقي او دده معاصرینو لیک له طبیعي محاورې ځنې لېرې نه دی، اما د مغولو تر دورې وروسته اکثر لیکونه د محاورې له ډوله دونې لېرې دي، چې فرق یې په لومړي نظر سړي ته ښکاري.

د سلیمان ماکو پښتو نثر هم د پارسي د پخې انشاء رنګ لري، کوم نثر چې په غزنوي دوره کې له ۴۰۰ تر ۵۰۰ هـ پورې مروج وو. لاندې جملات د نمونې په ډول د سلیمان ماکو له تذکرې ځنې راوړلی کېږي:

((نقل کاوه شي چې په روزګار د غازي شهاب الدین چې پر

---

[1] تاریخ بیهقي ص ۴۸.

[2] جهانکشای جویني ج ۱ ص ۴.

کفر یرغل و، شیخ ملکیار چې غرشین ستانه و، هم ملګری و د شهاب الدین چې په ډیلي کې هغه ستر واکمن تاټوبی وروښانده او هورې مړ شو))[1].

## خلاصه:

د سلیمان نثر د عمومي محاورې څخه لېرې نه دی، جملې یې پرې پرې دي، وضاحت لري، مقاصد لنډ لنډ ادا کوي، د یوې جملې خبر په بله پورې معلق نه پرېږدي او ځینې هسې زاړه تعابیر او ادبي مصطلحات هم لري چې اوس نشته:

مثلاً: ((تناکې وچاودلې د پښو)) چې مقصد یې پخپل مسکن کې آرام کول او هوسایي ده.

((ډېر زښت یې ووژل)) چې په اوسنی اصطلاح له لومړیو دوو کلمو څخه یوه کافي ده او دواړې نه وایو او دا ((زښت ـ زخت)) هغه د دري پارسي ((سخت)) دی، چې د تاکید لپاره په ساماني او غزنوي پارسي کې ډېر مستعمل و او اوس هم موږ په پښتو کې کله کله وایو، مثلاً ((سخت یې وواهه)) بل ځای وایي: ((پر نړه یې د ستن ږغو و)) یعنې پر دنیا یې د روحانیت او ستانه توب آوازه وه، چې اوس نه د ((ستن)) او ((ږغو)) کلمات شته او نه داسې تعبیر ښوك کوي او ښایي چې دا د هغه وخت تعابیر وي، چې اوس له ژبې څخه وتلي او مهجور دي.

دغسې نور ډېر کلمات په دې یو څو مخو کې مومو چې اوس یې په ژبه کې استعمال نادر دی او مړه ګڼل کېږي، مثلاً ګروهېدل (ګرویدن) مصدر پخوا موجود و او د متقدمینو په دوره کې اصلي عنصر او ماده ((ګروه)) د عقیدې معنی درلوده؛

---

(1) سلیمان ماکو، تذکره.

لکه چې تاسې ددې کتاب په لومړۍ برخه کې د شیخ رضي او نصر لودي په اشعارو کې د ((ګروه)) کلمه ولوستله، دلته د سلیمان ماکو په نثر کې ددې مادې څخه ((وګروهېد)) په فعلي ډول راغلی دی، چې معنی یې ((گروید و عقیده کرد)) ده. دا کلمه په وروستیو ادباوو کې هم مستعمله وه، مثلاً خوشحال خان خټك وایي:

نه یې زړه په ما نرمېږي نه ګروهېږي
خدایه څه مې سریکار شو له کافره

بمیا (بومیا) پخوا د رهبر او مرشد په معنی و، سلیمان ماکو لیکي: ((څو چې بمیا شو د وګړیه)) یعنې د عوامو رهنما شو، چې اوس دا کلمه متروکه او مړه ده.

دغسې دی: پاړکی (قطعهٔ شعر) ستر څښتن (خدای بزرګ) ګڼون (شمار)، کول (خاندان)، دښن (دشمن)، جوبله (جنګ) او نور کلمات چې اوس نه دي مستعمل او اکثر دغه کلمات تر (۱۰۰۰ هـ) پورې لا هم په شعري دیوانو کې لیدل کېږي اما له محاورې څخه وتلي دي.

## ۲_ د پارسي اثر:

د پارسي ژبې د نثر اثر هم د سلیمان په انشاء کې ښکاري او دا د محیط یوه طبیعي اغېزه ده، چې ژبه هېڅکله ځان نه شي ځنې ژغورلای، ځینې تراکیب او جملې د سلیمان په نثر کې شته چې خاص د پارسي تراکیبو رنګ لري، مثلاً مضاف الیه دمخه کول لکه: ((او تنهاکې وچاودلې د پښو)) چې دغه ترکیب باید داسې وي: ((د پښو تنهاکې وچاودلې)) او نور دغسې تراکیب چې د پارسي ژبې اثر په کې ښکاره دی.

سلیمان که څه هم د پارسي کلمات ډېر نه راوړي او اکثر پښتو سوچه الفاظ لیکي؛ خو بیا هم دده نثر د پارسي کلماتو له خلطه نه دی خالي او دغه محیطي اثر یې قبول کړی دی. وګورئ دی د ((روزګار)) کلمه کټ مټ هغسې استعمالوي؛ لکه د پارسي ژبو پاخه پخواني لیکوال.

بیهقي لیکي: ((وبروزګار سلطان ماضی چون میدان والی مکران ګذشته شد ...)).

سلیمان وایي: ((په روزګار د غازي شهاب الدین چې پر کفر یرغل و)) بنل څای لیکي: ((په روزګار د شیخ بېټني کې دده ورور سړبن نومېد)).

دغه نور خالص پارسي کلمات هم دده په نثر کې شته؛ لکه درخواست، سپاس، دروه، خاکپای، خدای مهربان او نور...، چې د پارسي ادبي اغېزې د سلیمان په نثر کې راښیي او دا اغېزې په یوه مشترك چاپېر کې د ژبو تر منځ یو طبیعي او حتمي امر دی، مخصوصاً د پښتو او پارسي تر منځ چې له یوې ریښې څخه دوې آریایي ژبې دي.

## ۳_ عربي اثر:

د سلیمان په نثر کې تر پارسي د عربي ژبې اثر هم ډېر او دروند ښکاري او ددې علت همدا دی، چې عربي په دغو وختو کې د پښتنو درسي او دیني ژبه وه او که به چا له علمه سره مینه درلوده، هغه طبعاً عربي زده کوله؛ څکه چې ... یوازې په عربي ژبه کې موجود و او داسې هم ښکاري، چې سلیمان یو متدین او تصوف ته مایل ... د دیني علومو طالب سړی و؛ څکه چې دغه تول په عربي وو؛ نو به سلیمان عربي کتب لوستلي وي

او دده د حیات په چاپېر کې به د عربي او ادبي او دیني او تصوفي اثر خورا کلك او هم ډېر و.

د عربي اثر یوازې په پښتو نثر کې نه دی؛ بلکې د ساماني او غزنوي دورې د پارسي نثر په شهکارونو لکه د بلعمي تاریخ او تفسیر طبري او د بیهقي تاریخ آل سبکتګین او نورو ټولو کې د عربي نثر هسې واضح او ښکاره اثرونه لري، چې د پارسي په نثر کې په څرګند ډول معلوم دي؛ نو پښتو نثر خو له یوې خوا مستقیماً د عربي تر اثر لاندې و او له بلې خوا یې له پارسي نثره استفاده کوله، چې هغه هم د عربي له اغېزو څخه خالي نه و؛ نو له دغو دوو جهتو څخه د سلیمان په نثر کې د عربي اثرونه خورا څرګند او ښکاره دي.

یو پښتون معاصر لیکوال د سلیمان پر نثر هسې لیکي:

((غتیه خبره چې په دې نثر کې نظر ته راځي داده، چې: په دې کې د عربي رنګ معلومېږي، جمله بندي او اداء یې د عربي تر تاثیر لاندې دي. زه دا نه شم ویلای چې هغه وخت ګونډې د پښتو طبیعي آهنګ دغسې و؛ بلکې کېدای شي، چې په خپله سلیمان د عربي تعلیم یافته اوسي؛ نو ده چې د پښتو نثر لیکلی دی، طبعاً د عربي تر اثر لاندې راغلی دی. د سلیمان په عربي تعلیم باندې دا خبره هم دلالت کوي، چې دده په نثر کې عربي الفاظ لکه قطب، قدرة الواصلین، مراقد او داسې نور شته او صحیحه خبره داده، چې په دغه وخت کې پرته له عربي څخه بله د تعلیم ذریعه وه هم نه!

دا چې موږ وویل چې دده په نثر کې د عربي اثر معلومېږي، د لاندې جملو څخه ښه څرګندېږي:

۱ـ وایم حمد او سپاس د لوی خاوند.

۲_ نقل کاندي چې شیخ بیټني هوسېد په غره د کسې باندې.
۳_ سړبن نه درلود زامن.
۴_ خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه دونې زامن چې اوس تر وس تېر سو ګڼون د هغو.
۵_ ډکه شوه مزکه د پښتنخا د دوی په کول.

په پورته جملو کې د عربي رنګ څرګند دی، څوك چې د عربي سره اشنایي لري، هغوی پخپله پوهېږي. زه نه غواړم چې د نحو او جمله بندۍ د اصولو په بیان چې یو رقم تحصیل د حاصل دی، خپل مضمون اوږد کړم. هو دومره قدرې به ووایم، چې دغه جملې نن ورځ موږ په پښتو کې څه رنګ ادا کوو وګورئ:

۱_ د لوی خدای حمد او سپاس وایم.
۲_ داسې نقل کاندي چې شیخ بیټني د کسې په غره اوسېده.
۳_ سړبن زامن نه درلودل.
۴_ مهربان خدای د اسماعیل په برکت سړبن ته دونې زامن ورکړه چې اوس د هغوی ګڼون تر وس تېر سو.
۵_ د دوی په کول د پښتونخوا ځمکه ډکه شوه))[1].

اوس که موږ د سلیمان ماکو دغه څو جملې په غور وګورو؛ نو په ټولو جملو کې فعل تر خپلو متعلقو مفاعیلو دمخه راغلی دی، چې دا د عربي اثر ښکاري، مثلاً که لومړۍ جمله په عربي وي؛ نو به (الحمد لله العظیم) وي، چې د پښتو جملې رنګ یې همدغسې دی او د عربي د تقلید اثر پکړ ، ځلېږي او دا د عربي یې د جملې بندۍ تقلید له ۴۰ هـ) څخه په پارسي کې هم مروج و، چې د بیهقي دا جملې یې ښه څرګندوي:

[1] د ښاغلي خادم لیك د کابل کالنۍ ۱۳۱۹ش ۳۴۲.

((امیـر گـرد برگـرد قلعـه بگشـت، جـنگ جایهـا بدیـد، نمـود پـیش چشـمش و همـت بلنـد و شـجاعتش آن قلعـه و مـردان بـس چیزی)).

بل ځای وایي: ((امیر نشـاط شراب کرد و نمـود بس طربی که دلش سخت مشغول بود)).

په پښتـو جملـو کـې چې د سلیمان لـه نثره راواخیستلې شوې، کټ مټ دغـه اثر څرګند دی: لکـه چې هم تاسې تـه ښکاره شوه، دغسې هم (نقل کـاوه شي یـا هسې نقل کـاندي) د عربـي (نقل و حکی) اثـر دی چـې لیکوالـو بـه د عنعنې پـر وخـت راوړ او دا رسم هم په پښتو او هم په پارسي کې پاتې شوی دی.

## د سلیمان د نثر ممیزات:



اوس چـې د پښتـو د لومړي نثـر اساسـي عناصـر یعنې (د پښتـو او پارسـي او عربـي اغېـزې) وڅېـړل شـوې، یـو څـو نـور مهـم ادبـي ممیزات هم لاندې ذکر کېږي، چې په دې نثر کې لیده شي.

**۱ـ ایجـاز**: د سـلیمان د نثـر یـو څرګنـد مزیـت د جملـو ایجـاز دی، چې دغـه ممیزه یـې د پارسـي لـه قدیمـه نثره سره شریکه ده، تـر غزنویـانو دمخـه تـر (۴۰۰ هـ) پخـوا د پارسـي نثـر نهایـت مـوجز او جملـې یـې لنـډې لنـډې دي، چـې دې مطلـب تـه مـا دمخـه اشـاره وکړه.

**۲ـ توصـیف او توضـیح**: د سـلیمان پـه نثـر کـې ځینـې جملـې داسـې شـته چـې فقـط د توصـیف او ښـو څرګنـدولو لپـاره راوړلـې شـوې دي. دا مزیـت د پارسـي پـه سـاماني سبـك کـې لـرو؛ خـو د غزنـوي دورې لیکوالـو ښـه پسـې ډېـر کـړ او د مطلـب د روښـانولو لپـاره یـې ځینې پلـه پسـې جملـې راوړلـې چې مقاصـد ښـه پسـې

واضح شي[۱] مثلاً:

((په ویاله د ارغسان هوسېږم او په دې ځمکو پایېږم)) بل مثال: ((شیخ بېټني هوسېد په غرد بندې او هلته دېره و)). بل مثال: ((د دوی په خدمت خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ)) چې په دغو مثالو کې دوهمې جملې د توصیف او توضیح لپاره راغلې دي.

**۳_ د افعالو تکرار**: د پارسي پخواني لیکوال تر غزنوي دورې دمخه د هرې جملې لپاره د فعل ذکر لازم ګڼي، که څه هم یو فعل په څو جملو کې مسلسلاً تکرار لاهم شي، د افعالو تکرار لکه وروسته چې یو ادبي عیب وګڼل شو، د ساماني عصر په نثر کې عیب نه و؛ بلکې د الفاظو تکرار او د جملو تکرار هم کېده او دغه تکرار په اوستا او پهلوي ژبو کې هم و چې پارسي ژبې ته راغلی و او دا یو قدیم ادبي سنت ګڼل کېده[۲] مثلاً رود کي د څواني د غابنو په صفت کې داسې وایي:

سپید سیم رده[۳] بود و درو و مرجان
ستاره سحری بود، و قطره باران بود

چې بود څلور واره پکې تکرار شوی دی. یا مثلاً لکه دا جملې چې د (۳۶۰ هـ) د حدودو دي:

((من خواستم که کتابی بنا کنم، هر چ شایسته اندر و یاد کنم... و پس قوتهای شان پیدا کنم...))[۴] د سلیمان په نثر کې هم دغه د افعالو تکرار شته، چې د قدیمو نثرو اثر دی او کله

---

[۱] سبك شناسي ۶۹/۲.

[۲] سبك شناسي ۲_۵۵.

[۳] رده: صف او قطار.

[۴] الابنیه عن حقائق الادویه، د ابو منصور علي هروي لیك.

دونې ډېر افعال ذکر کوي، چې په يوه ليکه کې څو مکرر فعلونه راوړي مثلاً:

((بختيار په پښتو سندرې کړينه، اوښې تويونه، خداى ته نارې کړينه، غلبلې کړي، پاړکي لړينه. وګورئ پينځه فعله په يوه سطر کې سره يوځاى شوي دي، چې دوه کټ مټ تکرار هم دي.

دلته بايد دا هېره نه شي، چې د ژبې دغه طبيعي او روان سبك ډېر ښه دى او د افعالو د حذف او عطف ناروا دود وروسته رواج شوى دى، چې کله کله د کلام رنګ او خوند ورواړوي. موږ بايد په اوسني نثر کې دغه د افعالو د حذف بدعت رواج نه کړو او د قديم طبيعي او خوږ سبك پيروي وکړو.

**۴ـ د روابطو حذفول**: لکه دمخه چې مو وويل: قدماوو د فعل تکرار عيب نه باله او يو فعل يې مکرر هم د څو جملو په پاى کې راوړ؛ خو تر (۴۰۰ هـ) را وروسته په غزنوي دوره کې ليکوالو په متعاطفو جملو کې په قرينه سره د ځينو روابطو حذف رواج کړ او کلام ته يې يو راز نوى بلاغت وباخښه. مثلاً د بيهقي په دې جملو کې ((است)) رابط فعل محذوف دى: ((حيمئه مسلمانى ملك است و ستون پادشاه و طناب و ميخها رعيت)) وروسته (ماند) فعل درې ځايه حذف شوى دى ((پس چون نگاه کرده آيد، اصل ستونست و خيمه بدان نپايست، و هر گه وى سست شد و بيفتاد، نه خميه و نه طناب و نه ميخ))هم چې بايد داسې واى: نه خميه ماند، نه طناب ماند ـ نه ميخ ماند))[1].

د سليمان نثر لکه د تکرار افعال زوړ خاصيت چې لري، دغسې هم د غزنوي دورې د پارسي رنګ پکې ښکاري او اکثراً

[1] سبك شناسي ۲ـ۷۴.

فعلي روابط حذفوي او له تکراره یې ځان ژغوري. مثلاً: ((وایم حمد و سپاس د لوی خاوند او درود پر محمد مصطفی(ص) چې دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو...))، چې یو ((وایم)) له دروده سره او بل (دی) له رحمته سره محذوف دی.

**۵ـ د ترنم حروف**: د سلیمان د نثر یوه بله مهمه ممیزه داده، چې د افعالو په پای کې د ترنم یو نون زیاتوي او دا هغه خاصیت دی، چې وروسته د پیر روښان او دروېزه په سبك کې خورا ډېر شوی او یو فني رنګ یې موندلی دی، یعنې د مسجعو جملو په پای کې د ترنم یو (نه) زیاتېږي، دا ترنم د پښتو د لنډیو په آخرنیو سلابیلو کې عام دی؛ لکه خورینه. کوینه، راوړینه د خورې او کوې او وړي حالي افعالو پر ځای، مثالونه: ((سندرې کړینه، یا اوښې تویوینه)) یا ((پاړکي لرینه)) چې دلته د کړي، تویوي، لري، حالي افعال کافي دی او (نه) زاید دی.

## ***سجع او موازنه:***

پخوانو لیکوالو به کله په جملو کې د سجع او موازنې په ډول کلمات راوړل، چې د پارسي نثر په ساماني او غزنوي دوره کې دا رعایت لرو؛ مګر وروسته چې فني نثر د عربي په تقلید پیدا شو، دا کار ډېر مبتذل او عام شو. بیهقي هم کله داسې اسجاع لري مثلاً: ((صفی خوانم از دنیای فریبنده، بیک دست شکر پاشنده، و بدیگر دست زهر کشنده...)).[۱]

د سلیمان نثر که څه هم مسجع نه دی؛ خو لکه بیهقي او نور کله داسې موازن او مسجع کلمات لري او لکه چې وویل شوه، د افعالو په پای پورې یو (نه) د ترنم لپاره نښلوي، چې مسجع هم

[۱] سبك شناسي. ج ۲، ص ۷۳.

شي. دا جملې هم دغسې رنګ لري. او مراقد د اولياوو او واصلينو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل ((يا)) په جوبله کې ملکيار دا پارکي وويل: چې غازيان وپارېدل، او په ځېر د زمريو ورتوی شول.

دا و د سليمان د نثر مهم مميزات، چې په لنډ ډول راوړل شوه او له دې څېړنې څخه نتيجه اخلو، چې د سليمان په نثر کې ځينې داسې اثرونه شته، چې د پارسي د ساماني او غزنوي دورې د ليکوالو سره نژدې کېږي او کوم ادبي جريان چې تر ده دمخه درې څلور قرنه په منځنۍ آسيا کې موجود و، سليمان هم له هغه څخه متاثر ښکاري، اما دا زمونږ استنتاج او څېړنې چې فقط دده د کتاب پر يو څو مخو باندې شوی دی، په کامل ډول د هغه عصر د نثر عمومي مميزات نه شي ښوولای. البته که بل يو منثور اثر له دغه عصره زمونږ په لاس کې وای؛ نو به مو د حتم او يقين په ډول څه ويلي وای. له دې جهته هم ددغه بحث او پلټنې تکميل هغه وخت ته پرېږدو، چې د پښتو نثر نورې زړې نمونې پيدا شي او ښايي چې دا کار زمونږ آيندګان پای ته ورسوي او دغه اوسني آراء او منتج معلومات يا نقض کې يا تاييد.

### د سليمان په نثر کې ځينې ناوړه ترکيبونه:

تر اوسه مونږ د سليمان د نثر ښېګړې دروښوولې او د پارسي او عربي کومې اغېزې چې پکې ښکاري، تحليل شوې، په دې نثر کې ځينې غوټه او سره نغښتلې عبارات او تراکيب هم شته، چې ناوړه او غير مستحسن ښکاري؛ ځکه چې د کتاب بشپړه نسخه نشته او هم دا څو پاڼې چې پيدا شوې دي، په خورا بد

خط دي؛ نو سړی نه شي ویلای، چې دغه تعقیدات او ناوړه تراکیب پخپله د مؤلف دي او که د ناسخ او لیکونکي تصرف یا سهوه ده؟ موږ چې ددغو څو پاڼو عمومي سیاق او سباق ته ګورو؛ ځکه چې د مؤلف نثر سهل او روان او خوږ دی؛ نو دا ویلای شو، چې دغه یو څو جملې او مغلق تراکیب به د ناسخ سوء تصرف یا سهوه وي. دا لاندې تعابیر څرګند او خواږه او د بلاغت له اصولو سره سم په نظر نه راځي: ((موسی چې ستر پلار و د قطب، تللی و له بختیارانو څخه او مېشت و پر اېواد چې سیند باله شسي، لرغونې برخه ځوی د موسی شیخ احمد ته لوی ستانه ورکړی شوی، د سنزر لاس ونیو وګروهېد او پر نړه د ستن ږغو وه...)) له (لرغوني) څخه بیا تر پایه جملې مغلقې او ناڅرګندې دي.

تاسې دمخه د قطب الدین بختیار په احوال کې ولوسته، چې د احمد زوی او د موسی لمسی و او د حضرت معین الدین سجزي مرید و، ددغو تاریخي حقایقو په سیوري کې باید لوړ تعابیر او تراکیب داسې وي:

"شیخ احمد د موسی زوی ته لرغونې برخه قطب ورکړ شوی و چې لوی ستانه و او د سنزرې! د سجزي[1] لاس یې ونیو او وګروهېد او پر نړه یې د ستن (ستانه توب) ږغ و". یا به (ږغو په هغه وخت کې یو پښتو لغت و، د اوازې او صیت په معنا.

## د سلیمان د نثر نمونه له تذکرې څخه:

((وایم حمد و سپاس د لوی خاوند او درود پر محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم، چې دی بادار د کونینو او رحمت

[1] دا کلمه په اصل کې سنزري ده، چې صحیح یې سجزي دی یعنې سیستاني.

د ثقلینو لوی لوی رحمتونه دې وي د هغه استازي پر آل او یارانو، چې دواړه جهانه په دوی دي روښان.

(ا) ما بعد: زه غریب خاورې سلیمان زوی د بارك خان کاکو صابزي چې په ویاله د ارغسان هوسېږم او په دې مزکو پایېږم په سن دوولس، شپږ سوه د هجري تللی وم او د پښتنخا (پښتونخوا) په راغو او کلیو گرځېدم او مراقد د اولیاء او واصلینو مې پلټل او په هر لوري مې کاملان موندل او د دوی په خدمت خاکپای وم. او هر کله په سلام ورته ولاړ چې له دې سفره په کور کې کښېنستم او تناکې وچاودلې د پښتو، بیا پاڅېدلم او له څښتنه مې مرستون شوم، چې احوال د هغو کاملانو وکاږم او دوی چې هغه وینا وې پاته کړې دي او پښتانه به لولي اوس))[۱].



## بله نمونه:

ذکر قدوة الواصلین شیخ مشایخ بېټني: چې د خدای په پېژند گلوی تر ټولو، لوی و او بزرگ، نقل کاندي چې شیخ بېټني هوسېد په غره د کسې باندې او هلته دېره و. او ده به هر کله څښتن باله. او روزه به و، په شپو به د خدای په عبادت بخت به و.

نقل هسې کاندي یارانو، چې په روزگار د شیخ بېټني کې دده وړور چې سړبن نومېد، پر شیخ هم خورا گران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به (یې) ویل، خپل ورو ته بېټني خپل ځوی اسماعیل ورکاوه او لوی سود سړبن په کاله. خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه، دونې زامن چې اوس

(۱) د تذکرې له مقدمې څخه عیناً د قلمي نسخې املا لیکلی شوې ده.

تر وس تېر سو ګټون د هغو، د اسماعيل مرقد مبارك واقع دی د کسي پر غره چې زه هلته تللی وم.

نقل کاندي: چې ښځنی سپين ږيری سو؛ نو ده به هر کله ښښتن باله او رب ته به (يې) درخواست کاوه، چې زما په کاله او د سړبن او غرغښتي په کول (کهول) کې برکت کښېږده، بادار قبول کړ دده درخواست او ډکه سوه مزکه د پښتنخا (پښتونخوا) د دوی په کول[1].

## (۲)

# د شيخ متي د "خدای مينه"

### د (۶۵۰ هـ) حدود

د شيخ متي احوال مو دمخه ولوست، دی د پښتو لوړ او جمالي شاعر خپل اشعار په يوه مجموعه کې کښلي و، چې نوم يې ((د خدای مينه)) وه.

دا کتاب د محمد هوتك په قول، شيخ متي په غونډان کې وکښلی او خپل شعرونه او مناجاتونه يې پکې راټول کړل، هغه وخت چې شيخ وفات شو؛ نو دده ارادتمندانو هغه کتاب دده پر مزار کښېښو، چې د کلات د غونډۍ پر سر واقع دی، کوم خلك چې دده د مرقد زيارت له به ورتله؛ نو له هغه کتابه به يې د شيخ اشعار لوستل، هغه وخت چې مغول راغلل؛ نو يې دا کتاب واخيست او وروسته نه شوه څرګنده، چې څه شو؟[2].

د شيخ متي دا کتاب اوس ورك دی او فقط يو الهامي شعر

---

[1] عيناً د قلمي نسخې په املا، پښتانه شعراء ج ۱ ـ د قوسينو تر منځ کلمات په اصل کې نشته.

[2] پټه خزانه، ص ۲۳_۲۹.

له هغه څخه په پټه خزانه کې موږ ته پاتې دی، چې ددې کتاب په (۲) برخه (۸) څپرکي کې تاسو ولوست داسې ښکاري، چې د ((خدای مینه)) یوه مجموعه وه، چې ډېر موثر اشعار پکې غونډ شوي وو او محمد هوتک وايي: وګړیو به هغه پارکي ږغول او هر چا به ویل؛ نو به یې ژړل.[1]

لکه د مغولو تاراك چې ډېر علمي او ادبي ذخایر زموږ له لاسه ایستلي دي، دا کتاب هم د هغه عصر له ضایعاتو څخه دی او که محمد هوتك پخپله خزانه کې نه وای یاد کړی؛ نو اوس به یې نوم هم ورك و.

(۳)

## محمد بن علي البستي

((د تاریخ سوري)) لیکوال د (۶۵۰ ه) حدود

دا پښتون مؤرخ له هغو نومورکو مؤلفانو څخه دی، چې د مغولو د تاراك په ابتداء کې به ژوندی و، دده له احواله نور هېڅ معلومات نه لرو، پرته له دې چې دی د هلمند د غاړو یو سړی و او د تاریخي بست اوسېدونکی و، د پلار نوم یې (علي) و او ده یو کتاب لیکلی و، چې د سوریانو پاچاهانو احوال یې له قدیمه پکې ضبط کړي و، ((تاریخ سوري)) اوس ورك دی، فقط د پټې خزانې مؤلف یې د شیخ کټه متې زي د ((لرغوني شعراء)) په حوالت نوم اخلي او داسې ښکاري، چې دا کتاب د شیخ کټه په لاس کې و او په ((لرغوني پښتانه)) کې ډېر مواد له دغه کتابه رانقل کړي وو[2]. د تاریخ سوري یو څه ابحاث او محتویات موږ

---

[1] پټه خزانه، ص ۲۹.

[2] په دې څپرکي کې د شیخ کټه احوال وګورئ.

ته په دوو واسطو لاس ته راغلي دي، شيخ کته په ((لرغوني پښتانه)) کې ځنې رانقل کړي دي او له ((لرغوني پښتانه)) څخه د پټې خزانې مؤلف ((محمد هوتک)) پخپل کتاب کې را اخيستي دي او هغه مواد او پاتې آثار دادي:

۱ـ د امير کروړ احوال او دده يو قديم حماسي شعر او وياړنه[۱].

۲ـ د اسعد سوري احوال او دده قصيده[۲].

۳ـ د ښکارندوی احوال او دده قصيده[۳].

له دغو پاتې آثارو څخه ښکاري، چې محمد بن علي په تاريخ او د پښتو په ادب کې ښه او ثقه معلومات درلوده او لکه ((لرغوني پښتانه)) چې له ده څخه روايت کوي، دی اديب او پلټونکی سړی و او په بست کې (يې) د ښکارندوی د قصايدو يو غټ ديوان موندلی او له هغه څخه يې دده يوه غرا قصيده پخپل ((تاريخ سوري)) کې رانقل کړې ده، چې دمخه تاسې د ښکارندوی په احوال کې ولوستله.

داسې ښکاري، چې د محمد بن علي ((تاريخ سوري)) مشهور و او شيخ کته هم دا کتاب د غور په بالشتان (والشتان) کې موندلی و[۴] او تر دغه عصره د (۷۵۰ هـ) حدود لادا کتاب موجود و؛ ځکه چې همدغه کتاب د شيخ کته له ماخذو څخه دی؛ نو دا ويلای شو، چې بستي به تر (۷۰۰ هـ) دمخه ژوند کاوه او بايد دده د ژوندانه وخت د اټکل په ډول له (۵۸۰ تر

---

[۱] په دې کتاب کې د لومړۍ برخې ۲ ځېرکی وګورئ.

[۲] وګورئ او له برخه نهم ځېرکی.

[۳] وګورئ اوله برخه پينځم ځېرکی.

[۴] پټه خزانه، ص ۹.

۶۵۰ هـ) پورې وتاکو؛ ځکه چې د ښکارندوی عصر هم د (۵۸۰ هـ) حدود دي او ددې شاعر احوال او اشعار ده په تاریخ سوري کې ضبط کړي وو.

د تاریخ سوري په خصوص کې د پټې خزانې له لیکنو څخه دغونې ښکاري، چې یو په پښتو لیکل شوی تاریخ و او د سوریانو د کورنۍ احوال یې له قدیمه بیاناوه، اما یوازې د حربي او سیاسي پېښو تاریخ نه و؛ بلکې ادبي رنګ یې هم درلود او بستي ډېر باخبره او سترګور مؤرخ و؛ ځکه چې ده د پاچاهانو احوال او حربي او سیاسي وقایع رانقل کړي او هم یې د دوی د کلام نمونې راوړې وې او هغه قصیدې یې پخپل کتاب کې ساتلې وې، چې د غوري پاچاهانو په دربارو کې په پښتو ویلې کېدې، له دې څخه ښکاري، چې ((تاریخ سوري)) د سوریانو او غوریانو د عصر یو ادبي او سیاسي او حربي تاریخ و، که څه هم ددغه تاریخ نسخه اوس نشته؛ مګر د پټې خزانې له یادونو څخه یې اهمیت ښه ښکاري او دا د پښتو ژبې یو خورا قیمتي کتاب و.

دا خبره هم باید هېره نه کړو، چې راورټي مستشرق د احمدشاه بابا تر عصر وروسته یو تاریخ میندلی و، چې نوم یې ((تذکرة الملوك)) و، ددې کتاب په ماخذو کې یو کتاب ((تاریخ سلاطین سوریه)) هم دی[1] مګر دا نه شو ویلای، چې دغه تاریخ سوریه هغه د محمد بن علي تاریخ وي که بل؟



[1] د راورټي د پښتو ګرامر ص ۳۹ .

(۴)

# احمد لودي د "اخبار اللودي" ليکوال

## (۶۸۶ هـ)

احمد د سعيد زوی او د لوديانو له ليکوالو او اديبانو او مؤرخانو څخه دی، چې د اوومې هجري پېړۍ په منځ کې ژوندی و، محمد هوتك ليکي، چې: کامران خان سدوزي په (۱۰۳۸ هـ) يو کتاب د ((کليد کامراني)) په نامه وکېښ او په دغه کتاب کې يې د احمد لودي له کتابه د ملتان د لودي پاچاهانو احوال نقل کړ[1].

شيخ احمد د سعيد لودي زوی په (۶۸۶ هـ) يو کتاب کښلی و، چې نوم يې ((اعلام اللوذعي فی اخبار اللودي)) و، هغه وخت چې کامران خان ((کليد کامراني) ليکه، دغه کتاب يې هم په لاس کې و او د پښتنو لودي پاچاهانو احوال او اشعار يې له دې کتابه نقل کړل، چې د پټې خزانې مؤلف هم له کليد کامراني څخه پخپله خزانه کې وساتل او موږ دمخه په دې کتاب کې د لوديانو په احوال کې مفصلاً وکښل.

داسې ښکاري، چې احمد لودي په خپل کتاب کې ددغو

[1] ددې کتاب اوله برخه ۳ څپرکی وګورئ.

لودیانو د پاچاهي کورنۍ احوال لیکلی و او د دوی پښتو اشعار یې هم راوړي و، په شرقي مؤرخانو کې محمد قاسم فرشته هم د شیخ حمید کورنۍ لودیان پښتانه بولي او د دوی جګړې له سلطان محمود سره لیکي[1].

ځکه چې محمد قاسم پخپل کتاب کې خپل ماخذ نه دی ښودلی؛ نو دا نه وه معلومه چې ددې کورنۍ پښتونوالی په کوم تاریخي سند ثابت دی؟ لکه چې ځینو ددې عصر مؤرخانو د شیخ حمید د پښتون ګلوۍ څخه انکار کړی او وایي چې دغه کورنۍ د جلم بن شیبان عربي نژاد حکمدار له نسله ده، چې تر (۳۴۰ هـ) وروسته د ملتان لومړی قرمطي پاچا و[2] مګر د پټې خزانې مؤلف د ((کلید کامراني)) په ذریعه ددې کورنۍ پښتو اشعار له اخبار اللودي څخه راوړي دي، چې دا کتاب ددغې کورنۍ په تاریخ کې یو ټینګ او زوړ سند ګڼل کېږي. بې له دې انتخابه چې په لوړ ډول له ((اخبار اللودي)) څخه موږ ته رارسېدلی دی، ددې کتاب پته نشته او نه یې نسخه تر اوسه پیدا شوې ده؛ خو د پټې خزانې له ذکره څخه دونې نتیجه اخیستلای شو، چې تر (۶۰۰ هـ) را وروسته چې د پښتو د نثر لیکلو کومه سلسله شروع شوې وه، هغه ددغه قرن تر آخره پورې هم جاري وه او احمد لودي هم د پښتو له دغو پخوانو لیکوالو څخه دی، چې کتاب یې د کامران خان سدوزي تر عصره په یوولسمه هجري پېړۍ کې لا هم موجود و.



[1] تاریخ فرشته ص ۱۷_۲۷.

[2] مرحوم سلیمان ندوي، تعلقات هند و عرب ص ۳۲۸.

(۵)

# شيخ کټه

## د (۷۵۰ هـ) حدود د لرغوني پښتانه ليکوال

دا مدقق مؤرخ او د پښتو ژبې لوی ليکوال د مرحوم شيخ متي له علمي او ادبي کورنۍ څخه دی، چې د شيخ يوسف زوی او د شيخ متي لمسی و. شيخ متي (کلات باپا) خپلې کورنۍ ته علم، تقوي، عرفان او ادب په ارث پرېښوول او ډېر علماء او مؤرخان او عارفان پکې پيدا شول، چې د شيخ يوسف تر مړينې وروسته له ده څخه اووه زامن پاتې شول او شيخ کټه په دوی کې ډېر مشهور و. د شيخ مور بي بي ((مراد بخته)) نومېده، چې په خټه زمنده وه[1].



دې نوموړي عالم د پښتنو د رجالو او مشاهيرو په تاريخ کې يو نفيس کتاب وکښل چې نوم يې (لرغوني پښتانه) و، دا کتاب پښتو و او د پټې خزانې مولف محمد هوتک ډېر ځله دا کتاب يادوي او داسې ښکاري، چې ددغه مؤرخ يګانه مهم ماخذ هم دغه و او د پټې خزانې د ليکلو پر وخت يې په لاس کې و.

د شيخ کټه د ژوندانه وخت يقيناً نه دی معلوم؛ خو د پټې خزانې په روايت دده نيکه شيخ متي په (۶۸۸ هـ) وفات شوی دی؛ ځکه چې د مؤرخانو په اتفاق يوه پېړۍ د درو پښتو دپاره مقرره ده؛ نو بايد د شيخ کټه د ژوندانه وخت هم د (۷۵۰ هـ) شاوخوا وګڼل شي. د شيخ کټه اولاد که څه هم د پېښور په شمالي برخو کې پراته وو؛ مګر داسې ښکاري، چې پخپله دی

[1] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۵.

سیاح سړی و؛ څکه محمد هوتك په ښکاره لیکي، چې: شیخ کته د محمد بن علي البستي کتاب ((تاریخ سوري)) په بالشتان کې لیدلی و[1]. بالشتان یا والشتان خو د غور مشهور ښار و، چې په (۱۳۹ هـ) امیر پولاد سوري نیولی و او د بیهقي په ضبط ګورو الشت[2]، او د منهاج سراج د طبقات ناصري په یوه نسخه کې غور و الشت راغلی دی[3] او دا ښار د تکینا باد (د هلمند او قندهار حدود) او د غور د مندېش تر منځ پروت و او د سیتان په تاریخ کې واستان ضبط شوی دی[4].

نو چې شیخ کته والستان ته راغلی و او د غور دغه ښار یې لیدلی و، ښکارېږي چې د پښتونخوا غربي او جنوبي خواوې به یې هم کتلې وي او هم له دغه جهته به دده معلومات د پښتنو د تاریخي رجالو پر احوال ډېر شوي وي.



د شیخ کته نفیس تاریخي کتاب (لرغوني پښتانه) چې له نامه څخه یې هم د کتاب اهمیت ښه ښکاري اوس نشته؛ لکه چې ومو ویل، دا کتاب د محمد هوتك څخه و او د پټې خزانې غوره ادبي برخه له دې کتابه اقتباس دی او محمد دا هم لیکي، چې د شیخ یو مهم تاریخي ماخذ ((تاریخ سوري)) و، چې دمخه یې ذکر وشو.

شیخ کته د اولاد په خصوص کې خواجه نعمت الله هروي مفصلاً معلومات راکوي، چې ده اته زامن درلوده، د زلو مغدورزی له نسه: سلطان، ثابت، حاجي سلیمان ممي، له

---

[1] پټه خزانه ص ۲۹.

[2] تاریخ بیهقي ص ۷۶.

[3] د راورټي حواشي پر طبقات ناصري.

[4] تاریخ سیتان ۲۰۸/۳۰۶.

دوهمې مايني ښخه چې دغه هم زلو نومېده په ختمه اکازی يوسفزی: ابراهيم، ملك پاجي[1] هغه مقتبسات چې د پټې خزانې مؤلف له ((لرغوني پښتانه)) ښخه کړي دي، داسې ښکاره کوي، چې ((لرغوني پښتانه)) د ادبي او سياسي او نورو نومورو پښتنو يو عمومي تذکره وه. د پاچاهانو، پوهانو، شاعرانو او جنګياليو خلکو احوال او اشعار پکې ذکر شوي وو او دا کتاب چې د پښتو د نثر او نظم يوه غوره ذخيره وه، متاسفانه اوس ورك دی او نسخه يې چا نه ده ليدلې؛ مګر په (۱۱۴۲ هـ) لا د محمد هوتك ښخه و.

د ((لرغوني پښتانه)) ښخه د پټې خزانې په ذريعه دغه مغتنم مواد مونږ ته پاتې دي:

۱ـ د امير کروړ احوال او اشعار، چې شيخ کته هم له تاريخ سوري ښخه اقتباس کړي دي[2].

۲ـ د شيخ اسعد احوال او اشعار، چې شيخ کته هم له تاريخ سوري ښخه اقباس کړی دی[3].

۳ـ د ښکارندوی احوال او اشعار، چې شيخ کته هم له تاريخ سوري ښخه اقتباس کړي دي[4].

۴ـ د هاشم سرواڼي بستي احوال او اشعار[5].

**خلاصه**: شيخ کته متي زی غورياخېل د پښتنو يو عارف او زاهد او مؤرخ او نثر ليکونکی مشهور سړی دی، چې د ادبياتو

---

[1] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۶.

[2] لومړی برخه ۲ ښپرکی وګوری.

[3] لومړی برخه ۵ ښپرکی وګوری.

[4] اوله برخه ۵ ښپرکی وګوری.

[5] اوله برخه ۲ ښپرکی وګوری.

په تاریخ کې به تل دده نوم ژوندی وي. که څه هم د یوه لیکوال او مؤلف په ډول دی موږ له پټې خزانې څخه وپېژاند؛ مګر د یوه مشهور عارف او ملي سړي په ډول دمخه نعمت الله هروي هم دی په خپل مخزن کې معرفي کړی و.

(۶)

## شیخ ملي

د (۸۲۰ هـ) حدود د "دفتر" لیکوال

دا سړی د پښتنو یو معروف قاید او لیکوال او مؤرخ او مقنن دی چې نوم یې آدم ملي و[1] او داسې ښکاري، چې (ملي) دده فامیلي نوم دی[2] دده د پلار او نیکه نومونه داسې دي: آدم معروف په شیخ ملي د یوسف زوی دی یوسف د مندي بن خښبي بن کندین خرښبون زوی دی[3] چې دغه خرښبون هم د پښتنو له ادبي او مشهورو رجالو څخه دی او په لومړي برخه کې مآثر ذکر شول.

---

[1] تذکرة الابرار والاشرار.

[2] ملي باملوي پښتو نوم دی، چې ریښه یې داسې تحلیل کوي مولی مرادف دی له مولنی سره، د منل له ریښې څخه چې معنا یې منونکی او پارسا او متدین ده، په سنسکریت کې هم موني دغه معاني لري. سکیاموني د مشهور بودا لقب دی. یعني د سکیا د قوم پارسا او عالم؛ نو د منلو له مصدري مادې څخه ملی او بیا مولی جوړ شو او په پشه یي ژبه کې هم له دې ریښې څخه (مولیك) مصدر د (دانستن) په معنا شته؛ نو ملی، مولی. ملا، مولا. د عالم او پارسا په معناوو له دغې پښتو ریښې څخه دی (د کابل کالنی ــ ۱۳۲۴).

[3] حیات افغاني، تاریخ مرصع.

شیخ ملي د خپل پلار په نامه (یوسفزی) یادېږي او د یوسفزیو په خورا لوی ټبر کې تر اوسه لا هم شهرت لري. اخوند درویزه او افضل خان ختټك او نور مؤرخان او هم د عامو خلکو عنعنه دا وایي، چې د شیخ ملي نیکونه د قندهار په ارغسان کې اوسېده او له هغه ځایه دوی د ننګرهار او پېښور لتو ته راغلي دي[1].

یوسفزي پښتانه تر اوسه هم وایي، چې موږ له ((غوړې مرغې)) څخه راغلي یو. ((مرغه)) خو هم لوی ځای و، چې اوس یې یوه برخه په ارغسان او بله په کدني اړه لري. ګویا ((مرغه)) د کوږك د غره شاوخوا ته تر ژوبه رسېده.

دغه لښنه مؤرخان د مرزا الغ بیګ په عصر کې ګڼي (۸۱۲_۸۵۳ هـ)؛ مګر داسې ښکاري، چې له قدیمه د پښتنو دغه تګ راتګ شروع شوی و او ښايي چې دغه وروستنی لښنه او یون وي؛ څکه محمد هوتك کښلي دي، چې د کند او زمند اولادو لا دمخه په لښنه پیل کړی و[2]. د یوسفزو په ټبر کې د شیخ ملي کورنۍ درنه او معززه وه او ټول یوسفزي د دوی تر امر لاندې تله، دوه مشهور مشران یې درلوده چې یو پخپله شیخ ملي و او بل شیخ احمد نومېد، دوی له کابله لغمان او حصارك او د ننګرهار ځمکو ته ولاړل او ورو ورو یې د سوات او پېښور، میرې ونیولې او هلته مېشته شول، شیخ ملي هوښیار او جنګیالی او د قلم او توري خاوند مشر و، دده تقوی او پوهې شهرت درلود خپل اولس ته یې ښه خدمتونه وکړل، دوی یې د ځمکو په کرهنه بوخت کړل، ځمکې یې په عادلانه ډول ووېشلې

[1] تاریخ مرصع، تذکرة الابرار، حیات افغاني.
[2] پټه خزانه، ص ۲۱.

او د پښتنو په منځ کې د امنیت او اعتماد او تساند روح پیدا کړ. وایي چې دده اولاد تر اوسه هم په (میني) کې شته[1].

ظاهراً د یوسفزو نوم او د سکونت ځای د کونړ پر غاړو او باجوړ کې ډېر قدیم دی او داسې ښکاري، چې د سکندر د یرغل پر وخت هم دوی ددغه کونړ په سیمه کې د سکندر سره ډغرې وهلې دي: ځکه چې اریان ARRIAN یوناني مؤرخ د (۱۷۵م) حدود پخپل کتاب ANABASIS یعنې لشکر کشي EXPIDITION کې وایي:

((اسکندر دلته پخپله د لښکر قیادت په لاس کې واخیست او د اسپه زي ASPASII پر سیمه یې یرغل وکړ...)).

دی د EUASPLA رود پر غاړه چې د اسپزي د مشر ځای و پر مخ ولاړ... او هم په دغو جګړو کې زخمي شو[2]. دغه اسپزي د ستر ابو هیزي HIPPASII دي[3] او ځکه چې تر اوسه هم پخپله یوسفزي خانونه ایسب زي او اسب زي بولي؛ نو ښکاري چې دغه نوم او تلفظ ډېر قدیم دی؛ ځکه چې دغه دا یوه سپله رود چې آریان ذکر کړی دی، د یوناني جغرافیا والو لکه سترابولو او ارستو تل په قول KHOSPAS خواسپس و او ددې نوم لومړی توری KHO دغه د پښتو (خه) او د یوناني EV دی او دوهم جز یې (اسپه) ده، یعنې خه آس والا او دغه نوم د کونړ پر رود باندې تطبیق کېږي، چې هیرودټ KARUN راوړی دی[4].

نو ښایي، چې دغو اسپزو تر پینځمې مسیحي پېړۍ دمخه

---

[1] حیات افغاني، ص ۹۵.

[2] ځلورم فصل: ص ۲۳_۸۲.

[3] پنهان ص ۵۵.

[4] تاریخ هیرودټ ۱_۸۸ او ۴_۴۹.

په کندهاریو قبیلو کې قندهار ته هجرت کړی وي[1] او بیا بېرته د الغ بېګ په عصر کې د ننګرهار او پېښور سیمو ته تللي وي، چې ددې لېږدون تفصیل په تواریخ حافظ رحمت خاني کې راغلی دی[2] او د پېښور تاریخ لیکي چې شیخ ملي د خرښبون بن سړبن یوولسم لمسی او کاړی و[3].

## شیخ ملي د قاید او مقنن په توګه:

شیخ د لوی شخصیت او لوړې پوهې خاوند و، دده په ذات کې د قیادت لازمه صفتونه ټول یو ځای شوي وو، د تورې او قلم او وینا خاوند و، د خلکو ویسا او اعتماد یې پر ځان راوستلای شوای، په زهد او تقوی مشهور و، مؤرخان ډېر قصص او روایات لیکي، چې موږ د شیخ لوړ شخصیت ځنې معلوملای شو او یو څو دادي:

د شیخ او یوسفزو تر یون دمخه د پېښور په میرو کې دلازاک پراته وو، که څه هم په جنګ او توره یوسفزو ځمکې نیولی شوای؛ خو د شیخ شخصیت دونې لوړ و، چې دلازاک یې په خپله خوښه د یوسفزو کومک او ملګرۍ ته راوستلي وو. اخوند درویزه وایي: شیخ په دلازاکو کې هم په صلاح او دینداري مشهور و او خلکو یې احترام کاوه. یوه ورځ چا یوه حلاله کړې مرغۍ ورته راوړه، ده پوښتنه وکړه، چې دا دې چېرې نیولې ده؟

[1] د افغانستان نژادونه د پیلولیک ص ۲۲.

[2] د برتانیا موزیم خطي نسخه نمبر ۴۴۸۸ چې مولف یې پیر معظم شاه ولد پیر محمد خان د پېښور د پیر سباك دی او په ۱۱۸۱هـ کې لیکل شوی دی.

[3] تاریخ پشاور د هستنګز او ګوپالداس تالیف ص ۴۵۶ د لاهور طبعه.

هغه سړي وويل، چې: په هغه پلاني ځاى کې شيخ ويل دا زه نه خورم؛ ځکه چې د دغه ځاى وګړي په غلا او حرامو خوړلو او لاز نيولو مشهور دي، ښايي، چې دې چوغکې د دغو غلو او حرام خورو له لاسه دانه خوړلې وي!!!(۱).

شيخ د خپل قوم په سمولو او اصلاح کې کوښښ کاوه، په جګړو کې (يې) قيادت کاوه، په اولسي معاملاتو او شخړو کې د دوى حکم او قاضي و، يوسفزي او هغه نور قبايل، چې له دوى سره له کابل، لغمان او ننګرهاره تللي وو، د پېښور په علاقو او سوات کې خپاره شول او دغه ميرې يې ونيولې، دوى ټول د شيخ تر قيادت لاندې وو؛ نو شيخ د دوى لپاره د ځمکو يو "وېش" وکړ او ځينې د تقسيم قوانين يې وضع کړل، چې په هغو تر اوسه عمل کېږي او په قوم کې معتبر دي، اخوند درويزه هسې نقل کاندي، چې هر کله يوسفزو سوات ونيو؛ نو شيخ ملي چې د دوى مشر و، هسې مصلحت يې وکړ، چې د ټول اولس واړه، غټ، ښځې او نر وشمېري او په دغه ډول سره سوات دوى ته ووېشي؛ نو اکوزي د عيسى زيو سره شپږ زره شول. مندړ هم دوولس زره وخاته، ننګرهاري او لغماني او کابلي خلک چې د دوى سره يو ځاى راغلي وو، هم ورسره حساب شول او په دغه ډول يې وېش وکړ؛ خو پخپله د سوات خلک په دې وېش کې ګډ نه شول(۲).

شيخ د خپل اولس قيادت او مشرتوب په ملي او اولسي ډول کاوه، وايي چې د ځنکدن پر وخت يې د مجلس حاضران پر خپل احوال شاهدان کړل او ويې ويل: د اولس اداره او غم خواري چې

---

(۱) تذکرة الابرار.

(۲) تذکرة الابرار ص ۹۱.

ما کړې ده، خاص د خدای دپاره او د خپلوۍ او شفقت په لحاظ ده، نه دا چې د زمانې د رئیسانو غوندې مې له چا څخه پیسې خوړلې وي او د هغو لپاره مې کار کړی وي، هو یو درهم مې یاد دی چې په خپل عمر مې لاس ته راغلی دی؛ مګر هغه هم خدای حاضر دی چې په تمه او توقع سره زما لاس ته نه دی راغلی؛ نو که زه په دې وینا کې رښتینی او سم، له ښتنه امید لرم چې زما رسم او دستور او وېش به تر اوو پښتو پورې زما له اولس څخه ولاړ نه شي او که دروغجن اوسم خدای تعالی به یې ژر تر ژره ورک کاندي اخوند درویزه وایي: دغه وجه ده، چې تر اوسه پورې هېڅ سردار او مشر په دغه وېش کې تغییر نه شي کولای[1].

له دغو ټولو روایاتو څخه د شیخ لوړ شخصیت او اولسي وقعت او اعتبار او هم دده تقوی ښه ښکاري.



## د شیخ ملي دفتر:

شیخ ملي چې علاوه پر نورو صفاتو ادیب او لیکوال سړی هم و، د یوسفزو د یون او فتوحاتو احوال د پېښور او سوات په علاقو کې او ددغه اولس تاریخي وقایع یې په یوه کتاب کې وکښل چې دا کتاب د "شیخ ملي په دفتر" مشهور و. "دفتر" یوازې تاریخي خوا نه درلوده؛ بلکې د ځمکو د وېشلو کوم قوانین چې شیخ وضع کړي وو، هم پکې بیان شوي وو.

"دفتر" په یوسفزو او سوات کې ډېر متُداول کتاب و، تر یوولسمې هجري پېړۍ پورې لا هم دا کتاب هلته موجود و او

[1] د ښاغلي خادم لیک، کابل په کالنۍ کې ص ۳۴۵ د ۱۳۱۹ کال د تذکرة الابرار په حواله.

خلکو عمل پرې کاوه، لکه چې خوشحال خان خټك ددې کتاب شهرت ته داسې اشاره کوي:

په سوات کې دي دوه څيزه که جلي دي که خفي
"مخزن" د "درويزه" دی يا "دفتر د شيخ ملي"

د ناروې مشهور مستشرق مارګن سترن وايي، چې: راورټي (مشهور انګليسي پښتو پوهاند) کښلي دي، چې شيخ ملي خپل دفتر په (۱۴۱۷ع ـ ۸۲۰ هـ) وکښن او دا کتاب ما موندلی دی. د پښتو ژبې يو خورا قديم کتاب دی[۱]. محمد عبدالسلام خان هم د شيخ ملي د دفتر ذکر کوي او داسې ښکاري، چې ده به هم له راورټي څخه استفاده کړې وي[۲]. د شيخ ملي د "دفتر" نسخه اوس کميابه ده او موږ نه ده ليدلې. د خوشحال خان له اشارې څخه هم ښکاري، چې يوسفزو دا قانوني کتاب له ځانه سره "خفي" ساته، تقريباً سل کاله دمخه راورټي د هغه نسخه موندلې او ليدلې وه. يوسفزي تر اوسه هم خپل ارثي جايداد او ځمکې چې د شيخ ملي له وېشه دوی ته رسېدلې دي، "د شيخ دفتر" بولي او په سوات کې لاتر اوسه هم په غرنيو سيمو کې (د وتر) معتبر ګڼل کېږي او لکه چې ما پخپله د مردان له سپين ږيرو څخه اورېدلي دي، د شيخ ملي زرعي قوانين هم داسې مفيد ا مشهور و، چې شېرشاه سوري هم خپل زرعي اصلاحات د شيخ ملي د دفتر پر اساس ايښي وو.

"دفتر" د پښتو يو د نثر کتاب و، چې متاسفانه اوس يې کومه نمونه نشته؛ مګر د "دفتر" ځمکو وېشلو اصول لږ لږ معلوم دي او لکه يو ملي قانون د يوسفزو په منځ کې جاري او

[۱] د هند د زړو آثارو مجله ۱۹۳۹ع
[۲] نسب افاغنه، ص ۱۱۳.

معمول و، ددې قانون له امله دونې معلومات لرو، چې شیخ خمکې د یوسفزو او د دوی ملګرو اقوامو په منځ کې داسې ووېشلې، چې اول قوم او بیا ټپه او بیا دفتر و. تر دفتر کښته (برخه) او تر برخې لاندې پټې و، د پټې خاوندانو ته یې بخره خواره ویل، یوه برخه هم د خلکو او د کورنۍ د تعداد په اندازه پر څلرمه یا پینځمه یا شپږمه وېشله کېده؛ نو د دوی په اصطلاح ارثي جایداد "دفتر" و او د هر سړي "ونډه" معلومه وه. که به د چا اولاد ډېر و او ځمکه به لږ له پلاره ورپاتې شوه او ګوزاره به یې نه پرې کېدله؛ نو د کلي جرګې به له ورشو (چراګاه) څخه هم هغه ته برخه ورکوله. ځمکې وېشنه د جرګې کار و، دوی به په "پړي" د اوبو په محاذات ځمکه ونډه ونډه کړه او د عمومي ګټو لپاره به یې له هرې ونډې څخه د (سېرۍ) په نامه یو یو ټوکر بېل کړ، دا ځمکې د عمومي منافعو لپاره وقف وې او وروسته به نو د هیسک یعنې قرغې په ذریعه "ونډې" د خلکو لپاره وټاکلې شوې. دا وېش به پس له لسو یا دولسو کلو بیا نوې نوې کېده او د کلو د کورنیو د بالغو خلکو پر سرو به په لوړ ډول ځمکه وېشل کېده.

دغه وېش ته یې "بګړۍ ونډه" وایه او د هر سړي برخه چې به په هر نوي وېش کې ټاکل کېده "متې" **MUTI** یې بلله.

د هستوګنې ځایونه هم داسې وېشل کېده، چې هرې محلې ته به یې چم یا کندی وایه او هر چم پر کنډرو وېشل کېده، چې هر کنډر کوټه او غولی درلود، د هر چم یو مسجد او یو برج او یوه حجره سره مشترک وو. هرې کورنۍ یو کنډر درلود او دا کنډر یې له خپلې برخې ځمکې سره په تصرف کې و، که به چا خپله ځمکه خرڅوله؛ نو به دغه کنډر هم ورسره و.

د پېښور تاریخ چې تقریباً یو قرن دمخه لیکلی شوی دی، د شیخ ملي د دفتر او زرعي قوانینو شرح داسې کوي، چې لومړی پلا ټولې ځمکې پر شپږ تپې وېشلې کېدې: (۱) د یوسفزیو تپه، (۲) د محمدزو تپه، (۳) د ګګیانو تپه، (۴) د داودزو تپه، (۵) د خلیلو تپه، (۶) د مومندو تپه.

دغسې هم هر کلی په کنډر او هر کنډر پر ټل وېشل کېده او پس له لسو کالو به بیا دغه مځکې د هیسك (قرغه) پر اساس داسې وېشلې کېدې، چې یو لرګی ۵ فټه دوه انچه اوږد به یې پرې کاوه او په دغه به یې ځمکې د سړو پر سر وېشلې. نرو، ښځو اولادو ته برخې ورکولې کېدې او علاوه پر دغو شپږو اساسي تپو ځینې فرعي تپې هم وې او هر ځای د برخو اندازه معلومه وه او که به چا اولاد نه درلود؛ مګر د ښځې خاوند به و، هغه ته به د آینده پیدا کېدونکي اولاد برخه بېله ورکوله کېده.

کوم وخت چې به پس له لسو کالو ځمکې تبدیلېدې؛ نو به یو پوخ بدل و، چې بیا تر معینه وخته نه اوښتې؛ مګر بل خام بدل هم و، چې ژر تبدیلېدلای شوای او د شیخ ملي تر وېش وروسته چې کومې ځمکې آبادې شوې وې، هغه یې "باندړه" بلله[1].

په دې ډول د شیخ ملي زرعي سیستم داسې و، چې پس له لسو کالو به ټوله ځمکه بیا د ټول اولس ملکیت و او نوی وېش به په عادلانه ډول د کورنیو د نوو ضروریاتو سره کېده او اجتماعي تعادل به قایم و او په پښتنو کې به لوی لوی ملاکان نه پیدا کېدل او هر سړی به په خپله برخه قانع و.

په ۱۸۶۹م کال چې د پرنګیانو استعمار بریمن شو؛ نو دوی دغه قدیم تنظیم وران کړ او هر چاته یې د نوي بندوبست مطابق

---

[1] د پېښور تاریخ تر ۴۰۶_۴۳۳ وروسته.

د مالکیت حق ورکړ، چې وروسته نو په دغه سیمه کې لوی لوی زمینداران او د پټي خاوندان او نوابان پیدا شول او عام پښتانه فقط د بزګرانو او دهګانانو په ډول پاتې شول.

که موږ په غور د شیخ ملي دغه اصول او مفید قوانین وګورو؛ نو به رانښکاره شي، چې د پښتنو دغه مصلح او مقنن شپږ پېړۍ دمخه، د اجتماعي عدالت او سوشل ریفارم اساسونه ایښي وو او شیخ ملي حقیقتاً یو سوشل ریفارمر (اجتماعي مصلح) و.

## د شیخ ملي مدفن:

د شیخ ملي په نامه ډېر نور پښتانه هم بلل شوي دي او د هغو قبرونه د شیخ ملي په نامه مشهور دي، مثلاً یو قبر د کوم بل شیخ ملي په نامه د تیرا په باړې کې شته؛ مګر تحقیق خو دادی، چې د دغه مشهور مصلح او پېشوا قبر اوس هم په کښته سوات کې د ملك احمد آرامګاه ته نژدې شته، د الله ډنډ کلي ته نژدې د احمد مزار دی؛ مګر د شیخ ملي مزار په غوربندي کې دی، چې خلك يې پېژني او زیارت ته يې ورځي[1].

# (۷) د زرغون خان دیوان

## (۸۹۰ هـ)

د منځنیو په دوره کې دا کتاب د پښتو ژبې یو غوره ادبي اثر دی، چې دمخه مو د اتم څپرکي په (۷) نمبر کې دروښو، دا کتاب (۳۰۰) پاڼې و او په (۹۱۲ هـ) په کجران کې لیدل شوی و[2].

---

[1] داولف کېرو پټهان، ص ۱۸۳.

[2] په ۸ څپرکي کې د زرغون خان احوال وګورئ.

# (۸) کجو خان رانيزى

د پښتنو د تاريخ ليکوال (۹۰۰ هـ)

مارګن ستيرن مستشرق ليکي، چې: راورټي د پښتو ډکشنرۍ په مقدمه کې کښلي دي، چې له ده څخه د خان کجو رانيزي يو پښتو تاريخ شته چې په هغه کې د پښتنو تاريخي حوادث او وقايع ليکلي دي.

ددې تاريخي کتاب د ليکنې وخت راورټي (۱۴۹۴م ـ ۹۰۰هـ) ښوولی دی[1] خو داسې ښکاري چې خان کجو د شيخ ملي تر عصر وروسته د پښتنو مشر و، تر اوسه ددې کتاب په خصوص کې نور څه معلومات نه لرو؛ خو دونې ويلای شو، چې په سوات او اطرافو کې له يوسفزو څخه يو قوم تر اوسه ((رانيزي)) پراته دي. د حيات خان په قول تر اوسه له دغو يوسفزو څخه درې کورنۍ مشهورې وې، چې يوه له دغو درو څخه ازي خېل دي، چې ازي د علي زوی او علي بن رانی بن اکوبن يوسف دی. د ازي خېلو دغه مشهوره کورنۍ (کجو کور) بولي چې پخوا د دوی نفوذ او اقتدار خورا ارت و؛ مګر اوس په پاسني سوات کې شپږ زره کوره په دوی اړه لري، چې د (۱۲۸۰ هـ) په شاوخوا کې ددغې کورنۍ مشر صحبت خان نومېده او بل ځای حيات خان وايي، چې خان کجو د شېرشاه معاصر و[2] چې دغه خبره هم صحيحه ښکاري؛ نو دغه مشهور کاجو يا کجو خان د پښتنو يو خورا نوميالی مشر و، چې لکه شيخ ملي د علم خښتن هم و او ده يو تاريخي کتاب

---

[1] د هند د زړو آثارو مجله، ۵۶۶ ص ج ۱۱.

[2] حيات افغاني ۱۷۴ص ـ ۱۹۰.

راورټي ليدلي او موندلي و، چې اوس متاسفانه ورك دي او ښايي چې د بريتانيا په موزيمو كې پيدا شي؛ ځكه چې د راورټي ټول كړي كتابونه تر ده وروسته نه دي ضايع شوي او اكثر د لندن په موزيمو كې خوندي دي وايي چې خان كجو په خپل عصر كې تر ټولو لوی او مقتدر او غښتلی ملك و او هغه جنګ چې په شيخ تپور (زاړه نوښار) كې واقع شوی و، خان كجو يې قايد و او په پښتنو كې تر شيخ ملي او شيخ احمد وروسته خان كجو ډېر شهرت پيدا كړی و[1].

كه څه هم د خان كجو كتاب موږ نه دی ليدلی؛ خو دونې ويلای شو چې دا كتاب به د شيخ ملي د "دفتر" په ډول يو تاريخي او قانوني كتاب و، چې د خان كجو له خوا د "دفتر" د تكميل لپاره ليكل شوی او د پښتو ژبې يو تاريخي او قانوني منشور اثر و.



خان كجو د ټولو خښي، محمدزيو، اتمان خېلو، ګدون او تركلاڼو قبايلو مشر و او د شيخ تپور په جنګ كې يو لك زلمي له دغو قبيلو څخه په (۹۵۷ هـ) كمال حاضر كړي وو او تر دې دمخه په (۹۲۳ هـ) كال دوی باجوړ او د يوسفزو اوسنۍ سيمه ټوله نيولې وه او دلازاك يې له دغو سيمو څخه ايستلي او د شيخ ملي قوانين يې د ځمكو په وېش كې جاري كړي وو[2].

د خان كجو آرامګاه تر اوسه هم د سوابۍ او مردان تر منځ پر يوه لويه غونډۍ چې په سرميره كې پرته ده او كجو غونډۍ يې بولي د شاه منصور څخه شپږ ميله لېرې واقع ده او خلك يې اوس ګجو خان بابا يا ګجوان تلفظ كوي او دا د يوسفزو د

---

[1] حيات افغاني، ص ۱۸۲.

[2] د سراولف كېرو پټهان تر ۱۸۶ ص وروسته.

سيمې ډېر مشهور زيارتګاه ګڼل کېږي. وايي چې د ګجو خان کورنۍ د بېزاد خېلو له فرعي قبيلې څخه وه او دده اولاد تر اوسه هم په کلابټ کې شته او د پلار نوم يې قره خان و[1].

د ګجو خان يا کجو خان په وخت چې کوم جنګونه د پښتنو قبايلو په منځ کې شوي دي، دا ښکاره کوي، چې د شيخ ملي مسالمت آميز تحريك او روغې او سمې ډغ خاموش شوی او د يوسفزو او دلزاکو او غوريا خېلو تر منځ د روغې او مينې پر ځای جګړې لوېدلې وې.

دلته نو موږ د شيخ ملي مؤثر او مصلح شخصيت، د خان کجو له يوازې حربي او خاني شخصيت څخه بېلولای شوای.

## (۹) بابړ خان



د ((تذکره غرغښت)) ليکوال د (۹۰۰ هـ) حدود د ږوب اوسېدونکی او په قوم کاکړ و، دده زوی دوست محمد ليکلي دي، چې: ((بابړ خان يو کتاب په شعر کښلی و، چې نوم يې ((تذکره غرغښت)) و، هغه وخت چې بابړخان وفات شو؛ نو هغه کتاب ورك شوی و او چا ضايع کړی)) وروسته ددغه کتاب مضامين چې هر څه وو، د دوست محمد په ياد وو، هغه يې بيا په بېل کتاب کې سره راټول او نظم کړل[2] چې لاندې به ذکر شي. پرته له دغو لنډو معلوماتو نور څه د بابړخان او دده د کتاب په خصوص کې اوس نه لرو.

[1] يوسفزي افغان د الله بخش يوسفي تاليف ۳۲۶ ص د کراچۍ طبع ۱۹۶۰.
[2] پټه خزانه، ۸۷_۸۸ ص.

## (۱۰) د زرغوني بوستان

(۹۰۳ هـ)

لکه په (۸) څپرکي کې (۲۱) نمبر کې چې وویل شوه؛ زرغونې نومې پښتنې مېرمنې د شیخ سعدي بوستان پښتو کړی دی، شرح او تفصیل یې په هغه څپرکي کې ولولئ.

## (۱۱) د رابعې دیوان

(۹۲۰ هـ) حدود

ددې عصر له پښتو کتابو څخه یو د رابعې مېرمنې دیوان دی، چې شرح یې د (۸) څپرکي په (۲۲) نمبر کې تېره شوه، هلته رجوع وکړئ.



## (۱۲) د دوست محمد غرغښت نامه

(۹۲۹ هـ)

لکه د (۸) څپرکي په (۲۳) نمبر کې چې تېره شوه ((غرغښت نامه)) هم د پښتو ژبې د لسمې پېړۍ له اخلاقي ښو کتابو څخه و. د شرحې لپاره نوموړي څپرکي ته رجوع وکړئ.

## (۱۳) د نېکبختې (ارشاد الفقراء)

(۹۶۹ هـ)

دا هم د پښتو ژبې یو اخلاقي او د موعظې منظوم کتاب و، چې د نېکبختې مېرمنې له خوا په (۹۶۹ هـ) نظم شوی و او شرح یې په (۸) څپرکي نمبر (۲۷) کې وګورئ.

(۱۴)

# شیخ قاسم د (تذکرهٔ اولیاء) لیکوال

د (۹۹۰ هـ) حدود

په دې کتاب کې تاسې ته ښکاره شوه، چې د پښتو د علم، عرفان او ادب یو روڼ ستوری شیخ متي خلیل غوریاخېل دی، چې دده کورنۍ (متې زي) بولي او په متي زو کې ډېر عارفان او ادیبان او مؤلفان تېر شوي دي.

له دې کورنۍ څخه یو معروف مؤرخ او لیکوال شیخ کته دی چې د شیخ له نسله یو بل خورا معروف عارف او لیکوال شیخ قاسم پیدا شوی دی، په دې ډول قاسم د شیخ قدم زوی، د محمد زاهد لمسی، د میرداد کړوسی او د شیخ سلطان کوسی و چې دغه سلطان د مرحوم شیخ کته له زامنو څخه و[1].

د شیخ قاسم مور ((نېکبختـه)) نومېده، چې د پښتو شاعره او عارفه ښځه وه. دا په (۹۵۱ هـ) کې شیخ قدم متي زي ته وروادہ شوه او په (۹۵۶ هـ) یې شیخ قاسم وزېږاوه، دا شیخ لکه خپل پلار او نیکه په علم او عرفان او ادب کې یو روڼ ستوری شو، چې وُروسته یې د اسلافو نوم او د خپلې کورنۍ روایات ښه وساتل.

نعمت الله لیکي، چې شیخ قاسم په پسرلي د بُډنۍ رود پر غاړه (د پېښور مشرق ته) په (۹۵۶ هـ) زوکړی[2] او په هغو لتو کې د خپل نبوغ بیرغ پورته کړی و.

[1] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۶.

[2] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۷.

شیخ قاسم د خپلې کورنۍ په علمي او روحاني چاپېر کې ښه وروزه شو، په معرفت او روحانیت مشهور شو او ډېر کلک نفوذ يې وموند. د میرزا محمد حکیم گورگاني بن همایون مامورین ځنې وبېرېده او ویې غوښتل چې دا پښتون عالم او عارف مړ کړي، شادمان خان هغه وخت د پېښور حکمران و او د شیخ قاسم د وژلو نیت يې وکړ، شیخ مجبور شو له پېښوره قندهار ته ولاړ او له دې ځایه د حرمینو په زیارت مشرف شو او په قادریه طریقه کې يې لاس نیوی وکړ. تر دې سفر وروسته بېرته د پېښور دواوې ته راغی او خپل علمي او روحاني اقتدار يې ټینګ کړ او په شیخ قاسم سلیماني مشهور شو.

د مغولو پاچاهانو بیا دا شیخ نه پرېښود، د عیسی نومي په چوغلۍ اکبر پاچا دی لاهور ته وغوښت؛ خو شیخ قاسم په لاهور کې تر پېښور لازیات نفوذ وموند: نو جهانګیر دی د ((چنارګړ)) په کلاکې بندي کړ او هم هورې ددغه پاچا په ظلم کې په (۱۰۱۶ هـ) تر دنیا تېر شو او مزار يې تر اوسه هم هورې مشهور دی[۱].

شیخ قاسم علاوه پر خپلو لوړو عرفاني مراتبو د ادب او لیك خاوند هم دی؛ لکه شیخ کته مؤرخ سړی هم و او د پښتنو روحانیونو او عرفاني خلکو او صوفیانو او ولیانو په احوال کې یوه (تذکرة الاولیاء) لیکلې وه[۲].

دا کتاب متاسفانه اوس ورك دی او کومه نسخه يې نه ده لیدلې شوې او فقط دونې راته معلومه ده، چې شیخ قاسم د پښتنو مؤرخ او لیکوال او د خپل عصر معروف او مقتدر او

---

[۱] مخزن افغاني او تذکرة الابرار.

[۲] تذکرة الابرار ۱۸۳_۱۸۴ ص.

متنفذ عارف او زاهد و.

شيخ قاسم ډېر مشهور او عارفان زامن پرېښوول چې تر ده وروسته يې د علم او عرفان مشال بل وساته چې له هغه څخه دا ډېر شهرت لري:

شيخ كبير المشهور په بالاپير چې خورا مشهور عارف و، د پنجشنبې په ماخستن د شوال په (۱۴) (۹۹۴ هـ) د پېښور په بډنې كې زېږېدلى او د روژې په (۱۲) په (۱۰۵۴ هـ) كال وفات شوى او هديره يې د هندوستان په قنوج كې ده[۱].

نور زامن يې شيخ واصل (متولد ۱۰۰۷ هـ) او نور (متوفى ۱۰۶۱ هـ) او فريد (متولد ۱۰۰۰ هـ) دي[۲] وايي چې د شيخ قاسم سليماني اولاده تر اوسه هم د جالندهر د متهو صاحب په كلي كې شته او هلته يوه افغاني غونډې كلا لري[۳].



(۱۵)

## شيخ بوستان بړيڅ

### د ((بستان الاولياء)) ليكوال (۹۹۸ هـ)

دا عارف او اديب هم له پښتنو ليكونكو څخه دى چې ددغه احوال او اشعار دمخه د (۸) څپركي په (۲۵) نمبر كې ذكر شول، ده د اولياوو په احوال كې يو كتاب په (۹۹۸ هـ) كښلى و، چې ((بستان الاولياء)) نومېده او شرح يې دمخه تېره شوه.

---

[۱] تذكرة الابرار، مخزن، د ميا نعيم متې زي د ديوان مقدمه.

[۲] مخزن ۳۸ ص.

[۳] جريده سيف لاهور ۲۸_ اګست ۱۹۵۲.

(۱۶)

# د الله يار "تحفه صالح"

الله يار د شيخ صالح الکوزي معاصر و، د قندهار په حدودو کې اوسېدی، د ژوندانه زمانه يې تر (۱۰۰۰ هـ) دمخه ده، دی د شيخ صالح مخلص او مريد و، د خپل استاد په نامه يې يو کتاب وکښن، چې نوم يې ((تحفه صالح)) و، په دې کتاب کې ده د خپل استاد شيخ صالح د ژوندانه احوال او دده اقوال او اشعار سره راټول کړي وو او د نورو پښتنو شاعرانو او مشاهيرو احوال هم پکې وو، دا کتاب موږ ته نه دی رارسېدلی؛ خو د پټې خزانې د مؤلف مأخذ دی او محمد له تحفه صالح څخه د شيخ محمد صالح او علي سرور لودي احوال او اشعار پخپله په پټه خزانه کې رانقل کړي دي[1].

الله يار د پښتو ژبې د متوسطينو له ډلې څخه يو ليکوال او مؤرخ او متصوف سړی دی؛ ځکه چې دده استاد په قوم الکوزی و او د قندهار په جلدك کې اوسېده؛ نو لېرې نه ده، چې د الله يار قوم او مسکن هم دغه وي.

(ددې مبحث د تکمل لپاره د شيخ صالح احوال په (۹) څپرکي (۲۸) عنوان او د علي سرور احوال په (۲۶) عنوان کې ولولئ).



[1] پټه خزانه، ۹۹-۱۰۱ ص.

# یوولسم څپرکی

## پیر روښان او د هغه د نثر مکتب

## د پښتو فني نثر

### ۱ــ تېرې دورې ته کتنه او د نثر تحول:



په (۹) څپرکي کې تاسې د پښتو د نثر او نثر لیکونکو لنډه تاریخچه ولوسته، چې تر (۶۰۰ هـ) راوروسته د پښتو نثر څنګه و؟ او کومې د نثر نمونې چې له سلیمان ماکو څخه پاتې دي، څه خواص او مزایا او څنګه ادبي ښېګړې یا عیوب لري؟

څکه چې بې له سلیمان ماکو د بل چا نثر تر اوسه موږ ته نه دی رارسېدلی؛ نو موږ دلته له (۶۰۰ هـ) تر (۹۰۰ هـ) پورې د نثر دوره د ((سلیمان ماکو)) په مکتب یادوو او دا هغه دوره ده، چې د پښتو نثر پر طبیعي لاره روان و او هم ساده او غیر مصنوع ګڼل کېږي.

د "سلیمان ماکو" ادبي مکتب د پښتو د نثر په تاریخ کې لومړنی مکشوف حرکت دی؛ څکه چې تر دغه دمخه بل کوم اثر تر اوسه لاس ته نه دی راغلی؛ نو اوس موږ د دغه د پښتو لومړني د نثر ادبي مکتب ګڼو او تر دې وروسته د (۹۰۰ هـ) په حدودو کې د پښتو نثر تحول کوي او یو فني او مصنوع رنګ

مومي، چې دغه ته موږ ((فني نثر)) وایو او د دې سبك د مؤسس په نامه یې د "پیرروښان" مکتب بولو.

## ۲_ فني نثر څنګه دی او ولې پیدا کېږي؟

یو کلام او یوه وینا که نظم وي که نثر، تل دوې برخې لري او له دوو عنصرو څخه جوړېږي، چې یو لفظ او بل یې معنا ده.

د ژبو په طبیعي ویناوو کې تل معنا په ساده او بسیطو الفاظو ادا کېږي او دې ته مرسل او طبیعي نثر وایو. یعنې په وینا کې تل د ویونکي یا لیکونکي دا مقصد وي، چې مافی الضمیر او معنا په الفاظو سره تصویر کړي او د دغو الفاظو تزئین او اوډلو ته یې توجه نه وي. دا نو موږ د ژبې اصلي او طبیعي وینا ګڼو او په ټولو ژبو کې هم دغسې وینا دمخه ده. هر څوك په ساده او ناپېچلو الفاظو خپله معنا ادا کوي.

اما که د معنا په ادا کولو کې الفاظو ته هم ډېره توجه وشي، یعنې د الفاظو د اوډلو او اسلوب، جمال، د معنا پر کمال غالب وي، یا دا چې د لفظ رونق او ښکلا د معنا له جماله سره ساری وي، دې ته نو ((فني نثر)) وایي.

په ژبو کې چې لومړی پلا نثر لیکنه رواج مومي؛ ځکه چې د لیکوال هدف دا وي، چې معنا اداء او ښه ښکاره کړي؛ نو دونې د الفاظو اوډلو ته نه ګوري؛ بلکې د معنا مختلف انواع او اقسام په ساده او سپېڅلو الفاظو تصویر کوي؛ مګر هر څونې چې د نثر لیکل ډېرېږي، ورو ورو او په تدریج د لفظ تناسب ورسره پخېږي او په وصفي او نقلي نوشتو کې لیکونکی دې ته میل کوي، چې الفاظ هم مرتب او سره اوډلي او ښکلي وي او د "صنعت" په ګڼه ښایسته شوي وي.

دغه کیفیت ورو ورو ډېرېږي؛ لکه معنا چې تل د ځان لپاره الفاظ مومي او د ځان تابع کوي یې، دغسې هم چې لفظ ته توجه ډېره شي؛ نو کله کله لفظ هسې غلبه ومومي، چې "معنا" هم په ځان پسې بیایي.

په "فني نثر" کې تل لیکوال دا سعی کوي، چې خپل الفاظ هسې ډول اوډلي او مرتب او یو له بله سره متناسب ولیکي، چې سجع ولري او د "فني نثر" اصطلاح هم له عربي ادبه راغلې ده. عربو چې کوم نثر د جاهلیت په دوره کې درلود او بیا د اسلام په ابتداء کې د دوی نثر ساده او طبیعي و، دوی له مسجعاتو څخه ځانونه ژغورل او نثر یې ساده او مرسل و. حشو او مترادفات یې نه درلودل، لنډې لنډې خبرې به یې کولې او د وینا اسلوب پر دې ادبي اساس بنا و چې ((ډېر مقصدونه په لږو خبرو کې ځای که))[1].

وایي چې عمار یاسر یوه ورځ ډېره لنډه وینا وکړه، چا ورته وویل که دې وینا اوږده کړې وای ښه به و، عمار وویل: ((امرنا رسول الله صلی الله علیه وسلم باطالة الصلوة و قصر الخطبه))[2].

له دغو ټولو روایاتو څخه ښکاري، چې د اسلام په ابتداء کې د نثر وینا ساده او لنډه او بې له حشویاتو او مترادفاتو وه؛ مګر چې د عربو لیکوال په دوهمه هجري پېړۍ کې د نورو ملتو په کتابو او نوشتو روږد شول او د هند، فارس، یونان کتب یې وکتل؛ نو ورو ورو د عربي په نثر کې له سادګۍ او بساطت څخه د تکلف او لفاظۍ او صنعت خوا ته ولاړه، یعنې معاني یې

(۱) ادب الکاتب د ابن قتیبه، ۱۶_۱۷ ص.
(۲) البان والتبیین، ج ۱_ ۲۰۱ ص.

د الفاظو تابع کړل او الفاظو پر معناوو او مقصدو غلبه ومونده. ليکوالو کوښښ کاوه، چې د عربو شاعرانو له اشعارو څخه ځيني سجعي او اوږدلي الفاظ پخپلو نثرو کې راولي. يو عربي نقاد د سعيد حميد په خصوص کې وايي: ((که دده ويناوې خپلو خپلوانو او اصلي مرجع ته ولاړې شي؛ نو به څه نه شي ورپاتې"[1] يعنې ده پخپلو ويناوو کې د نورو شاعرانو مسّجع کلمات دونې ګډ کړي دي، چې خپل هيڅ نه لري.

په دې ډول د سجع او تکرار او موازنې اثر د عربو پر نثر لوېدلی دی او په دريمه هجري پېړۍ کې کله کله مسجع کلمات او مترادف الفاظ د عربو په نثر کې ليدل کېږي او په پوره ډول د هجرت څلورمه پېړۍ د ((فني نثر)) او ((ادبي صنعت)) وخت بلل کېږي. پوهان وايي، چې: د عربو په نثر کې صنعت او سجع په څلورمه پېړۍ کې پوره رواج شوه او ددې عصر مشهور ليکوال او د فني نثر يو معروف موسس عبدالحميد بن يحيی دی، چې د اموي آخر خليفه مروان حمار معاصر و، د (۱۳۰ هـ) حدود[2].

محققانو پلټنه کړې ده، چې د آريايانو قديم کتابونه لکه ويدا او اوستا او بيا د پهلوي کتب اکثر په يو صنعتي رنګ نوشته شوي وو او د عبدالحميد کاتب مشهور ((فني مکتب)) هم په عربي ادب کې تر آريايي اثر لاندې جوړ شوی و، جهشياري وايي، چې: هشام عبدالملك خپل ليکوال (روح بن زنباع) داسې ستايه، چې: دده ليك پارسي اسلوب لري او ابو هلال عسکري په ښکاره وايي: د عبدالحميد کاتب ادبي مکتب

---

[1] د ابن نديم الفهرست، ۱۷۹ ص.
[2] سبك شناسي، ج ۲، ۲۳۸ ص.

د پهلوي ادب اغېزې منلې دي[1].

ځکه چې دغه فني رنګ په آريايي پخواني نثر کې هم موجود و؛ نو هغه وخت چې پارسي نثر د سامانيانو او غزنويانو په دورو کې د خپل بساطت او سادګۍ دوره طی کړه؛ نو خورا په آسانۍ يې فني ډول قبول کړ، که څه هم د پارسي لومړي ليکوال لکه بلعمي او بيهقي او نور په فني نثر بلد نه وو او لکه دمخه چې مې وويل، د ټولو ژبو په ډول د دوی نثر ساده او طبيعي او له سجعو او تکلفاتو څخه تش و؛ خو بيا هم ژر تر ژره د آريايي ادب او د عربي د ((فني نثر)) په تقليد، پارسي ليکوالو سجع او موازنې ته ميل وکړ؛ نو په دغو وختو کې خواجه عبدالله انصاري ډېر مسجع مناجاتونه او ملفوظات په هروي لهجه وويل او بيا قاضي حميدالدين بلخي د بديع الزمان او حريري د مقاماتو پيروي په مصنوع نثر وکړه. دغسې نصرالله غزنوي وزير کليله ودمنه وليکله او نورو معروفو ليکوالو ((فني نثر)) ته ډېره ترقي ورکړه او ددې ((ادبي مکتب)) پيروان په پارسي ادب کې تر (۵۰۰ هـ) راوروسته خورا ډېر دي او ډېر تاريخي او علمي او ادبي کتابونه په دغه ډول کښل شوي دي[2].

## ۳ـ په پښتو کې د فني نثر پيدا کېده:

د غزنويانو له عصره عربي اسلامي علومو په منځنۍ ايشيا کې يو ښکاره نهضت کړی دی، چې خراسان هم ددغه حرکت مرکز و، شاوخوا ته هم په بخارا، پارس او هند کې د عربي علومو مدارس زيات وو؛ مګر مرو، هرات، رخج، غزنه،

[1] د آموزش او پرورش مجله، د کتاب الوزراء والصناعتين په حواله.

[2] سبك شناسي، ج ۲.

بامیان، طخارستان، بلخ، جوزجانان او د خراسان نوري ځمکې د مدرسو، کتابخانو ځخه ډکې وې او ډېر مشهور علماء په دغو ښارو کې اوسېدل، چې دوی اسلامي ثقافت او عربي علوم لکه تفسیر، حدیث، فقه، ادبیات او فلسفه په عربي ژبه خپرول، بو ریحان بو علي سینا، فخر رازي، سعد تفتازاني و جامي د دغه محفل ځراغان دي.

مخصوصاً له ۶۰۰ هجري را په دېخوا دوه درې قرنه پښتانه د خراسان او پښتونخوا په ښارو او رغو کې خپاره شول، دوی له هغو خلکو سره تماس ومونند، چې په پارسي او عربي کې به ادیبان او عالمان وو، له هراته تر پېښوره د پښتنو مهاجرتونه او د ښاروالتوب یعنې تمدن حرکات شروع شول.

په دغو اوقاتو او دغو ظروفو کې طبعاً د پارسي او عربي ژبې د بیان او لیك طرز دوی ولید او پوهان او لیکوال یې له خپلو ګاونډیو پوهانو سره چې په پارسي او عربي ژبو به یې څه لیکل محشور شول.



دې امتزاج او ګډون د دوی پر ټولو اجتماعي حالاتو اثر وکړ او د ګاونډیو خلکو له ثقافت او پوهنې سره اشنا شول. د غزني لویه شاهنشاهي، د غوریانو ارت سلطنت او د تیموریانو علم او صنعت پالنه دوی پخپله پښتونخوا کې ولیدل، د پښتونخوا لمرخاته ته هم د اباسین پر هاخوا د خلجیانو (غلجیانو) پښتنو او لودیانو او سوریانو سلطنتونه وو، چې دوی ټول پښتانه وو او پښتنو له دوی سره تګ راتګ درلود او د هندوستان لویه ځمکه د دوی جولانګاه وه، هلته هم اسلامي او عربي علومو او پارسي ژبې په هند کې نشو و نما وکړه.

دغه ټول طبیعي عوامل وو، چې د پښتنو پر ثقافتي ژوندون

يې اثر كاوه او ځكه چې په دغو دورو كې هم په عربي، هم په پارسي ژبو كې ((فني نثر)) ډېر رواج درلود؛ نو پښتنو هم وغوښتل، چې په خپله ژبه كې د ((فني نثر)) په ډول كتب او آثار ومومي او هغه خوږ او روان نثر چې د ۶۰۰ هـ په حدودو كې موجود و، د عربي او پارسي ژبې د ((فني نثر)) په ډول كاندي.

اساساً دا حركت يو طبيعي او د ژبې لپاره ميمون او محمود حركت نه و؛ ځكه چې د پارسي ژبې پخواني روان او سليس نثر هم په دغه فني حركت كې كرغېړن شوى و، د بيهقي او منهاج سراج خواږه او روان نثرونه چې لكه قند داسې شېرين وو او د (۴۰۰_ ۶۰۰ هـ) د پارسي نثر ښې نمونې دي، يا د سعدي شېرازي د گلستان ښكلى نثر په هم هغه شېراز كې د تاريخ اوصاف (۷۰۲ هـ) په كرغېړن او درانه او مكروه نثر بدل شو او په هند كې تر ۶۰۰ هـ راوروسته منهاج سراج په دهلي كې طبقات ناصري غوندې خوږ او روڼ او سليس نثر وكېښ خو هم په دغه وخت كې حسن نظامي خپل تاج الماثر (۶۰۲ هـ) او بيا خواجه محمود گاوان (۸۱۳_۸۸۶ هـ) د بهمني شاهانو وزير او منشي رياض الانشاء په داسې ناوړه او ثقيله انشاء په پارسي وليكل چې ويل يې گران دي.

پښتو ژبه د هند او ايران تر منځ محصوره وه او له هرې خوا ادبي حركاتو اثر پر كاوه، تر (۶۱۲ هـ) پورې چې سليمان ماكو خپله تذكره ليكله، د پښتو نثر لكه د پارسي ژبې پخوانى نثر خوږ روان سليس و؛ مگر وروسته چې ((فنيْ نثر)) پر پارسي په ايران او هند كې مستولي شو؛ نو د پښتنو نثر هم تر دغه اثر لاندې راغى او په پښتونخوا كې پير روښان، بايزيد انصاري د پښتو ژبې د ((فني نثر)) عَلَم پورته كړ.

لاندې به زه د پارسي ژبې د روان نثر او بیا د فني ثقیل نثر نمونې راوړم چې دغه فرق ښاغلو لوستونکو ته ښه څرګند شي، وروسته به نو د پښتو خوا ته هڅه وکړم:

## د پښتونخوا لمر لویده ته په ایران کې:

**شیراز**: د شیخ سعدي روان نثر (۶۵۶ هـ) بر بالین تربت یحیی پیغامبر علي السلام معتکف بودم در جامع دمشق که یکی از ملوک عرب که به بی انصافی منسوب بود اتفاقاً بزیارت آمد و ناز و دعا کرد و حاجت خواست... آنگاه مرا گفت: از آنجا که همت درویشانست و صدق معاملت ایشان خاطری همراه من کنید که از دشمن صعب اندیشناکم گفتمش: بر رعیت ضعیف رحمت کن تا از دشمن قوی زحمت نه بینی![1]

**شیراز**: د وصاف الحضرت عبدالله شیرازی ثقیل نثر (۷۰۲ هـ) غازان خواست که تتمیم اسا سعدلی را که ممهد فرموده و ارشاد طریقه تقویت اسلام که مدت سلطنت خود را مصروف آن ساخته بود آیندگان را نصیحتی و تذکیری واجب دارد و هدیت وصیتی اززانی فرمایند... فرمود: ما را محقق است بنور یقین و دیدهٔ حقیقت بین، که ازین مرحلهٔ فانی بمنزل باقی و مصاحبت حور عین نقل خواهم کرد و ازین غار مردم خوار بجوار ملک جبار پیوست، همگی همت و قصوای امنیت آن بوده که چند روزی که مقالید ملک مجازی در دست ما نهاده اند و حوالت تمشیت عالمیان بمافرموده هر چه نه صفت و عدل داشته باشد که نظام عالم بی این دود عامه قایم نیست در حوالی خاطر راه ندهیم[2].

[1] ګلستان، ۱۹ ص.
[2] تاریخ وصاف ۴۵۷.

## د پښتونخوا لمر خاته ته په هندکې:

**دهلـــي**: منهـاج سـراج روان نثـر (۶۵۸ هــ) بدانکـه چـون امیرالمـؤمنین مـامون بمـرو آمـد و کفایـت و شـهامت پسـران اسـد سـامان بدیـد، در بـاب ایشـان عاطفـت وافـر فرمـود و ایشـانرا بـزرگ گردانیـد و درجهٔ ایشـان بلنـد کـرد، و چـون امیـر المـؤمنین مـامون مراجعـت فرمـود، غسـان بـن عبـاد را امیـری خراسـان داد و بـلاد خراسـان از مـاوراء النهـر بامـارت او اضـافت کـرد، غسـان بـن عبـاد هـر یـک را از اولاد اسـد امیـری ولایـت داد، و شـهر هـا بدیشان تسلیم کرد...[1].

**جنـوبی هنـد**: د محمـد ګـاوان مغلـق نثـر مولانـا جـامي تـه د (۸۸۰ هـ) حـدود: ایـن مکتـوب محبـت مسـطر و ملفـوظ اخـلاص مُصَدَّر از دارالحـرب سنګبسـر محـرر و مقـرر ګشـت، همـت قضـا اثـر خورشـید نظـر، رقیـق ایـن سـفر ګرداننـد تـا ایـن اراضـي کـه از زمـان ماضـي الـی هذالعهـد بـه کواکـب هـدایت مناقـب اهـل اسـلام منـور نګشـته اسـت و ارتفـاع قـلاع فلـک شـکوه و اعتقـاع اربـاع بیشـه و کـوهش، مسـیر اقـدام هـم اعـاظم سـلاطین و ممـر مواکـب کواکـب ایـین بادشـاهان ذیـن نیامـده... بـا بسـر وجـوه مسـخر ګردد...[2].

دا وې د پښتونخـوا پـه شـرق او غـرب کـې د پارسـي ژبـې د ((فنـي نثـر)) نمـونې او دا ځنـې ښکـاري چـې لـه (۷۰۰ څخـه تـر ۹۰۰ هـ) پـورې د پارسـي نثـر څنګـه مغلـق او درونـد شـوی دی؟ او د ایجـاز پـر ځـای اطنـاب، د سلاسـت پـر ځـای اغـلاق، د سـادګۍ او وضاحت پر ځای نقل او تکلف، په نثر کې لیدل کېږي.

---

[1] طبقات ناصري، ج ۱، ۲۴۲ ص ګوییتي طبع.

[2] ریاض الانشاء ۱۵۴ ص، د حیدر اباد طبع ۱۹۴۸.

پر پښتو هم دغه ادبي حرکت اثر وکړ، تر (۹۰۰ هـ) وروسته چې کوم منثور آثار زموږ لاس ته راغلي دي، د سلیمان ماکو له نثره سره ډېر تفاوت لري او داسې ځنې څرګند پرېږي، چې د پښتو پخواني نثر ساده، بسیط، واضح، خوږ او څرګند و؛ مګر وروسته چې د هند او ایران فني نثرونه خلکو ولیدل؛ نو په پښتو کې هم یو راز دروند او اوږد او مکروه نثر شروع شو، چې اسجاع او مترادفات او اوږدې اوږدې جملې یې درلودې او هغه پخواني وضاحت او سادګي او حلاوت یې بایلو.

دا فني نثر، چې د ژبې د بیان ډول یې بل راز کړ، د ژبې لپاره اساساً مفید نه و؛ مګر ډېر منثور آثار او کتب یې په پښتو کې موجود کړل. له دې جهته نو غنیمت هم دی او موږ دې «ادبي مکتب» استادانو او شاګردانو ته په ښه سترګه ګورو؛ ځکه که دوی څه نه وای لیکلي؛ نو به اوس موږ د پښتو له ډېرو تاریخي او دیني آثارو څخه محروم وو. د «فني نثر» پېچېدګي او اغلاق او عدم وضاحت پر پښتو نثر داسې اثر کړی دی، چې قطعاً له مخکني نثره سره نه شي تطبیق کېدای، پخواني نثر ساده او روان او د ژبې له محاورې سره سم و؛ مګر فني نثر مغلق شو، جملې یې اوږدې شوې او د جملو په آخر کې د سجع التزام وشو او له لیکوالو سره دا فکر و، چې نثر د نظم خوا ته نژدې کړي؛ بلکې اکثرو لیکوالو خپل نثرونه، نظم هم بلل، اخوند درویزه لیکي:

چې روښان په پښتو ژبه شعرونه جوړ کړل او ما هم دده په جواب کې د مخزن اسلام شعرونه وویل[1]. حال دا چې نه خیرالبیان شعر دی او نه مخزن؛ بلکې دا دواړه کتابونه یو راز

[1] مخزن اسلام قلمي؛

مسجع او مغلق نثر دی.

له لاندې نمونو څخه تاسې د پخواني نثر او د پیر روښان او درویزه د نثر فرق او تفاوت ښه معلومولای شئ:

د سلیمان ماکو نثر (۶۱۲ هـ): نقل هسې کاندي یارانو چې په روزګار د شیخ بیټني کې دده ورور چې سړبن نومېد او پر شیخ هم خورا ګران و، سړبن نه درلود زامن او هر کله به یې ویل خپل ورور ته بیټني خپل ځوی اسماعیل ورکاوه او لوی سو، د سړبن په کاله خدای مهربان د اسماعیل په برکت سړبن ته نصیب کړه دوني زامن چې تر وس تېر سو ګڼون د هغو...[1].

د پیر روښان نثر (۹۵۰ هـ): هادي ویلي دي رحمت د خدای په ده دا کلام + هر چې چار که د نوس په هوس او په نغوته د شیطان+ تروبې ګمراه کړم لکه مې ګمره که آدم علیه السلام+ وعصی آدم ربه فغوی بیان دی په قرآن[2].

د اخوند درویزه نثر (۱۰۰۰ هـ): امام عمر نسفي هسې ویلي مبرهن دي+ چې صوفیان د حق دوستان دي، هم د زړه په پاك کردن دي + دوی پر ښې غیره مینه، اشنایي یې ده له خدایه، وافق ځما له کتابه آراسته د پاك رسول پر ښه سنن دي+ پاك الله دي په دوستي واړه نیولي چې له خلقه تبرا دي، هم چې نښغتي د رسول د شریعت په پېراهن دي + په دا فساده زمانه کې هر څوك لاف د درویشی کا، دوی دوولس فرقې شوې، یوه طایفه ناسته د پاك رسول پر ښه سنن دی...[3].



[1] د پښتانه شعراء، ج ۱، ۶۴ ص.
[2] د خیرالبیان له قلمي نسخې څخه.
[3] مخزن اسلام د راورتي په ګلشن روه کې.

(۴)

# پیر روښان او ددې کورنۍ او کارنامې

## د پیدا کېدو عصر:

د پښتنو د عظمت ستوری په هند کې لومړی پلا د ملتان لودیانو وځلاوه او لکه تاسې چې ددې کتاب په اولو برخو کې ولوستل، هلته شیخ حمید لودی د پاچاهۍ اساس کېښود، وروسته چې د غور پښتانه په خراسان کې لوړ شو؛ نو دوی له اباسینده تر ګنګا پورې ټول هند ونیوه او د پښتنو د شهنشاهۍ رغ یې په ټوله ایشیا کې لوړ کړ. بیا وروسته دوهمه پلا لودیانو دغه تللی عظمت نوی کړ او په دهلي کې (یې) د لودیانو دوهمه شهنشاهي جوړه کړه.

د لودیانو دوهمې شهنشاهۍ د پاني پت په جنګ په (۹۳۲ هـ) کې سقوط وکړ او بابر د هند د مغولو لومړي پاچا، سلطان ابراهیم لودي وواژه، په دغه وخت کې چلي پښتونخوا د بابر له خوا، ټوله پامال شوه او د لودیانو سلطنت په وروستنیو سوکلیو (سلګیو) کې و او د پښتنو تاریخي عظمت له منځه ته او له هره لوري ددې قوم استقلال ته خطرات متوجه وو، د هند په جالندهر کې یو پښتون پیدا شو، چې نوم یې (بایزید) و، دی د شیخ عبدالله زوی و، ې په اوه پښته شیخ سراج الدین ته رسېده او د لودیانو د سلطنت په آخر کې په (۹۳۲ هـ) د پنجاب په

جالندهر کې وزېږېده، مور يې بيبۍ نومېده[1] چې د محمد امين لور وه[2].

## کورنۍ او اساتيد:

د بايزيد پلار عبدالله اصلاً قندهارى اورمړ و، چې وروسته يې د وزيرستان په کاني کوړم[3] کې ژوندون کاوه، د دوی کورنۍ په ((انصاري)) هم مشهوره وه[4] پخپله روښان وايي، چې زما پلار عبدالله قاضيء د محمد زوی و، کورنۍ مو انصاري ده او محمد دوولس زامن درلوده، چې په دوی کې عبدالله په فضيلت مشهور و او قاضي توب يې کاوه، د محمد بل زوی خدايداد نومېده، چې زوی يې خواجه اسماعيل د عبدالله وراره و او دغه سړي ته بايزيد عقيدت درلود، چې شرح



---

[1] د بستان مذاهب يې بنين ليکي؛ مگر مآثر الامراء (ج ۲ ۲۴۳ ص) يې: بهبين يا بيبن راوړي، ښايي ((بيبن)) يا د بيبن د ((بي بي)) يو مهند رنگ وي.

[2] د بستان مذاهب د بايزيد د حالنامې په حواله.

[3] کاني کوړم، وزيرستان د بدر په وادي کې د غره لمنې ته يو ځای دی، چې په پښتنو کې شهرت لري او د بحر له مخه څخه ((۷۰۰۰)) فټه لوړ دی او هلته اوس هم اورمړ د مسيدو په منځ کې اوسي. ((پټان ۲۰۰ ص)).

[4] د اتحاد افغان مجله ليکي، چې: اورمړ په کاني کوړم کې آباد دي، وزير او مسيد يې ستانه بولي، د دوی ژبه پښتو ده؛ خو ځينې د نورو ژبو لغات هم په گډ دي، ځينې محققين د اخوند درويزه په قول استناد کوي او وايي، چې انصار له اورمړو څخه يوه قبيله ده، چې په مياگانو هم مشهور دي، د بايزيد يو شاگرد دولت پخپل ديوان کې دده نوم ((شيخ سراج الدين بايزيد مسکين)) ليکي او دی د ((روښان)) او ((ميا مسکين)) په صفت هم يادوي:

که هادي شيرين زبان شي — شيخ سراج بايزيد روښان شي

((د دولت قلمي ديوان ۲۵۸ ص)).

به يې وروسته راشي[۱].

وايي، چې د عبدالله نيکه او د بيبن پلار محمد امين سره ورونه وو او په جالندهر کې اوسېدل او دوی د پښتنو لودي پاچاهانو په نهضت کې هلته تللي وو او پښتانه حکمداران د دوی معتقدر وو، په ستانه توب اوتقوی يې منل، د عبدالله پلار د خپل تره محمد امين لور، خپل زوی عبدالله ته وغوښته، په دغه وخت کې عبدالله په کاني کورم (وزيرستان) کې و، چې دی خبر شو؛ نو جالندهر ته راغی او د بيبن سره يو ځای شو، دلته ميا روښان وزېږېده.

ځکه چې د مغولو تسلط او جبر له پښتنو سره زيات شو او د لوديانو سلطنت هم محوه شو؛ نو پښتانه له هندوستانه ايستل کېده او بابر د دهلي پر تخت ناست و، په دغه وخت کې بيبن له خپل زوی روښانه سره چې د غېږې هلك و، کاني کورم ته راغله[۲].

بايزيد د علم او فضيلت په کورنۍ کې لوی شو، پلار يې صالح او عابد او مدرس و[۳].

اخوند درويزه وايي، چې: د وزيرستان په کاني کورم کې د پښتنو څو قبيلې سکونت لري، چې اورمړ او انصاري هم له دغو قبيلو څخه ګڼل کېږي[۴]، ميا روښان له انصاري قبيلې څخه دی، چې دغه قبيله په علم او صلاح او تقوی مشهوره وه، درويزه ليکي: ((بدان ای فرزند که در موضع کانی کورم درميان

---

(۱) صراط التوحيد، ۳ ص.

(۲) تذکرة الابرار.

(۳) د بستان د حالنامې په حواله.

(۴) تذکرة الابرار.

افغانان ورمړ عبدالله نام مردی بود با علم و صلاح، و از اولاد علماء و صلحاء بوده، تا بقضای قدیر ازو فرزندی بزاد با زید نام))[1]. بل ځای درویزه د بایزید د کورنۍ علمي شهرت او تقوی داسې ستايي: ((د بایزید پلار نیکه دواړه عالمان وو ـ د ورمړـ هم رشتیني وو په دین کې[2].

د هند په جالندهر ښار کې یوه کورنۍ اوسېدله چې ځانونه یې انصاري او د پیر روښان له کورنۍ څخه بلل، دغې کورنۍ یو سړی مولوي نیاز الدین دانشمند انصاري په فارسي ژبه یو کتاب درلود، چې نوم یې ((تذکرة الانصار)) و او د روښان او دده د کورنۍ احوال پکې ذکر شوي وو.

په دې تذکره کې د دوی سلسله نسب تر حضرت ابو ایوب انصاري پورې داسې ده: ((بایزید مسکین بن عبدالله بن محمد شیخ بن بابا شهباز بن شیخ محمود بن شیخ سراج الدین بن حضرت مولانا ابراهیم انصاري بن خواجه محمود بن خواجه حمزه بن خواجه داود بن خواجه شمس الدین بن خواجه خلیل بن خواجه لقمان بن خواجه حداد بن خواجه منصور بن خواجه محمد بن خواجه مت(؟) الانصاري بن حضرت ابو ایوب الانصاري میزبان رسول خدا))[3].

دا تذکره د روښان مولد جالندهر ښيي او وايي چې دده حجره د شیخ احمد غوث ولي له مقبرې سره تر اوسه شته؛ مګر دغه نسب نامه صحیحه نه ښکاري؛ ځکه چې د مؤرخانو په اتفاق یو قرن د (۳) پښتو لپاره مقرر دی، په لوړه

---

[1] تذکرة الابرار.

[2] مخزن.

[3] مجله معارف اعظم کرط ه ۴۳۳ ص ج ۱۹ جون ۱۹۲۷.

نسب نامه کې له بايزيد څخه تر ابو ايوب انصاري پورې (۱۸) پښتنه دي، چې ټوله بايد تر ۶۰۰ هـ پورې تېر شوي وي. حال دا چې تر بايزيد پورې ۳۰۰ کاله نور هم تېر شو دي او بله دا چې د شيخ الاسلام خواجه عبدالله انصاري هروي د نسب سلسله هم دغه منت الانصاري ابو منصور ته رسېږي[1]؛ خو په دواړو نسب نامو کې هېڅ توافق نه ښکاري.

اما دده نوم بايزيد و، چې مفغن شکل يې بايزيد دی؛ نو ځکه اخوند درويزه په تذکرة الابرار (۸۸ ص) کې ليکي:

چې ميا روښان پخپل مهر کې ((بايزيد انصاري)) ليکلی و.

دولت چې د روښان شاگرد دی، پخپل ديوان کې داسې وايي:

هر طالب که عمل کا مقصود به مومي
چې مريد د ورمړ بايزيد مسکين شه

د دولت د قلمي ديوان نسخه چې د ډېره پخوانۍ ده، په دې بيت باندې کوم نامعلوم محشي داسې حاشيه ليکلې ده: ((برای رفع تهمت خود ها را انصاری ميگفتند و گر نه به تحقيق افغان ورمړ اند، چنانچه از افغانهای وزيری شنيده شده)).

د مسکين صفت چې دولت دده له نامه سره يادوي، په غالب گومان د روښان تخلص دی. په صراط التوحيد کې هم پخپله بايزيد ځان (مسکين) بولي او د اکثرو ابوابو په سر کې قال مسکين يا مسکين گويد ليکي، ددغه کتاب په يوه ځای کې دا کلمه ښه شرح کوي او د سلوك او توحيد د مراتبو آخر يې گڼي، وايي، چې: انسان د قادر مطلق په قدرت له نطفې څخه پيدا کېږي، د مور رحم ته راځي، علقه او مضغه شي، وزېږي شيدې خوري، ناطق شي، هلك شي، مراهق شي، بالغ شي، کافر وي

---

[1] د طبقات الصوفيه هروي د خطي نسخې مقدمه.

مسلمان شي، ګناه کار وي فرمان بردار او ذاکر شي، ذاکر بينا شي، بينا اشنا شي، نږدې شي، نږدې وصل شي، وصل يګانه شي، يګانه «مسکين» شي، يعنې د بشريت له صفاتو څخه خدايي صفاتو ته ميل وکړي[1].

نو ګويا د بايزيد په اصطلاح «مسکين» هغه دی چې له حيواني صفاتو څخه يې تزکيه راغلې وي او دا نو د عرفان لوړه درجه ده.

اما «روښان» دده مشهور نوم دی، چې اخوند درويزه يې تعصباً (پير تاريک) بولي او د پېښور په سيمو کې تر اوسه هم پير تاريکي مشهور دی، د روښان وجه تسميه په تذکرة الانصار کې داسې راغلې ده، چې يوه شپه په څراغ کې تېل تمام شول او څراغ تاريک شو، چې ژر به مړ شي، بايزيد خپل مريد ته وويل، چې: تېل نشته نو اوبه پکې واچوه! هغه مريد د پير په حکم په څراغ کې اوبه واچولې او دده په کرامت څراغ روڼ لګېده. له دغې شپې څخه مريدانو دی پير روښان وباله او ډېر خلک يې معتقد شول[2].

ددې سره يو بل شاګرد او معاصر ملګری ملا ارزاني خوېشکي دی، چې دده په قلمي ديوان کې هم روښان د فقير او پير کامل په نامه يادېږي مثلاً:

دا خبر چې فقير ووې — بلا شک بې اشتباه دی
فقير ناست دی پخپل غولي — په ناري طالبان بولي
دغه لوی نفسک به زېر کړې — د کامل پير له اسراره[3]

---

[1] صراط التوحيد، ۱۷ ص.
[2] معارف ۴۳۵ ص ج ۱۹.
[3] د ارزاني قلمي ديوان.

د روښـــان د هلکیـــنې پـــه خصـــوص دونـــې معلومـــه ده، چـــې دده مـور پـر پـلار ګرانـه نـه وه؛ نـو ځکـه عبـدالله هغـه پرېښـوده او روښـان د میرې او ناسکه ورونو په لاس کې لوی شو[1].

وایـي چـې د روښـان د پـلار پـه شـاګردانو کـې مـلا پاینـده نـامې کمـال تـه ورسـېد او د روښـان پـلار د درس حلقـه ده تـه پرېښـوده او خپـل زوی روښـان یـې ده تـه وسـپاره، لـږ وخـت مـلا پاینـده زیـار وکېـښ او دغـه هلـك یـې د علومـو معتـدلې درجـې تـه ورسـاوه؛ ځکـه چـې ده ډېـر ذکـاوت درلـود او پـه کوچنـوټ تـوب بـه یـې لـوړې خبرې کړلې[2].

د روښـان د کوچینـوالي لـه عـاداتو څخـه حکایـات کـوي، چـې: ده بـه د خپـل کښـت او فصـل نګرانـي او مراقبـت کـاوه، پـه دغـه وخـت کـې بـه یـې د نـورو خلکـو کښتونـه هـم سـاتل او مرغـان او حیوانـات بـه یـې ځنـې شـړل او پـردي کښتونـه بـه یـې داسـې سـاتل؛ لکه خپل پټي او ځمکه[3].

بایزیـد پـه کوچینـوالي د اسـلامي پنځـو بنـاوو پابنـد و، پـه مواظبـت سـره بـه یـې کلمـه ویلـه او لمونځونـه بـه یـې ادا کـول، روژه بـه یې نیولـه، امـا زکـات نـه و پر فـرض شـوی، د حـج میـل یـې درلـود او پـه کوچنیـوالي کـې (یـې) ریاضـت کـېښ او د حقیقـت پـه انکشاف کې (یې) زیار اېست[4].

بایزیـد د روحانیـت او تقـوی اوعلـم پـه محیـط کـې لـوی شـو، دده پـه اسـتادانو کـې مؤرخـان د مـلا پاینـده او مـلا سـلیمان

---

[1] د بستان د حالنامې په حواله.

[2] تذکرة الابرار، او د بستان.

[3] د بستان.

[4] د بستان.

کالنجري او خواجه اسماعیل نومونه اخلي، چې روښان له دغو استادانو څخه علمي او روحاني استفاده کړې وه، په دې لاندې شرح:

لکه چې تاسې دمخه ولوستل: ملا پاینده ده د پلار شاګرد او جانشین و، چې په کوچنیوالي کې د روښان مربي او معلم و، چې دا هلك د رشد او بلوغ وخت ته ورسېد؛ نو دده له خپلوانو څخه یو سړی و، چې خواجه اسماعیل نومېد او د ریاضت خاوند و، ډېر مریدان یې درلودل، بایزید وغوښتل، چې دده مرید شي او د ارادت لاس ورکي؛ مګر پلار یې منع کړ او د شیخ بهاء الدین زکریا کورنۍ ته یې بوت، څو چې روښان دې نکتې ته ملتفت شو، چې (شیخي په ارث نه ده) او پخپله په ریاضت مشغول شو او د خلکو په هدایت او تبلیغ بوخت شو او ډېر خلك پر راټول شول[1].

د بایزید د ژوندانه دغه دوره دده له بیانه په داسې ډول راخلاصه کېږي:

«از یک کسی شنیدم که معرفت حق بر آدمی فرض عین است و آن بی پیر کامل حاصل نمیشود چون چنین شنیدم، پرسش کردم، دیگر عالمان نیز چنین گفتند، که پیر کامل طالب را در ریاضت درمی آورد، و بذکر و فکر حق شاغل میگرداند تا با خدای تعالی موحد و یگانه گردد، و از شرک جلی و خفی خلاصی یابد. چون چنین شنیدم بعده در طلب پیر بر آمدم و پرسش میکردم، چون کسی از جانب خراسان یا هندوستان یا جانب دیگر می آمد، بعضی را پرسش میکردم تا مرا کسی از مرشد کامل خبر دهد، کسی مرا ز مرشد کامل خبر

[1] د بستان.

نمی داد، و بناقصان یقین نمیگردم... درین طلب بودم که یک درویش در ان دیه (دیار) پیدا شد، دعوی شناختن حق آغاز کرد، بعضی آدمیان به وی اعتبار کردند و بعضی از وی منکر شدند، بعده یقین من نیز سوی وی پیدا شد، که بدست این درویش توبه کنم، تا مرا سوی طاعت و عبادت و ذکر حق در مجاهده و ریاضت دارد، تا از صفات ذمیمهٔ من چیزی به صفات حمیده بدل گردد، آن درویش نیز انصاری بود، و برادر زاده عبدالله قاضی بود، درآنوقت من بحد بلوغ رسیده بودم و خود را گناهگار و بدکار می شمردم. یک روز عبدالله راگفتم، که اختیار من سوی توبه پیدا شده است، و یقین من بخواجه اسمعیل اکثر شده است، که بدست وی توبه کنم، تا از وی راه یابم. عبدالله ریش بدست خود بگرفت و گفت: ریش من تراشیده میشود، و نام من بد میشود، اگر بدست وی توبه کنی، و عبدالله پسر محمد گفت: که محمد دوازده پسر داشت، من در ایشان بعلم فاضلتر و بهتر بودم، و نام من بلند تر است، اگر بدست وی توبه کنی، در ولایت خبر خواهد شد، که پسر عبدالله بدست پسر خدایداد توبه کرد، باین سبب ریش من تراشیده و نام من بد میشود، زینهار که بدست وی توبه نکنی، اگر بکنی در خانه من باشم یا تو، و من از تو ناخشنود باشم. من گفتم: چون در حالت مراهقی سوی کعبه گذاردن و علم خواندن رفته بودم، نیز بسر من آمدی، و مرا گردانیدی، اکنون در حالت جوانی اختیار توبه کنم، نیز مرا سوی پیر نمی گذاری! وی گفت: با سلسلهٔ شیخ بهاء الدین قدس سره داریم، اگر توبه کنی سوی ملتان برو وبه خانوادهٔ شیخ بهاء الدین توبه کن، توشهٔ راه و شکرانهٔ پیر نیز بدهم تا از تو خشنود گردد، از آنکه

طالبان بعضی آینده ورونده اند، و بعضی آرنده اند. و برنده اند، من گفتم مردمان سوی آن چیزی برده اند، و از آنجا کلاه یا شجره یا ثمر یا کمربند یا نشان دیگر آورده اند، و لیکن از ذکر و فکر، از شناختن حق خبر ندارند. من مشتاق ذکر و فکر و شناختن حقم، اگر خوب کنی برای الله مرا اجازت کن، تا بدست وی توبه کنم. هر چندیکه میگفتم، مرا اجازت نمیداد پس دل خود را مفتی کردم، و دل من بر من این فتوی داد که قرآن را امام کن به پیروی آن اقتداء کن، و خواجه اسمعیل یاران خود را به کم خوردن و کم گفتن، و کم خفتن، بعزلت بودن میفرمود، من نیز اگر این کار توانم بمقدار خود بکنم پس کم و خشک خوردن اختیار کردم، چون چند گاه کم و خشک میخوردم عبدالله بر من گفت: چرا کم و خشک میخوری؟... اکنون جوانی بسیار بخور، هر گاه که بحالت پیری برسی، کار دین محکم کن! من گفتم: که چه دانم که به پیری برسم یا نرسم؟ ترا چه شده است، که مرا بکار دین نمی گذاری! اول مرا از راه کعبه باز گردانیدی، دویم آنکه مرا از مرشد باز گردانیدی، سویم آنکه مرا سوی ریاضت نمیگذاری! پس در دل گفتم: که در قرآن نگاه کنم، هر چه قرآن فرماید، آن بکنم. چون در قرآن نگاه کردم، این آیت نوشته دیدم: (قوله تعالی ووصینا الانسان بوالدیه حسنا و ان جاهداک لتشرک بی ما لیس لک به علم فلا تطعهما)، پس عبدالله راگفتم، که این سخن تو نخواهم شنید... پس من در آن اربعین در خواب یک شب دیدم...))[1].

په دې ډول د بايزيد د مراهقۍ او بلوغ دوره شروع کېږي او دا ښکاري، چې له کوچني والي څخه دا هلك يو فكور انسان و

[1] تلخيص از صراط التوحيد: ص ۱_۶.

او په دغه دوره کې هم د عبادت په فکر کې و او غوښته يې چې د کعبې شریفې زیارت ته ولاړ شي او د علم تحصیل وکړي.

په دغه وخت کې بایزید خپل یو خوب لیکي، چې: حضرت خضر يې په خوب کې لیدلی و او د هغه لاس نیوی يې هم کړی و او روښانیان دغه د خضر د ملاقات ورځ لکه خپل اختر داسې ګڼي او په دغه ورځ روژه نیسي او عبادت او خوښي کوي[1]. دی وایي، چې: ما درې مرحلې تېرې کړې دي:

اول: کوچنیواله چې د اسم الیقین دوره وه، یعنې دا مې اورېدلې وه، چې خدای واحد لاشریك دی؛ نو مې د خدای په نامه یقین کړی و.

دوهم: د مراهقی په وخت کې مې لوستلي وو، چې خدای واحد لاشریك دی او د هر شي هستي دده له هستۍ څخه ده؛ نو هغه اعتقاد چې پخوا وهم او خیال و، اوس مې په علم الیقین بدل کړ.

درېم: چې ځوان شوم؛ نو مې دا ومنله، چې بې له خدایه بله هستي یقیني نشته او نورې هستۍ په هلاکت کې دي، زما هستي او د ټولو موجوداتو هستي او د ټولو ذراتو هستي د خدای له هستۍ څخه ده او د قوله تعالی: "قل انما ادعو ربي ولا اشرك به احداً" معنی راته ښکاره شوه او د عین الیقین مرتبې ته ورسېدم[2].

**قرب**: تر دې وروسته یو بل مقام بایزید بیانوي، چې هغه قرب بولي په دې ډول:

((چند سال درین حال بودم که محبت من با صحبت عالمان و

---

[1] معارف ۴۳۴ص ج، ۵۱۹.

[2] صراط التوحید ۹_۱۰ ص.

درویشان و قلندران بود، و خادمی ایشان بمقدار خود میکردم برای طلب معبود، و نیز در ان حال در طلب پیر کامل بودم ولیکن نمی یافتم، بعده حق تعالی بفضل خود مرا تجلی کرد و دل من بکشاد و پرده از آن برداشت و مراعین الیقین بنمود و علامت وی آن بود که بهر سوی که نظر میکردم به چشم و دل بی مثل میدیدم... ویکی دیدم هیچ چیز از هستی او جدا نمیدیدم و هیچ آوازی جز تسبیح حق نمیشنیدم و علامت "و ان من شئ الأ یسبح بحمده و لکن لا تفقهن تسبیحهم" در خود میدیدم:

## رباعی

بذکرش هر چه بینی در خروش است
ولی داند درین سری که هوش است
نه بلبل با گلشن تسبیح خوان است
که هر خاری به تسبیحش زبان است

پس دانستم که بمقام قرب رسیدم چند سال درین حال بودم، بعده حق سبحانه و تعالی مرا بیک سبب باسم اعظم رسانید و گفته شد اگر این اسم اعظم بخوانی بمقصود برسی، من آن رانمی خواندم و طاقت آن نداتشم، چند مدت از هر چیز که آواز می شنیدم، از هر آواز آن اسم اعظم می شنیدم، پس از آن بیک سبب حق تعالی بر من ذکر و حلاوة رسانید، بآن ذکر هستی من در هستی او میگداخت، و هلاک میگردانید، و هستی هر وجود با هستی حق تعالی یک وجود میگردانید، و در آن حال هستی او با و می دیدم- آواز او با و شنیدم با و خوردم و چشیدم، و خود را از میان برداشتم، در هر کار فاعل او را می دیدم، و علامت بی سمع و بی بصر و بی (یاخذو یا کل) و بی

یشرب و بی یمشی در خود دیدم هر وجود و وجود خود را با و یک وجود می دیدم و شمردم، چون من نیست و فانی گشتم، پس هستی خود را با هستی او یکی و باقی دیدم، این مقام نیز بآیت بحدیث موافق دیدم (یایها الذین آمنوا اتقوالله وابتغوا الیه الوسیلة و جاهدوا فی سبیله...)[1].

## مراتب:

بایزید وایي، چې: پس له قرب هم زه فارغ نه وم، او لاندې مقامات مې ولیدل:

درین حال نیز در طلب پیر کامل بودم ولیکن پیر کامل رانمی یافتم،... در مقام وصالت نیز درویشان و عارفان دوست میداشتم و خدمت ایشان میکردم و بآیت قرآن، و بحدیث انبیاء و باقوال اولیاء شغل می کردم و لیکن حال خود را پنهان میداشتم،... از شریعت و طریقت، و حقیقت و معرفت و قربت و وصالت خبر گشتم... در خانهٔ خود کم خواری و دستور خلوت اختیار کردم، بعد از دو شب و روز، حق تعالی مرا تجلی اسرار کرد، از شرک پاک گردانید... بعده حق تعالی بر من تجلی ذات و صفات کرد، که هر صفات را بذات خود حیات و باقی دیدم چنانکه مسکین فرموده است: بقاء کل صفات بذاته و کل صفات اذا تفرق عن ذاته فقد یهلک...))[2].

له دې ټولو تشریحاتو څخه ښکاري، چې بایزید خپل پدري شغل یعنې قاضي توب نه خوښاوه او له پلار سره یې پر دغه خبره اختلاف و، دده پلار یوه بله ماندینه آمنه هم کړې وه، چې

[1] صراط التوحید، ۱۱ ص.
[2] صراط التوحید ۱۱_۱۹ ص.

هغه د شیخ یعقوب مور وه او دغه یعقوب د خپل پلار پېشه چلوله او پس له ده دده دوه زامن میا محمد علي او میا شیخ سلطان هم قاضیان وو، چې روښان د دوی په لار نه تلو او د قضا پېشه یې نه خوښوله، ده به تل خپل پلار او شیخ یعقوب ته نصحت کاوه، چې له خدایه وبېرېږي او رشوت وانه خلي او تقوا وکړي؛ ځکه نو هغه ټول دده مخالف وو[1].

په حالنامه کې وایي، چې یا زید د عمر پر اووم کال له خپلې کورنۍ سره مخالف شو او پر شپاړسم کال د پلار سره تجارت ته ولاړ او په هند کې (یې) د یوګیانو عقاید مطالعه کړه او د تناسخ او هندي اوتارو (د تجسیم د عقیدې د خاوندانو) پر افکارو یې غور وکړ څو چې پخپله یې له خضر علیه السلام څخه په خوب کې آب حیات وموند او پر څلوېښتم کال یې اسم اعظم ورد هم وایه[2].

بل سړی چې میا روښان د رشد او ځوانۍ پر وخت له هغه څخه استفاده کړې ده د ټولو تذکرو په قول ملا سلیمان کالنجري دی[3] چې دروېزه دغه سړی د یوه ملحد ملا په نامه ستایي او له بایزید سره دده ملاقات هغه وخت شوی دی، چې دی پس له صبا وته، د رشد پر وخت هند ته تللی و او هلته له علماوو او پوهانو سره په علمي مفاوضاتو بوخت و او دده په افکارو کې یو ښکاره انقلاب موندل کېده؛ ځکه چې د هند په دغو سفرو کې ده د پښتنو تللی عظمت او موجوده ذلت ولیده او

---

[1] معارف ۴۳۴ ج، ۱۹ص.

[2] د حالنامې خطي نسخه تر ۵۴ ص وروسته.

[3] تذکرة الابرار، مخزن، د بستان. اسلامي دائرة المعارف (ج اول مادهٔ بایزید) دغه سړی اسماعیلي مذهب ګڼي؛ مګر په کوم سند؟

یو سیاسي تحول دده په ارادو کې پیدا شو.

موږ نه شو ویلای چې د بایزید د سیاسي افکارو استاد څوک و؟ دا ښکاره ده، چې اسلامي علوم د عربي ژبې پر اساس یعنې هغه علوم چې په قرآن او حدیث اړه لري او بیا فقه او اخلاق او فلسفه او علم کلام او نور ادبي علوم لکه لغت، بلاغت، صرف و نحو په مسلمانانو کې رایج وو او دده په کورنۍ کې به هم دغه علوم لوستل کېده، اما د تصوف معلومات او ذوق او هغه کوایف چې په حال اړه لري نه قال، دا هم هغه شیان دي چې دده د ژوندانه له محیط سره متناسب دي او تاسې به یې شرح ولولئ، اما هغه سیاسي فکر چې بایزید د پښتنو د آزادۍ او سلطنت لپاره درلود او دده شخصیت هم له دې جهته اهمیت مومي، له کومه راغی؟ ددې معما د حل لپاره هم بې له دې چې د ماحول اثرونه وګورو، بل څه ماخذ نه شو موندلای، له دې سببه نو په آینده لیکو کې پر دغو شیانو بحث کوو، چې ددې سړي شخصیت هم تر دغې رڼا لاندې پېژندلای شو:

دلته باید دا حقیقت هېر نه کړو، چې د مغولو د حاکمانو ظلم او تېری او پر پښتنو باندې د دوی ناوړې لیدل د بایزید د نهضت یو لوی او کلي سبب ګڼل کېږي. تاسې د قندهار په سفر کې له بېرم خان سره د بایزید تصادف په دې کتاب کې ولولئ، چې روښان پخپل صراط التوحید کې د دوی د ظلم او جفا ښکاره تاثرات ښکاره کوي او د عدالت او انصاف نصیحت ورته کوي، په تذکرة الانصار کې هم د روښان نهضت د مغولو د ظلم یو عکس العمل ګڼل شوی دی او داسې قصه رانقل شوې ده:

د مغولو حاکمانو تر دې اندازې ظلم پر پښتنو باندې کاوه،

چې يوه ورځ يې يوه پښتنه مېرمن ونيوله او ددې وښعتان يې د ژرندې له پله سره وتړل، چې ژرنده به څرخېده؛ نو دا پښتنه به هم ورسره څورلېده!!!

بايزيد چې پښتون و، پر يوې پښتنې ښځې يې داسې ظلم او ناروا نه شواى زغملاى، ده د روحانيت په دنيا کې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم په حضور عرض وکړ او ددغو ظلمو د مخنيوي او مدافعې اجازت يې وغوښت، چې دا روحاني اجازت يې ومونده؛ نو راولاړ شو او له پښتنو څخه يې د ظلم او ناروا دا تور څادر ونغښت او انصاف او عدل يې جاري کړ. په دغو ورځو کې د جالندهر يوه مشهور بزرګ حضرت شيخ غوث الکرام وويل: ((په کوهستان کې بيا اوربل شو خداى دې خير پېښ کړي))![1].

له دې قصې څخه تاسو معلومولاى شئ، چې د پير روښان د نهضت په سياسي اسبابو کې د مغولو د حکومت ظلم او تېرې څومره لاس درلود؟ او ظلم څنګه پخپل مقابل کې قهرمانان پيدا کوي؟...

### سفرونه او شخصيت:

داسې ښکاري، چې بايزيد د رشد او شباب په وخت کې پښتونخوا ليدلې او ده يوه سلسله سفرونه هم کړي دي، په دغه سياحتو کې د آفاق او انفس په سير کښېوتلى او ډېرې علمي او روحاني استفادې يې کړې دي.

اخوند درويزه وايي، چې: بايزيد په هند او تورکستان کې تر

[1] معارف ۴۳۵ ص، ۱۹ ج.

سمرقند ه سفرونه وکړل[1] او د مذاهبو پر فلسفې یې عبور حاصل شو، د تصوفو په عالم کې داخل شو او له پوهانو او روحاني خلکو سره محشور شو.

په دغو سفرو کې بایزید، ډېره استفاده وکړه، پوخ او پوهاند سړی شو، د شخصیت د تکمیل دپاره یې زیارونه واېستل، په ادب، فلسفه، تصوف او سیاست کې یو نابغه شو، دروېزه وایي: ((بایزید په عقل پوره و، هوښیاري او زیرکي یې ډېره زده وه، په عقلي دلایلو کې ډېر مړنی و، لویو علماوو ورسره بحث نه شو کولی، د کابل د مېرزا محمد حکیم په دربار کې ده لوی لوی عالمان پړه کړل او په مناظره او علمي استدلال کې یې لوی لاس درلود او میر زاده ده ته په درنه سترګه کتل[2]. بایزید پخپله حالنامه کې لیکي، چې د حکیم مېرزا د کابل قاضي چې قاضي خان نومېد، له ما پوښتنه وکړه، چې ته د الهام مدعي یې؟ ما ویل هو! نو قاضي صاحب وویل: الهام خو کله غلط کله صحیح وي!

بایزید ورته وویل: ما خپل الهام له قرآن او سنت سره برابر میندلی دی؛ نو یې ځکه صحیح ګڼم. وایي چې په ابتداء کې میرزا محمد حکیم پیر روښان په سیاه چاه کې قید کړی و؛ مګر پس له څه وخته چې یې وکتل، دی هلته ژوندی و او ډېر اشعار یې په دغه تور زندان کې ویلي وو؛ نو پخپله مېرزا او دده قاضي القضات قاضي خان او حکیم خان د مېرزا اتالیق د روښان معتقد شول[3]. موږ د بایزید کرکتر او سجایا د تاریخي روایاتو

---

[1] مخزن او تذکره.
[2] د بستان مذاهب ۲۵۱ ص.
[3] معارف ۴۵ ص، ۱۹ج.

په رڼا کې داسې ښیو، چې دی عالم و، روحاني ذوق او وجدان یې درلود، پوخ خطیب او واعظ و، عقل، ژبه، فکر یې رساوه، جنګي سړی و، د قلم خاوند مؤلف و، د قیادت او رهنمایی (لیډرشپ) ګرد صفات په ده کې جمع وو، له دې ټولو سجایاوو سره دی یو توریالی سیاس او مفکر هم و، د پښتنو د سیاست او ریفارم په تاریخ کې دا سړی جګ مقام لري او په سیاسي احیاء او نهضت کې یې لوی لوی کارونه کړي دي.

مؤرخان وایي، چې بایزید په ځوانی کې له سوداګرانو سره د تجارت عزم وکړ او په سیاحت بوخت شو، دغه دوره که دده په ۱۶ کلنی کې شروع شوې وي؛ نو به د (۹۴۷ هـ) حدود وي، دده د سمرقند تګ او د ماوراء النهر د ځمکو سفر د مؤرخانو په قول ثابت دی، له هغه ځایه څخه ده د سوداګری اسونه راوستل او هند ته یې بوتلل، په دې سفر کې چې جالندهر ته ورسېده، هلته یې له پښتنو لودیانو څخه یوه پېغله په نکاح کړه، چې (شمسیه) نومېده، دده مشهور زامن له دې پښتنې څخه پیدا شوي دي[1].

بایزید یو سفر د تجارت په سلسله کې قندهار ته هم کړی دی او دا هغه وخت و، چې (په) قندهار کې بېرم خان حکمدار و، لکه چې پخپله وایي:

((پس چند ماه در خلوت، روزه و عزلت اختیار کرده بودم، پس جفت شریعت (زن) مرا گفت: که تو اول تجارت و کار میکردی. نفقهٔ خانه و مهمان از آن حاصل می شد، اکنون نیز تجارت و کار کن، تا برای نفقهٔ چېزی حاصل شود، چون بسیار میگفت، سوی قندهار برای تجارت رفتم، و نیت چنین کردم، مگر کسی موحد بیایم، تا با وی شاغل باشم، کاروان بقندهار

[1] دبستان.

رسید، دیگر کاروانیان از خرید و فروخت سود و زیان میکردند، من اول پرسش پیر کامل کردم، در آن ولایت نیز پیر کامل نیافتم... در آن وقت در قندهار یک میر بود، نام او بیرمخان بود، بر آن کاروان ظلم کرد،... پس وارثان بعضی جمع شدند، برای فریاد کردن مرا نیز با خود روان کردند،... گفتم: امیران و پادشاهان را حق تعالی از عدل خواهد پرسید، و یک ذرهٔ عمل کسی را ضایع نگرداند، بروی بنماید که: ((فمن یعمل مثقال ذرة خیرا یره...)) پس بیرمخان قبول کرد و گفت تفحص مال بکنم، و لیکن تفحص نکرد، بر وعده مخالفت شد....))[1].

دغه د قندهار سفر چې د بېرم خان په زمانه کې بایزید کړی دی، باید د (۹۶۰ هـ) حدود وي؛ ځکه چې په دغه وخت کې بېرم خان د همایون له خوا په قندهار کې حکمران و او په (۹۶۱ هـ) دی همایون له قندهاره څخه کابل ته ورسره بوت[2].

پس له دغه وخته بایزید بیا پخپل کور کې تر پینځو کالو پورې عزلت گزین او خلوت نشین شو او د دنیا له کاروباره یې لاس وکېښ، په قناعت او توکل پخپل سیر او طریقت مشغول شو او د ځان تکمیل ته یې توجه وکړه او دلته دده عمل پر ((فاعرض عن من تولی عن ذکرنا)) برابر و او ویل به یې چې ((خصلتان لا یجتمعان فی قلوب الانسان طمع و توکل)) له دې جهته نو دده د عمر دغه دوره په ذکر او مجاهده او توکل او له نفس سره په جگړه کې تېره شوه[3].

د بایزید د شخصیت په خصوص کې مؤرخان ځینې اشارات

---

[1] صراط التوحید، ۲۱ ص.

[2] فرشته اکبر نامه ۲ ج.

[3] صراط التوحید، ۲۴ ص.

لري، چې دده نبوغ او ذکاء او د عقل پوخوالی څنې څرګند ېږي، د دبستان مذاهب ليکوال دا هم وايي، چې: دی يو نالوستی سړی و، لېکن د قرآن او حديث په معنی پوهېده او تطبيق به يې پکې کاوه؛ مګر دا خبره صحيح نه ښکاري؛ ځکه چې دده د تعليم او زده کړې په خصوص کې مؤرخان ډېر روايات لري او دی د ډېرو کتابو مؤلف هم ګڼي؛ نو سړی چې څو کتابونه په عربي، پارسي، پښتو، هندي ليکي، ناځاره به دی لوستونکی او ليکوال هم وي. دروېزه وايي: ((پدرش بايزيد را در تحصيل علم گماشته، تا بقدر وسع حاصل آورده و در طاعت و عبادت جد و جهدی نموده، و از منهيات شريعت محترز، و مجتنب حتی الامکان ميگشته...))[1].

له دې روايته هم دده علمي تحصيل او تقوی ښکاري، د دبستان مذاهب مؤلف وايي: شاه بېګ خان ارغون چې په خان دوران مخاطب و، ده بايزيد ليدلی و او ده ويل: کوم وخت چې بايزيد لاتوره نه وه اېستلې؛ نو دی د مېرزامحمد حکيم دربار ته حاضر شو، چې د همايون پاچا زوی و، د دربار علماء د بايزيد مناظرې ته راغونډ شول؛ مګر بايزيد دوی عاجز او پړه کړل او مېرزا ناځاره شو، چې بايزيد پرېږدي[2].

د بايزيد استدلالي قوت او د برهان زور دونې و، چې هېچا نه شو پړ کولای، دروېزه هم دده عقل او فراست او علمي مقام ته اشارت کوي او وايي: ((بايزيد ډېر په عقل پوره و، د دنيا عقل يې ډېر و، هوښياري او زيرکي يې ډېره زده وه... ځکه بايزيد يو حکمتي و... دا بايزيد په عقل پور و...))[3].

---

[1] تذکرة الابرار.

[2] دبستان. [3] مخزن.

د بایزید د شخصیت عرفاني او علمي څنګ لږ څه تاسي ته له دغو سابقو روایاتو څخه ښکاري او هغه وخت چې موږ دده پر تالیفاتو بحث وکړو؛ نو به لا ښه څرګنده شي؛ مګر دده حربي او سیاسي کرکتر هم د پېژندنې وړ دی، چې دغه مقصد به هم په لاندې ابحاثو کې ښه تاسي ته روڼ کړ شي، چې دا سړی د پښتونخوا د آزادۍ لوی رهبر او حامي و، د پښتنو سلطنت او تللی عظمت یې غوښت، د پردو د غلامۍ جوغ یې پر غاړه نه شو قبلولای، له دې جهته دی د آزادۍ د جنګ یو توریالی قاید او د سیاسي فکر مبلغ هم و.

## د بایزید د عصر روحاني محیط او معاصرین:

چنګیز او تیمور او بابر او شیباني هغه مغولي لوی او غښتلي فاتحان وو، چې د پښتنو له غوري او لودي او سوري شاهنشاهیو سره دوی په پښتونخوا او هند کې مخامخ شول او تقریباً څلور سوه کاله، له (۶۰۰ تر ۱۰۰۰ هـ) پورې پښتنو له دوی سره د خپلې آزادۍ لپاره جنګونه وکړل، د مغولو فاتحانو د ایشیا ځمکې له آباسینده تر شامه په وینو ولړلې او د اسلامي ملتو ژوندي روحیات یې ورمره کړل، ددې خونین تاړاک او چپلو طبیعي نتیجه دا وه، چې په خلکو کې د انزوا میل پیدا شو او د ژوندانه منفي خوا ته یې مخه کړه، له هندوستانه تر مصره د تصوف په نامه یو ډول تفکر خپور شو، چې خلکو به د روحاني تربیت او ریاضت په وسیله معنوي نجات غوښت او د تصوف تبلیغات او د ترتیب حلقې دونې ډېرې شوې، چې لوی لوی ښارونه، له خانقاهونو او د تصوف له تربیت خانو څخه ډک وو او د تصوف لوی لوی بزرګان او رجال په ټوله ایشیا کې پیدا شول، پر پښتونخوا هم له شمال او شرق او غربه، ددې روحاني

نهضت څېړ راغلې او په خلکو کې د تصوف او روحانيت خوا ته يو ډول مخصوص شوق او ذوق ليدل کېده، په هند کې مغولي دربار او د بابر د کورنۍ شهزادګانو دې خوا ته ميل درلود او په ايران کې هم صفوي کورنۍ مخصوصاً د اردبيل د تصوف له خانقاه راووته او د شيخ صفي الدين اردبيلي د اولادې له خوا پر روحاني اساس يو لوی سلطنت تشکيل شو، چې پس له (۹۰۰هـ) يې ټول ايران او پښتونخوا تر حکومت لاندې راغله، د دوی د دربار رسمي خلك د ((صوف)) په لقب يادېدل او د صوفي توب فکر داسې خپور شوی و، چې لوی مؤلفان او علماء، په دې فن کې ځينې په ((قال)) او ځينې په ((حال)) مشغول وو او دې حرکت په پښتونخوا کې هم يو روحاني محيط پيدا کړی و او پاچاهانو هم خپل اکثر سياسي مقاصد په دغه لباس او د روحاني خلکو په ذريعه اجرا کول او په دغه منځ کې ځينې داسې پاك طينته روحانيون او متصوفين هم وو، چې فقط د خلکو روحاني او اخلاقي تزکيې ته متوجه وو او په دنيوي اغراضو پسې به نه تلل.

بايزيد چې د پښتنو د آزادۍ لپاره پخپل نهضت شروع وکړه؛ نو دده د حرکت او فعاليت مرکز خو د تيرا او خيبر او ننګرهار آزاد غرونه وو، په دغو غرونو کې آزاد پښتانه اوسېدل، چې د غوري او لودي سلطنت خوند يې څکلی و او هر وخت دوی د آزادۍ او د خپل پښتني سلطنت د حفاظت لپاره تېېدل، دغه پښتانه د پښتونخوا په شرقي غرو او رغو کې مېشته وو، دوی اکثره د تصوف او روحانيت له هغې حلقې سره نښتي وو، چې سيد علي ترمذي يې مشر مبلغ و او دا سړی په پښتنو کې په "پير بابا" مشهور دی.

سید علي د قنبر زوی دی او دا سلسله داسې ده: قنبر ولد سید احمد نور، ولد سید یوسف نور، ولد سید محمد نور چې اصلاً د ترمذ له ساداتو څخه و او له هغه ځایه قندوز ته راغلی و او دا محمد د امیر تیمور خوریی و، له مغولي پاچاهانو سره یې ټینګه رابطه درلوده، اولاده یې د شاهانو په دربار کې د عزت او رتبې خاوندان وو، خپله پیر بابا ویلي دي، چې: نیکه مې له ترمذه قندوز ته راغی او ما له ده څخه تعلیم او تربیت ومونده، تر شرح ملا پورې مې کتب له ده څخه ولوستل او پلار مې له همایون ولد بابر سره هند ته ولاړ او زه هم ورسره وم او هلته له علماوو او صالحانو سره محشور شوم، پس له ډېره ریاضته مالك پور ته ولاړم او هلته مې له شیخ سیلونه څخه چې د علم او طریقت خاوند و، تر هدایې پورې کتب ولوستل او څو عمر مې له شیخ سالار رومي څخه استفاده وکړه په تصوف او سلوك مشغول شوم او له دغه سړي څخه زه د طریقت ماذون یم او ده امر راته کړی دی، چې د پښتنو په غرو کې خلکو ته هدایت وکړم[1].

سید علي پس له (۹۰۰ هـ) تولد شوی او د (۹۶۲ هـ) په حدودو کې په هندوستان کې په علمي او روحاني استفاده مشغول و دا سړی چې له مغولو پاچاهانو سره خپلوي هم لري؛ نو طبعاً له دوی سره په سیاسي آمالو کې هم مرتبط ښکاري، هغه وخت چې د تبلیغ او کار کولو لپاره د پښتونخوا غرو ته راغلی دی؛ نو له پښتنو سره داسې محشور و، چې د یوسفزیو د دولت زیو قبیلې یوه ملك ده ته خپله خور هم ورکړه[2] او د

---

[1] تذکره او مخزن او پټان تر ۱۹۸ ص وروسته.

[2] تذکره.

پښتنو په کورنۍ او قبیلوي ژوندانه هم ورګډ شو.

سید علي ترمذي په پښتنو کې مېشت شو، له پښتنو مشرانو سره یې خپلوي وکړه او دونې نفوذ او اقتدار یې وموند، چې په ((پیر بابا)) مشهور شو او له چتراله تر وزیرستانه دده روحاني نفوذ خپور شو، ده خپل مریدان او شاګردان په تبلیغ مامور کړل، وعظ، خطابه، کتب لیکل او د پیرۍ او مریدۍ په رنګ یې خلک تابع کول ددې ډلې کار و او د ډهلي له مغولي حکومته سره هم د دوی روابط دوستانه وو، هغه حکمرانان چې د مغولو له درباره پېښور، بنګښ، کابل، غزني ته مقرر کېدل، دوی به د سید علي له اتباعو سره کومکونه کړل او دغه خلک به هم په شعوري یا غیر شعوري ډول د مغولو د سیاسي مقاصدو لپاره استعمالېدل.

سید علي په پښتونخوا کې تقریباً ډېرش کاله تېر کړل او ډېر ګڼ شاګردان یې وموندل، د دوی جګړه له روښان او روښانیانو سره له اولې ورځې شروع شوه او هر ځای چې به دوی د مناظرې یا اقتدار په میدان کې ضعیف شول؛ نو د مغولو لښکر او حکمداران به هم د دوی شاته ولاړ وو او د حکومت د سرنېزې زور هم ورسره ملګری و. د درویزه په روایت سید علي په (۹۹۱ هـ) په بونیر کې وفات شو[1] او هلته دده مزار مشهور دی، په ژوندانه کې دده روحاني او سیاسي مرکز د بونیر ((پاچا کلی)) و، د سید علي له مریدانو څخه اخوند درویزه او دده کورنۍ هغه خلک دي، چې په خوله او قلم او عمل د روښان مقابلې ته وتلي وو او ددوی ادبي او تبلیغي کارنامې به وروسته په دغه کتاب کې راوړلی شي.

[1] تذکره، ۱۳۳ ص.

پير بابا دوه زامن درلوده، چې يو سيد مصطفى نومېد او بل سيد حبيب، چې دغه دوهم بې اولاد و او فقط د مصطفى اولاد اوس د ننګرهار په کونړ او نورو سيمو کې خپاره دي.

دغو ساداتو د مغولو په عصر کې ډېر سياسي نفوذ درلود او تر يوه قرنه د مغولو په طرفدارۍ د پير روښان له کورنۍ سره د دوی جګړې او مقابلې جاري وې او پښتانه به يې د مغولي حکومت لپاره اېلول او د مغولو له حکمرانانو سره به يې همکاري کوله.

## د روښان نهضت او جنګونه:

روښان چې پخپل نهضت شروع کوله،، د پښتونخوا پر شرقي غرو تر اباسينده د روحانيت او تصوف يوه داسې جذبه خپره وه، چې ټول پښتانه د پيرانو او ملايانو تر اقتدار لاندې وو، سيد علي او اخوند درويزه او نور داسې مقتدر روحانيون دلته موجود وو، چې له دوی سره علاوه تر خپل شخصي اقتدار او نفوذ، د مغولو د دربار قوت هم ملګری و، حال دا چې روښان له مغولو سره جنګېده او غوښته يې؟ چې د هغو اقتدار د پښتنو له سره کم کړي.

دلته نو روښان مجبور و، چې پښتانه پر هغه ډول په يو روحاني کانون سره راټول کړي او خپل مسلکي او سياسي مبادي د يوه روحاني مسلك په رنګ دوی ته وړاندې کړي او هغسې تبليغ دوی ته وکړي، چې ژر يې قبلولای شي.

په دغه ډول نو ده د پښتونخوا په غرو کې يو روحاني او سياسي مسلك تلقين کړ او ډېر پښتانه پر ده او دده پر ملګرو د مريدانو او روحاني مخلصينو په توګه راغونډ شول، ده د خپل

مسلك د تبليغ لپاره كتابونه په پارسي، پښتو، عربي، هندي، وليكل، موعظې يې وكړې، له مخالفينو سره د علمي مناظرو ميدان ته حاضر شو او په اخر كې يې توره يې وكښله او د جنګو پر ډګر يې وينې هم تويې كړې.

د روښان اولين مخالفت په علمي مفاوضاتو كې له خپلې كورنۍ سره ونښت، له خپل پلار او تره سره يې په ځينو مسايلو كې اختلاف پيدا شو، وايي چې د پلار له لاسه زخمي هم شو، د دبستان خاوند ليكي: ما له مېرزا شاه محمد (غزنين خان) څخه واورېدل، چې بايزيد په (۹۴۹ هـ) ډېر قوي شو او دده مسلك په پښتنو كې ومنل شو او شاوخوا خپور شو[۱].

## دی د خپل تبليغ او دعوت اوايل داسې بيانوي:



((پس دوباره در خواب ديدم كه كسى مرا گفت اگر كسى بر تو يقين كند، خدمت و فرمان برادرى تو باخلاص اختيار كند، علم توحيد بروى پنهان مكن، تا از علم توحيد خبردار گردد... بعد از آن آدميان رامعلوم كردم و گفتم هر كه بمن بيايد و يقين و مجاهده اختيار كند، بطاعت قرآن، بحديث انبياء و بگفتار اولياء و مشايخ و بفرمان بردارى من، باخلاص كار كند، بغايت حق از شريعت و از طريقت و از حقيقت و از معرفت و از قربت و از وصلت و از علم توحيد خبر شود...))[۲].

له دې لنډه بيانه ښكاري، چې بايزيد د خپل دعوت اساس پر قرآن، حديث او د اولياء او مشايخو پر اقوالو باندې ايښى و او له شريعته تر وحدته يې ځينې مراتب مقرر كړي وو، چې په لوړو ليكو كې ذكر شوه.

---

[۱] دبستان، ۲۵۱ ص.

[۲] صراط الاتوحيد، ۲۴ ص.

## دعوت او د خلکو رجوع:

په دې ډول بایزید پخپل دعوت شروع وکړه، خلک یې د خدای طاعت او عبادت ته راوبلل، دی وایي، چې د توبې راحتونه سړي ته میسر شي؛ نو د اسلام او قربت او وصلت او وحدت انوار دی روښانوي او د "لیخرجکم من الظلمات الی النور" په معنی پوهېږي، زړه یې د روح مطیع شي او روح د "تخلقوا باخلاق الله" په صفت ستایلی شي، ما له دغې لارې خلک توبې ته دعوت کړل:

((چون این بیان بعضی ادمیان از من بشنیدند بعضی یقین و اعتبار کردند و مجاهده نفس اختیار کردند و راه و مقامها و منزلها حاصل کردند، بعضی منکر شدند بیخبر ماندند دعوی حق و باطل راه و بی راه پیدا شد، پس بعضی ادمیان برای زیارت، بعضی برای توبه، بعضی برای کار دیگر می امدند و مهمان می گشتند در آن چند سال مال دنیا تمام شد))[1].

بایزید وایي، چې: (۱۲) کاله په دې ډول تېر شوه، ما پر خدای توکل وکړ او د دنیا له کاروباره مې ځان فارغ کړ اوس چې (۲۱) کاله تېر شوي دي ماته په خوب کې الهام وشو چې خپل دعوت د امیرانو او پادشاهانو غوږو ته هم ورسوم:

((درین بیست و یکم سال مرا در خواب یا بالهام بشارت شد، که یک رساله یا خلیفه سوی پادشاهان بفرست؟ تا دعوی توحید در ولایت شان نشان در آرند، تا آن پادشاهان که از علم توحید بیخبر بودند، نیز بطلب علم توحید بگمارند... تا خیرات و حسنات بیفزانید، و سیئآت رابکاهند... مسکین گفته است:

[1] صراط التوحید، ص ۲۵.

نظر دارم سوی پادشاهان و امیران این زمان، که تا کدام پادشاه و امیر باشد که کار دین پاخلاص اختیار کند، تا درمیان پادشاهان دیندار و دنیادار نامدار گردد...))[1].

د دعوت د خپرولو او انتشار لپاره بایزید خپله فارسي رساله د صراط التوحید په نامه ولیکله، دی وایي، چې ((پس پادشاهان و امیران باید که این راساله تا آخر بخوانند، بعمل آرند)).

## د بایزید نصایح:

په صراط التوحید کې بایزید یو شو نصیحته پاچاهانو او مشرانو او امیرانو ته کښلي دي، دی کوښښ کوي، چې دغه نصایح په آیات شریفه او احادیث نبویه او د لویو اولیاوو په اقوالو بنه ثابت کاندي او له دغو نصایحو څخه تاسې دده د دعوت مقاصد معلومولای شئ؛ نو یې لنډ لنډ دلته راوړو:

(۱) **اول نصیحت**: د عقل فضیلت او د معرفت مبادي او د خالق په قدرتو کې تفکر.

(۲) **دوهم نصیحت**: علم باطن او د پیر کامل ضرورت او د اوامر او نواهي رعایت د مرګ یاد او د تقوی لزوم، خوف و رجاء.

(۳) **دریم نصیحت**: صراط مستقیم د انسان په خپل زړه او ځان کې دی، انسان باید ځان تزکیه کړي، د نبي دعوت او د انبیاوو، د خلفاوو دعوتو ته غوږ ونیسي او د توحید په دارالسلام کې داخل شي، د مشرکانو او منافقانو له خویونو څخه ځان وژغوري، امر بالمعروف او نهی عن المنکر ته توجه وکړي او تل د خدای په خفي ذکر مشغول وي؛ له قربته وصلت

[1] صراط التوحید، ص ۲۷.

ته سیر وکړي، له وصلته وحدت ته ولاړ شي.

ددې نصیحت په پای کې دی د توبې آداب بیانوي چې یو سړی څنګه د پیر لاس نیولی شي او دا څه شرایط لري.

داسې ښکاري، چې د بایزید دغه دعوت او تبلیغ پر ځینو خلکو باندې اثر وکړ او دده د ارادت په حلقه کې داخل شول او پس له لږ وخته دده نفوذ له کاني کورم څخه د توچي درې په دوړو کې خپور شو او بیا نو دده مریدان بنګښو ته ولاړل اورکزي او تیراهي او اپریدي قبایل یې د بایزید مریدان کړل. څو وروسته دده روحاني نفوذ په خلیلو او داودزو او مومندو او ګګیانو او یوسفزو کې هم خپور شو او تر ضافو او سوات پورې ورسېده. په دې ډول روښان خپل داعیان د قندهار کاسي او هم شینوارو او بړېڅو ته واستول او هلته یې هم خپلې رېښې ټینګې کړې، بیا نو دده مخلص داعیان سند ته هم ولاړه او له حیدر آباد سره نژدې یې په سیدپور کې خپل د تبلیغ مرکز پرانست او ډېر سندیان یې هم پخپلو مریدانو کې داخل کړه او پخپله روښان د اشنغر په ډهیر کې و او استازي یې د شاوخوا حکمرانانو دربارو او د علماوو مدرسو ته واستول، یو استازی یې د هند اکبرشاه او بل یې د بدخشان میرزا سلیمان ته واستاوه، دغسې یې د بلخ او بخارا او هندوستان نورو شاهانو ته هم قاصدان ولېږل[1] په دې ډول روښان ډېر مقتدر او پوه پیروان وموندل، چې په دغو کې درې خوېشکي ورونه ارزاني، ملا عمر، ملا علي محمد مخلص[2] ادباء او شاعران او عالمان وو، ملا پاینده او ملا دولت اکوزی او ملا دولت مهمندزی هم دده په پیروانو کې

---

(۱) اسلامي دائرة المعارف، لومړی جلد نوی طبع.

(۲) ددې ورونو احوال او اشعار به په درېم جلد کې راوړل شي.

شهرت لري او دغسې هم دولت لوڼ، مېرزا انصاري دده له ملګرو او احفادو څخه مشهور دي.

روښان چې د کاني ګورم په غرو کې تبلیغ شروع کړ او لومړی پلا یې له خپلې کورنۍ سره ټکر وخوړ، بیا نو د کابل له لارې ننګرهار ته ولاړ او د ملک سلطان مومند کره په مېلمستیا پاتې شو او دلته یې پښتنو ته د خپل مسلك تبلیغ کاوه، بیا نو له دې ځایه پېښور ته ولاړ، هلته د خلیلو په غوریاخېلو کې دېره شو او ډېر خلك پر ده راټول شول او په خورا جدیت یې خلك خپل مسلك ته رابلل او د پیرۍ آوازه یې په ټولو پښتنو کې خپره شوه.

د اشنغر له مهمندزو څخه په دغه وخت کې ملا دولت مهمندزی ډېر مشهور سړی و، ده روښان اشنغر ته بوت او ((په کله ډېر)) کې یې ځای ورکړ، دلته د روښان د اقتدار دایره دونې زیاته شوې وه، چې تر کابله هم دده تبلیغات راورسېدل او هرې خوا ته یې کاغذونه واستول او خلك یې خپل مسلك ته رابلل، دا دعوت سید علي ترمذي او دده مشهور شاګرد اخوند دروېزه ته هم وشو!

روښان یوازې خلك خپل روحاني مسلك ته نه رابلل؛ بلکې له یوه معنوي تلقین سره چې د خلکو په زړونو کې اچاوه، تېره توره او کښلې چاړه یې هم په لاس ورکوله، چې له مغولو سره وجنګېږي او د دوی له اسارته ځانونه آزاد کړي[1].

له دې جهته د مغولو دربار په ډهلي کې دې حرکت ته ملتفت و او دا نهضت یې د پښتنو د یوه عمومي کار مقدمه ګڼله او په کابل کې د مغولو حکمدار لیدل، چې له پښتنو سره په توره جګړه ګرانه ده او باید پښتانه پخپل منځ کې سره وجنګول شي، چې له لاسه یې مغول فارغ وي.

[1] حالنامه ۴۷۱ ص.

دلته د مغولو له خوا سید علي ترمذي او اخوند درویزه د پښتنو په منځ کې هغه خلك وو، چې دوی له مغولو سره قدیمه خپلوي او نژادي علاقه هم درلوده او د دوی د حکومت طرفداران هم وو؛ نو طبعاً دا خلك د روښان مقابلې ته وپاڅول شول او پښتانه ځینې د روښان پر خوا او بله ډله د اخوند درویزه پر خوا ودرېدل او د دوی په منځ کې داخلي جنګ تود شو. په دې جګړو کې په زرونو پښتانه مړه شول او هغه مقصد چې د مغولو حکمدارانو درلود ښه حاصل شو.

علاوه پر هغو مسلحو جګړو چې مغولو له روښان سره کړلې، د درویزه او نورو ملایانو له خوا له ده سره علمي او جدلي مقابلې هم جاري وې، چې دا ټوله د سید علي ترمذي، شاګردانو او ارادتمندانو د مغولو د حاکمانو په لمسون ددې لپاره کولې، چې روښان پښتنو ته په بې دینۍ او الحاد بد نام شي؛ مګر روښان له دې ټولو سره په خپل علمي تبحر او فصیحه ژبه مقابله کوله؛ لکه چې دده علمي څېړنې او مناظرې له ملا زکریا سره مشهورې دي او دده مخالفو ډلو دغه په عجیب ډول لیکلې دي، وايي، چې ملا زکریا روښان ته وویل: ته د کشف قلوب او کشف قبور دعوی کوې؛ نو زما د زړه حال راته ووایه! روښان دده په ځواب کې وویل: ته خو اصلاً زړه نه لرې، دغه زړه چې ته لرې، هر خر او پسه او اس یې لري؛ مګر د مومن زړه بل دئ ((قلب المومن اکبر من العرش و اوسع من الکرسي)) روښان ده ته وویل: کشف قبور هم داسې کار نه دی، چې په ظاهري حواسو یې ته ووینې، بايد په کلو کلو د نفس تصفیه وکړې؛ نو به هله ددې قابل شې، چې داسې اسرار ولیدلای شي[1].

---

[1] ائمه تلبیس ۳۵۸ ص ابو القاسم رفیق دلاوري طبع لاهور ۱۹۳۷ (اردو).

## د اشنغر جنګ او د روښان ګرفتاري:

روښان د مغولو پر خلاف علناً د جنګ اعلان وکړ او خپلو مريدانو ته يې امر وکړ، چې د مغولو له اسارته ځانونه وژغوري، د مغولو طرفدارانو له ده سره جګړه شروع کړه، روښان او دده ملګري يې تکفير کړل او هرې خوا ته يې د دوی د بدنامولو لپاره مبلغين وګومارل، د اخوند درويزه شاګردان به په هر کلي او هره دېره او هر مسجد کې ولاړ وو، د روښانيانو تکفير به يې کاوه.

د مغولو له درباره په دغو وختو کې د کابل حکمران محسن خان و، ده وليدل، چې د روښان تبليغات پر پښتنو ډېر اثر لري او د دوی په زړونو کې د آزادۍ هغه جذبات راژوندي کوي، چې پخوا يې درلودل او يوازې د سيد علي او درويزه مخالفت، دده د تحريکاتو دفاع نه شي کولای؛ نو يې عزم وکړ، چې له روښانه سره پخپله عسکري مقابله وکړي؛ نو محسن خان د پښتنو آزادي خواهانو د استيصال په عزم له کابله راووت او د پېښور حاکم معصوم خان هم دده مقابلې ته تيار شو، دوی په اغازپور کې له ډېرو لښکرو سره پر روښانيانو حمله وکړه، د روښان ملګرو له دوی سره په جنګ لاس پورې کړ؛ مګر دلته بيا هغو داخلي مخالفتو، دوی ناکام کړه او محسن خان بری ومونډ. روښان ونيول شو او د کابل په بند کې واچول شو[1]. او دا وقايع ټول د ۹۷۰_۹۸۰ په حدودو کې وو.

## د روښان دوهم نهضت:

روښان لږ وخت په کابل کې بندي پاتې شو؛ ځکه چې دی يو ډېر مقتدر روحاني و او خلک يې ژر تر اثر لاندې راتلل؛ نو په کابل کې هم

[1] تذکره مخزن اسلامي، دائرة المعارف لومړی ټوک.

ده ډېر صمیمي ملګري وموندل، چې د پښتونخوا د غرو وګړو له دې آزاد او مقتدر سړي سره اخلاص پیدا کړ او ژر تر ژره یې د مغولو له زندانه ویوست او ننګرهار ته یې ورساوه.

وایي، چې مېرزا محمد حکیم د همایون زوی چې د کابل حکمران و، د کابل د قاضي خان په وسیله روښان خپل حضور ته وغوښت او دی یې محاکمه کاوه؛ مګر ده د حکمران په حضور کې داسې عاقلانه ځوابونه وویل او د خپل ملي مرام دفاع یې په داسې ژبه وکړه، چې مېرزا محمد حکیم دی له بنده ایله کړ[1].

نو روښان له کابله بیا د پېښور سیمو ته راغی او په لاچه پور کې دېره شو او څه وخت یې دلته خپل تبلیغات جاري وساتل او ډېر مریدان او اخلاص کیشان پر راټول شول، بیا نوله دې ځایه د پېښور شمال (توتي) ته ولاړ او علناً یې د مغولو پر خلاف د آزادۍ په جنګ لاس پورې کړ؛ ځکه چې دغه ځای هم د مغولو تاړاك ته نژدې و؛ نو وروسته روښان له دې ځایه (تیرا) ته عزم وکړ او د خپل نهضت مرکز یې هلته غوره کړ او په پښتنو کې یې بیا د آزادۍ هنګامه توده کړه او د یوه ((پښتني حکومت)) د جوړولو اساس یې هلته کېښود[2].

## د تیرا کشمکش:

د (۹۹۰ هـ) حدود وو، چې روښان په تیرا کې خپل سیاسي او حربي مرکز ونیوه او اپریدي او اورکزي یې پخپلو سر فروشو مریدانو کې داخل کړل، دلته د اتمان خېلو ځیني خلك هم دده په

---

[1] اسلامي دائرة الامعارف لومړی ټوک.
[2] تاریخ مرصع، تذکره، مخزن.

تابعانو کې شامل شوه او دده نفوذ دونې پر پښتنو خپور شو، چې له تيراهه يې د پر خلك نفې بلند کړل، د تيرا په (چورې) کې د مغولو لښکر په ده پسې راغلل، د غرو خلکو وسله نه درلوده، د چورې دورمې د برې کلکې دي، روښان مريدانو ته وويل، چې: دا دورمې پرېکوئ او سرونه يې تېره کړئ، دا ستاسې وسله ده! روښانيانو په دغه جنګ کې د دوړمو په ذريعه مغول مات کړل او د نېزو کار يې ځنې واخيست[1].

په تيرا کې ځينې خلك وو، چې په باطن کې له مغولو سره ملګري وو او دوی د پښتنو د لستوني ماران وو. روښان دوی ته وويل: ځکه چې ستاسې زړونه له مغولو سره دي؛ نو زما له طريقې څخه مردود ياست! بايد پخپله خپل لاسونه وتړئ او راشئ!.

ستاسې توبه همدغه ده؛ نو له اعتقاده يا له بېرې دېرلس سوه تنه لاس تړلي راغلل. روښان د دوی ګنه ګاران ووژل او ځينې يې له تيرا څخه وشړل، په دې ډول اپريدي، اورکزي، ټول دده فرمانبردار شول[2].

دروېزه ليکي، چې: د چورې په جنګ کې روښان د مغولو لښکر تار و مار کړل؛ نو مغول وتښتېدل او پښتنو اتفاق وکړ، چې ځينې تيرايي خلك له مغولو سره مله دي او د دوی په واسطه مغول، تيرا ته راځي، له دې جهته بايد دوی د ملي خاينانو په ډول له دې آزادو غرو څخه ورك کړه شي؛ ځکه چې د آزادۍ لپاره دغه داخلي خاينان هر وخت مضر دي. په دې ډول (۲۲۰) تنه د مغولو طرفداران ده ووژل او نور چې پاتې وو، ننګرهار ته وتښتېدل او يترا د مغولو له طرفدارانو څخه خالي شوه[3].

اوس نو روښان د پر ملګرې مونږلي وو او له داخلي خاينانو څخه هم لږ څه فارغ شوی و او دغه وخت مساعد و، چې د

---

(۱) تاريخ مرصع، تذکره. (۲) تاريخ مرصع. (۳) تذکره.

مغولو له سلطې څخه نور اسير پښتانه هم خلاص کړي او په پښتونخوا کې د استقلال بيرغ بيا جګ کړي!

## د تور راغه جنګ او د روښان مرګ:

بايزيد پښتانه په تيرا کې سره راغونډ کړل او دوی ته يې وويل: تاسې يو قوم واست، چې تر ډهلي پورې مو سلطنت درلود، اوس د مغولو مريان شواست او د دوی ظلمونه ګالئ او لاړ شئ او دا د غلامۍ کړۍ له غاړو وباسئ!

د روښان دې رږغ پښتانه خپل تللي عظمت او اوسني ذلت او اسارت ته ملتفت کړل او په زرو سپاره او پياده دده په رکاب کې د آزادۍ جنګ ته حاضر شول او د ننګرهار خوا ته يې جرکت وکړ او دلته په (برو) کې ډېره شول.

محسن خان د مغولو حکمدار هم جنګ ته حاضر و او د جلال آباد په څای کې د پښتنو د غرو څار کاوه. له خپلو خونخوارو لښکرو سره راووت او د شينوارو په علاقه کې هلته چې (تور راغه) نومېږي، پښتانه او مغول سره مخامخ شول!

دا جنګ ډېر خونين و، د روښان ملګرو ماته وکړه او پخپله دی هم مړ شو، لهمونږ سره اوس دده د مرګ په خصوص کې دوه روايته دي، اول دا چې د جنګ په ميدان کې مړ شو او په اشنغر کې يې ښخ کړ.

دوهم دا چې: پخپله په خورا تودوخه کې پلی په غرو او رغو کې ژوندی پاتې شو او په لار کې جل وواهه، چې اشنغر ته ورسېده په کلياتې کې په ۱۵۸۵م کال وفات شو او همدلته په اشنغر کې ښخ کړ شو؛ مګر وروسته يې زامنو هډونه راوايستل په صندوق کې له څانه سره ګرځول، وايي چې د يوسفزو په جنګ

کې بیا هغه تابوت اباسیند ته لاهو شو، یا دا چې په وزیرستان کې ښخ کړ شو؛ ځکه چې هلته دده په نامه یو قبر شته.

بل روایت دادی، چې: روښان په جنګ کې زخمي شو؛ نو اشنغر ته ولاړ او په مامن زی کې چې د اکبر پوري له ګلوزي سره متصل ځای دی، مړ شو؛ نو یې هلته ښخ کړ او یوه لوړه ګنبده یې هم پر جوړه کړه، چې تر اوسه شته؛ مګر زامنو یې وروسته دده تابوت له هغه ځایه یووړ او اټک ته یې لاهو کړ[1].

اما یو بل هندی مؤلف وایي: د افغانستان د غرو په سلسله کې د بټه پور پر غره د روښان قبر دی[2].

پخپله حالنامه دا وایي چې په (۹۸۹ هـ) د روښان اخلافو دده تابوت په بټه نګر کې ښخ کړ، چې دغه ځای له کاني ګورم څخه درې ورځې لار مسافه لري[3].



او اوس په کاني ګورم وزیرستان کې یوه مشهوره هدیره د (میا پیر ولي) صاحب په نامه مشهوره ده او خلک یې د پیر روښان د خاندان مقبره ګڼي او یوه کورنۍ (پیران) هم هلته شته چې ځانونه روښان ته منسوبوي[4].

ګریرسن یو انګلیسي مستشرق د روښان مرګ په (۱۵۸۵=۹۹۳ هـ) لیکي[5] مګر اولف کېرو وایي، چې دغه تاریخ ډېر پس دی او روښان به تر دغه دمخه په بړو کې وژل شوی وي؛ ځکه چې په (۹۸۹ هـ) د اکبر لښکر و جلاله (د روښان زوی) ته

[1] تذکرة الاولیاء د امیر احمدشاه رضواني د لاهور طبع ۱۳۲۱ق، ۱۴ ص.

[2] ائمه تلبیس ۳۵۹ ص.

[3] حالنامه ۱۵۶_۴۸۳ ص.

[4] دا معلومات ماته له جنډولي څخه ښاغلي عبدالقیوم شاه لیکلي وو، چې ددغې کورنۍ یو سړی دی.

[5] لنګویټك سروې اف انډیا ۱۰ ص، ۱۰ ج.

شکست ورکړ او د روښان درې زامن یې ووژل او دده ښځه یې هم بندي کړه او تابوت یې وسوځاوه ایرې یې په اټک کې واچولې؛ نو معلومه ده، چې روښان تر دغه کال دمخه مړ شوی و[1].

دا خبره صحیح په نظر راځي؛ ځکه چې د دبستان خاوند هم لیکي په هغه کال چې اکبرشاه کابل ته ولاړ، د پښتنو قبیلو مشر جلال الدین د روښان زوی و[2]. دغسې هم ابوالفضل د (۹۹۴ هـ) په وقایعو کې لیکي چې په دغه کال د پښتنو قبیلو په جګړو کې د دوی مشر (جلاله) و[3] بلکې عبدالقادر بن ملوکشاه بدواني تصریح کوي، چې په (۹۸۹ هـ) د روښان څورلس کلنی زوی جلاله د اکبرشاه حضور ته راغی، هغه وخت چې دا پاچا له کابله بېرته هند ته ستون شو[4].



له دغو ټولو روایاتو ښکاري، چې د پیر روښان مرګ باید تر (۹۸۹ هـ) دمخه وي او ځکه چې په دغه کال لاهم دده تابوت موجود و؛ نو ممکنه ده، چې وفات یې په (۹۸۸ هـ) کې وي او په دې حساب نو دده عمر به له (۹۳۲ هـ) څخه تر مرګه پورې (۵۶) کاله وي.

په هر صورت له دې سرې سره د مغولي دربار جفا او دده له مړي او ښځې او اخلافو سره ظلم د زاړه استعمار فجایع دي او موږ اوس دده مزار او د وژلو تاریخ په یقیني ډول نه شو ټاکلای.

بعد از وفات تربت ما بر زمین مجوی
کاندر قلوب مردم عارف مزار ماست

---

[1] پټان ۲۱۰_۲۰۳.

[2] دبستان ۲۵۲ ص.

[3] اکبر نامه مغولي مؤرخان د روښان زوی جلال الدین توهیناً جلاله بولي.

[4] منتخب التواریخ ۳۴۹ ص، ۱ ج د کلکتې طبع ۱۸۶۸ م.

# د بايزيد علمي او ادبي آثار

د بايزيد له پاتو آثارو څخه دا ښکاري، چې دى په عربي او اسلامي علومو پوه و، په تفسير او حديث او فقه کې يې مطالعه لرله، په معقولو او فلسفه کې هم لږ څه بلد و، په تصوف کې نظراً او عملاً داخل و، په ادبي علومو کې يې هم لوست کړى و.

څلور ژبې بايزيد ويلاى او ليکلاى شواى، پښتو، فارسي، عربي، د پنجابي يوه لهجه؛ نو دده ليکنې او کتابونه هم په څلورو ژبو دي[1] اخوند درويزه وايي: دده د پښتنو لپاره په پښتو موزونې او له طبع سره سمې خبرې جوړولې او پارسيانو ته يې په پارسو او هنديانو ته يې په هندکو[2] او دده ډېر آثار ليکلي دي، چې اوس موږ ته فقط دغه معلوم دي:

## ا ـ د پښتو رسم الخط:

داسې ښکاري، چې پير روښان د پښتو ژبې ځينې حروف چې مخصوص اصوات لري او د عربي او فارسي حروفو له اشکالو څخه هغه اصوات نه زده کېږي، په يوه مخصوصه رساله کې ترتيب او توضيح کړل او د هغو د ليکلو شکل يې وټاکه، که څه هم پښتو ژبې پخوا رسم الخط او کتب او آثار درلودل؛ خو په دغه وخت کې به هغه مهجور شوي وو؛ نو ځکه ده يو څو پاڼې

(۱) دبستان مذاهب.

(۲) مخزن اسلام.

رساله پر ولیکله. دولت د روښان یو مرید وایي:

افغاني لفظ مشکل ولوست کوښښ نشه
ورته وشوه کننده دیارلس حـــروفونه[1]

د خیر البیان کومه خطي نسخه چې پخوا له سر ډینس راس ځخه په لندن کې وه او اوس د غربي جرمني په یوه موزیم کې پرته ده[2] دغه د رسم الخط رساله په سر کې لري، چې (۱۴) مخه ده، ددې رسالې او د ارزاني او دولت قلمي دیوانونه چې ما لیدلي دي، رسم الخط یې یو راز دی، له فارسي او عربي سره مشترك حرفونه هسې لیکي، لکه په نستعلیق رسم الخط کې چې کښل کېده؛ مګر د پښتو خاص توري داسې لیکي:

ټ

دا شکل اوس هم شته او په خیرالبیان کې هم دغسې دی. مثلاً اټکل، پټول، پټ چې کټ مټ یې موږ هم دغسې لیکو.

ځ

دا توی هم اوس هغسې لیکو؛ لکه بایزید چې لیکلی دی، مثلاً ځلور، خرځ، ځیز، میرځي.

څ

دا توری بایزید داسې نه لیکي؛ بلکې تر (د) لاندې یو ټکی ږدي، مثلاً څما (ډما) او څیني (ډنې) نمونځ (نمونډ) ورڅ (ورډ) چې هر ځای دال لاندې ټکی لري (ډ).

---

[1] د دولت خطي دیوان ۳ ص.

[2] دا واحده خطي نسخه یو وخت د برلن په موزیم کې په نمبر ۴۰۹۳ موجوده وه ټوله (۳۳۰) مخه ده، هر مخ (۱۱) لیکې لري او ښاغلي ښهنوا ددغې نسخې یو عکس اخیستی دی، چې اوس یې ماته د کتلو لپاره راکړی دی.

### ډ

دا توری هم د اوس په ډول دی؛ لکه ډېر، برمنډ، شونډه.

### ړ

کټ مټ د اوس په ډول ده لکه: زړه، کړی، غړ غړ کول.

### ږ ژ

په خیرالبیان کې بالکل د (ژ) شکل نشته او ټول کلمات چې اوس د (ژ) توری پکې دی، فقط په (ږ) لیکي، مثلاً روژه (روږه) ژبه (ږبه) وژني (وږني) پېژنم (پېږنم) ژر (ږر) پېژندګلي (پېږندګلي) ژوندی (ږوندی) ژغوري (ږغوري) ژوي (ږوي).



### د = ږ

"ږ" چې د پښتو له اساسي ږغو څخه ده، په خیرالبیان کې (د) لیکل کېږي، یعنې دال یو ټکی په منځ کې لري؛ لکه: سازیدی (سازېږي) پوهېدی (پوهېږي) مزك بدو (وارو کودوم وبوږنم پوړمي کودول واړږوي (مزکه به دوه واره وکوږوم وبه وژنم په ړومي کوږول واړه ژوي) پرېد دی (پرېږدي)، دا شکل عربي ذال ته نژدې دی؛ مګر د عربي (ذ) ټکی پر سر دی او خیرالبیان (ږ) په منځ کې ټکی لري (د).

### ښ

کټ مټ دغه اوسنی شکل لري؛ لکه ښ تښتن، تورکښ، ښېګړه، پکښې، پښه، راوښیه، لښکر، فرښته، کښې او نور.

## ڼ

دا شکل هم قدیم دی او په خیرالبیان کې کټ مټ دغسې دی، کوم خلك چې دا (ڼ) اوس (نړ) لیکي، دا مرکب شکل مناسب نه ښکاري؛ ځکه پخپله (ڼ) د پښتو یو مستقل ږغ دی، مرکب نه بلل کېږي؛ لکه: کوڼ، کیڼ، ګڼ.

په نورو حروفو کې د خیرالبیان املا د فارسي املا په ډول ده؛ خو تر (س) لاندې چې کشش داره لیکل شوي وي، درې ټکي هم شته او هغه کلمات چې په پای کې (ه) یا (ی) ده، اکثر بې له (ه، ی) لیکل کېږي لکه: هغ (هغه) زړ (زړه) نزد (نزده) وت (وته) ك (که) واړ (اړه) وړاند (وړاندې) مزك (مزکه) ښېګړ (ښېګړه) او کلمات اکثر یو ځای لیکل شوي دي لکه: پقرآن کښېدي (په قرآن کې دي) وپښې وتدګوري (و پښې وته دې ګوري) مسخرك (مسخرې که) خوښیوي (خوښي وي) پکښیو (پښکښې و) بورشي (به ورشي) تلاتل (تل د تل).

ګ اکثر ک، او کله ک، او چه، چې، او کښ، کښې، او پړ، پور، لیکي دلوړې
لپاره د نمونو جملې د خیرالبیان په اصلي املا وکوری، حکمت میدرک حکمت می وورکړ
او خلاسیدن د ماز ونښتې د لوس د شیطان، او نه خلاسیدن زماز نه له نښتې د لوس
د شطان، او پښت د لوس را او په تقوته د لوس،

چیا رو بده پژب میویل چې خدای یو دی (چه ما رو بده
په ژبه می ویل چه خدای یو دی) پیننده یا پد رروڅ کښې (په پنځه
یا په دری روڅې کښې) ز به درو ښیم د تا وت پخپل قدرت
پځلور ژبې خیرالبیان څه شو، کت له غو وراند بیخبرو لخیرالبیان
(زه به درو ښیم د تا وته پخپل قدرت په څلور ژبې خیرالبیان
څه شوک ته له دغو وراندې بېخبرو ې له خیرالبیان، ورق ۱۰۳) نبي لیدلي
صلعم بانګ زن چه صلاح فلاح وة ورسی مخ د و ښیو کښ رخوة کړ زوی
لی الدام، چې ئی اروی هغ دهم وایلي لاحول د عظیم پور تمام (نبي
ویلي دي صلعم بانګ زن چه صلاح فلاح وته ورسی مخ دې و ښې

وکین رخ وته گرزوی بی اقدام چه نی اروی هغه دي هم والي لاحول دعظیم
پوری تمام)) (ورق ۵۹)، کوردلیوه نخښی هغه دچی پښپه یرگرزی دنوس
پهوس پطلب دمرد اریادد نوران یاد نوریځیزدیارچیه دوی خوردندی
عیان. همی چیښپه دیرگرزی فرمان بردار دښیطان عیان د ننوس
پهوس دغلادکاسیری د پار یاد نور حرام، کوره دلښخښه هغه ده چه په ښپی
یرگرزی دنوس پهوس په طلب دمرداري، یادخداوندان، یاد نورچیزدیار
چه ددوی خوردن دي عیان. همی چه په ښپه دغلادکاسیری دپاره یاد نور
حرام ((ورق ۱۴۱)) (۱)

۲ـ **صراط التوحید**: دا کتاب بایزید په (۹۷۸ هـ) لیکلی او مطبوع (۱۱۵) مخه دی، د کتاب په پای کې یې کښلي دي ((تصنیف این رساله بایزید مسکین انصاري قدس سره العزیز در سنه ثمان و سبعین و تسعمائه و نامش ((صراط التوحید)) نهاد، هر که بخواند و بآن عمل نماید، بعلم توحید بهره مند شود و مسعود گردد، اگر جایی سهوی و خطایی افتاده باشد، باید که برای آنکه این مسکین بظاهر علم (نه) خوانده است "عفوه گردد")) [۲]. د حالنامې مؤلف لیکي، چې روښان د دغه کتاب یوه نسخه د اکبر باچا دربار ته هم استولې وه [۳].

ددې کتاب په اول کې د خپل طفولت حال لیکي، چې د پیر کامل په طلب کې و او د دغې برخې اقتباسات ما دمخه دده په احوال کې ولیکل، بیا نو پخپل دعوت شروع کوي او درې

---

[۱] دا نمونې تش د املا د توضیح لپاره انتخاب شوې، پر خیرالبیان تفصیلي خبرې وروسته شته.

[۲] صراط التوحید، ص ۱۱۶، د هند په جالندهر کې د انصاریانو په کورنۍ کې د صراط التوحید یوه نسخه وه، چې د تصنیف تاریخ یې هم دغه (۹۷۸ هـ) ښودلی شوی و.

[۳] انسایکلوپیډي آف اسلام، ۱ ج ماده بایزید.

نصیحته خپلو معاصرو بادشاهانو او مشرانو ته انشا کوي، چې ددغو درو نصیحتو لنډون هم دمخه ما وکېښ.

تر دې وروسته بایزید د توبې اصول او د پیر کامل صفات بیانوي، بیا نو د طریقت او سلوك مقرر کړي مقامات په نوه نوه باب کې ښیي، مثلاً اول باب د شریعت بیان دی، دوهم باب د طریقت او درېیم باب د حقیقت او ذکر خفي او څلورم باب د معرفت او پنځم باب د سکونت، چې باید شپږ اربعینه ولري؟

د صراط التوحید رساله په لوړ ډول ختمېږي، په دې رساله کې نیم مقاصد په فارسي او نیم هم په عربي دي، امراوو او شاهانو ته اول په عربي خطاب کوي، بیا نو هغه په فارسي ترجمه کوي؛ مګر د ادب له پلوه هم عربي هم فارسي ډېر نواقص لري او داسې ښکاري؛ لکه یو عجمي چې په تکلیف ماته ګوډه عربي لیکي، یا کوم پښتون فارسي وایي!



بایزید کوښښ کوي، چې خپل مقاصد په آیاتو او احادیثو او عربي مقولو ثابت کاندي؛ مګر هغه احادیث، چې دی په دې رساله کې رانقلوي، اکثر یې د علم او فن له رویه صحیح او ثقه احادیث نه دي او ډېر لږ منقولات یې صحت مومي او له دې څخه ښکاري، چې بایزید په منقولاتو کې ډېر ثقه او پوخ عالم نه و او د احادیثو په روایت کې یې پر علمي اصولو اتکاء نه ده کړې؛ بلکې هر څه چې یې د حدیث په نامه لیدلي دي، هغه یې رانقل کړي دي.

مګر دا کار لومړی پلا بایزید نه دی کړی، تر ده دمخه ډېر مشهور علماء داسې تېر شوي دي، چې د احادیثو په روایت کې یې دقت نه دی کړی او ضعاف یې په قوي احادیثو ګډ کړي دي! په معتبرو تفاسیرو کې لکه کشاف، بیضاوي هم موضوعي

احادیث شته او د امام غزالي په احیاء العلوم غوندي مهم کتاب کې ډېر احادیث موضوعه او ضعیفه راغلي دي، چې حافظ زین الدین عبدالرحیم عراقي د احیاء العلوم دغه احادیث تخریج کړه او د کتاب نوم يې ((مغني)) دی او بیا دغه کتاب د مجدالدین فیروز ابادي د قاموس د لیکوال له خوا مختص کړ شو او محقق علماء دېغې احادیثو په باره کې داسې فرمایي:

((لازم نیست اگر حدیث موضوع باشد، آنکه مضمون او صحیح نباشد، چه بسیاری از موضوعات از قبیل حکم اسرائیلیات و از مقولهٔ کلام حکما و مقولات مشایخ طریقت میباشد...))[1].

په دې ډول هغه چې د احادیثو په نامه په صراط التوحید کې رانقل شوي دي، د علم له پلوه لوړ حکم لري؛ خو موږ ددې رسالې له وجناتو (شکل او بڼې) څخه دا معلوموو چې بایزید د نقلي تحقیق او علمي پلټنې خاوند نه و؛ بلکې د ذوق او شهود او معنوي خوندونو له پلوه يې خبرې کولې!

تاسو د بایزید د پارسي انشاء نمونې د صراط التوحید په حواله دمخه لیدلې دي، دغه نسخه چې پیدا شوې ده، ډېره مغلوطه او مغشوشه ده، ګومان کوم چې یو خو پخپله د بایزید انشاء په پارسي کې ماته ګوډه وه او بیا نو ښایي چې نقالانو هم دا کتاب مسخ کړی وي!

دلته د عربي لیک نمونه هم راوړله کېږي، چې دا هم ضعف تالیف او ادبي غلطۍ ډېرې لري. ("و اعلموا یا اهل الملوک والامراء ان الانبیاء والاولیاء والمؤمنون المخلصون لا یسکنون

---

[1] نقد الثقات فی تزئیف الموضوعات قلمي ۶ ص، د مولوي حبیب الله قندهاري لیک.

فـی الحقیقـة و یرفعـوا اقـدامهم عنـه الـی معرفـة[1] و موتـوا ابصـار قلـوبکم[2] عـن العمیـة و عـن رویـة سـوی الله و حیـوا بالبصـایرو بروٸـة الله مـن مـات ابصـار القلب عـن العمیـة و عـن روٸـة سـوی الله و حیـوا بالبصـاٸر و بروٸـة الله صـار صـاحب المعرفـة و مـن اهـل العارفین و یحصل الدعیه حیوة و تجلیة الروح»[3].

لـه دې مـاتې ګـوډې عربـي څخـه سـړی مقصـد هـم ښـه نـه شـي فهمولای ، ادبـي ښـېګـړې او بلاغـت او لـه ګرامـره سـره برابـري خـو پرېـږده، لاندې تاسـې ددغـو عربـي جملـو معـاني هـم پـه فـارسـي وګـورئ، چـې لـږ څـه مقصـد څـنې ښکـاري؛ مګـر خبـره خـو داده، چـې فارسي يـې هـم يـوه بليغـه او ښکلې ژبـه نـه ده، تعقيـد او ابهـام لـري او لـه دې څخـه ښکـاري، چـې د بايزيـد اعتـراف د رسـالې پـه آخـر کـې صـحيح دی، چـې «ايـن مسـکين بظـاهر علـم نـه خوانـده است» دا ده دواړو عربي ګډو وډو عباراتو فارسي ترجمه:

«بدانيد ای ګروه پادشاهان و امیران! بدرستی که انبیا و اولیاء و مؤمنـان مخلصـان در حقیقـت قـرار نبودنـد ، و قـدم خـود ازآن سـوی معرفت برداشته بودنـد ، و بنـائی دل را از کـوری، و از دیـدن غیـرالله میرانیده بودند ، و بینائی بدیدن حق زنده ګردانیده بودند ، و صاحب معرفت و تجلی روح کرده بودند ...».

دا خـو د عربـي عبـارت تحـت اللفـظ ترجمـه وه، چـې بيـا هـم ابهـام او تعقيـد لـرئ او لاندې فارسـي شـرح بـه يـې لـږ څـه مقصـد درته ښکاره کاندي، چې وروسته بايزيد ليکي:

«پـس مـی بایـد شـمار را کـه در حقیقـت قـرار میباشـید ، و ازان

[1] په اصل کې مغفرة دی؛ مګر په پارسي ترجمه کې معرفته دی.
[2] کذا فی الاصل، له پارسي ترجمې څخه ښکاري، چې باید قلوبهم وي.
[3] صراط التوحید، ۶۸ ص.

سوی معرفت (قدم) بر داريد و بينائی دل را از کوری و از ديدن غير خدای بميرانيد به بينائی بديدن حق زنده گردانيد.

هر که بينائی دل از کوری و از ديدن غير خدای بميراند، به بينائی بديدن حق زنده گرداند، صاحب معرفت و از گروه عارفان گردد، و مرا ورا دروی حياتی و تجليهٔ روح حاصل گردد و با عارفان محسوب گردد، و کاری و ی بآيت قرآن و بحديث انبياء صلواة الله عليهم موافق گردد، و علامت "وجوه يومئذ ناضرة الی ربها ناظرة)) دروی ظاهر گردد ..."[1].

د صراط التوحيد پر ادبي کمزوريو او ژبنيو نواقصو دغومرې ليك کفايت کوي، اوس به يې اصل موضوع ته يوه کتنه وشي:

تر هر څه دمخه بايد دا ووايو، چې بايزيد د منقولاتو پوخ او مدقق عالم نه دی، چې خپل ليك په علمي ډول تر تدقيق او انضباط لاندې راولي، له دې جهته دغه رساله چې صراط التوحيد نومېږي، کوم علمي ترتيب او ارتباط نه لري؛ لکه چې تاسې ولوستل، خپل سوانح او افکار يې له وړکتوبه بيان کړي دي، چې څنګه د پير کامل په طلب کې و او نه يې موند او څنګه يې په سير او طلب او رياضت شروع وکړه! دی وايي، چې ماته په زړه کې راوګرځېده، چې خلکو ته د توحيد دعوت وکړم؛ نو مې دا رساله وکښله، تر (۳۳) مخه پورې دغه خپل احوال بيانوي، بيا نو درې نصيحته تر (۸۵) (مخه) پورې خطاب اميرانو او پاچاهانو ته ليك، له (۸۵) مخه څخه لومړی باب د شريعت بيان شروع کېږي، دوهم باب طريقت، درېم باب حقيقت، څلورم باب معرفت، پينځم سکونت دی، په دې رساله کې بايزيد د ځينو

[1] صراط ص ۶۹.

کتابو نومونه اخلي او د مضمون حواله ورکوي؛ لکه مقصد اقصی[1] او اقصی، او امیریه و درویشیه، چې غیر معروف کتب دي.

تاسې د صراط التوحید اقتباسات د بایزید په احوال او عرفاني افکارو کې مفصلاً په دغه کتاب کې مطالعه کولای شئ.

## ۳_ حالنامه:

د دبستان مؤلف وايي، چې: پیر روښان یو کتاب لیکلی او خپل حال یې پکې بیان کړی و:

((و حالنامه کتابی دارد که در آنجا احوال خود را باز گذارده))[2]. دا خو د دبستان د مؤلف قول دی، اما د حالنامې یوه نادره خطي نسخه ۵۲۶ مخه د هند د علي ګړه په شرقي کتابخانه کې (نمبر ۹۲۰/۳۷۰) شته، چې په پارسي ژبه ده او مؤلف یې علي محمد مخلص د ابابکر قندهاري زوی دی[3] مولوي نیاز الدین انصاري لیکي، چې: حالنامه (۱۵) جزو ده او په دې کې ډاسې غریب او عجیب حالات لیکل شوي دي، چې د روښان لیاقت ځنې ښکاري[4].

ډاسې ښکاري، چې د حالنامې ابتدايي برخې روښان لیکلې او بیا نو دغه علي محمد مخلص دده د اولادو احوال هم پکې زیات کړي دي، وايي، چې د علي محمد پلار ابابکر په

(۱) دا کتاب د عزیز بن محمد النسفي تالیف او پر تصوف یوه مختصره رساله ده، فهرست(۲ _ ۸۳۴).

(۲) دبستان، ۲۵۱ ص.

(۳) د اورینټل کالج میګزین ضمیمه ۳۵ ص مې ۱۹۴۳ لاهور.

(۴) معارف اعظم ګړه ۱۹ج، ۳۳ ص، ۴ جون ۱۹۲۷.

کوچنیواله کې د جلال الدین بن بایزید په خدمت کې داخل شوی او بیا نو د اخداد په لښکرو کې و، خو چې په آخر کې د بایزید له لمسیانو سره هندوستان ته ولاړ او له رشید خان سره چې د روښان له کورنۍ څخه و، په دکن کې مستخدم و او د شمس آباد په رشید آباد کې ناندیر ته نژدې اوسېده[1].

علي محمد د حالنامې په مقدمه کې وایي، چې: ددې کتاب اصلي متن ورو ورو ډېر شو او د روښان زامنو او لمسو د خپلو جنګو حالونه هم پکې زیات کړل او د بایزید احوال یې هم په تفصیل سره وکښل؛ خو دا وقایع تاریخونه نه لري، اما د احوال تفاصیل یې ډېر غنیمت دي او ژبه یې هم سلیسه ده، د اورنګ زېب تر عصره پورې وقایع پکې زیات شوي دي[2].

دوکتور محمد شفیع لاهوري چې په اسلامي دائرة المعارف کې د بایزید مقاله لیکلې ده، د حالنامې له دغې نسخې څخه د بایزید احوال رانقلوي او داسې ښکاري، چې دا کتاب ډېر مفصل او مفید و او ددغې مشهورې کورنۍ غوره تاریخ دی؛ خو دا خطي نسخه تاریخ نه لري. اما دغه علي محمد مخلص د حالنامې لیکونکی د پښتو شاعر او د دیوان خاوند دی او دده د ژوندِ وخت هم د (۱۰۵۸ هـ) حدود تاکلای شوای؛ ځکه دغه رشید خان چې دی یې ملګری و، نوم یې الله داد د جلال الدین زوی او د روښان لمسی و، چې تر ۱۰۲۸ هـ وروسته د مغولو لښکرو ګرفتار کړ او د جهانګیر حضور ته یې بوت[3] او وروسته نو د شاه جهان له خوا په دکن کې د رشید خان په خطاب

[1] حالنامه او ماثر الامراء ۲_۲۵۰.
[2] انسایکلوپیډي آف اسلام، ۱ج ماده بایزید.
[3] تزک جهانګیر ۲_۲۹۰.

حاکم و او په (۱۰۵۸هـ) په دکن کې مړ او د ناندیر په شمس آباد کې پخپل باغ کې ښخ کړ شو[۱].

## ۴_ مقصود المؤمنین:

د دبستان لیکوال دا کتاب د بایزید په تالیفاتو کې داسې معرفي کوي: ((مقصود المومنین بعربي است))[۲] له دې کتابه اوس موږ د دوو خطي نسخو درک لرو، یوه په لاهور کې او بله د حیدر آباد د دکن په آصفیه کتب خانه کې شته[۳] چې په (۱۲۲۶هـ) لیکلې شوې ده.

دا کتاب د روښان د ډلې د اصولو بیان کوي او بایزید د خپل لوی زوی عمر په خواهش لیکلی او کله کله ده ته داسې خطاب کوي: ((زما گرانه زویه!)).

بایزید دا کتاب د خپلو مریدانو د مطالعې لپاره وکېښ، چې تل یې ولولي او عمل په وکي[۴].

د مقصود المومنین له (۲۱) فصلو څخه، اته وروستني فصلونه د بایزید د مقررو کړو مقاماتو په شرح کې دي، چې بیان به یې وروسته راشي.

## د لاهور خطي نسخه:

د مقصود المومنین خطي نسخه، چې په لاهور کې د دوکتور محمد شفیع په کتابخانه کې ده (۹۵) پاڼې لري خط یې

[۱] مآثر الامراء ۲۴۸۲، دیوان دولت ۲۲ ص خطي.

[۲] دبستان، ۲۵۱ ص.

[۳] د برکلمان ترتیب کړې فهرست ۲_۹۹۱.

[۴] انسایکلوپیدي آف اسلام ۱ج د بایزید ماده.

نستعليق دی، متن يې عربي په توره سياهي و، ترجمه يې په فارسي تحت اللفظ ده، چې په سره خط ليکلې ده، د کتاب اول داسې شروع کېږي:

((الحمد لله الذي بعدد معلوم له فهو کثير الاکثر قوله تعالی قل لوکان البحر الخ... قال اصغر و اعجز و اضعف من امت محمد صلی الله عليه وسلم بايزيد انصاري بن عبدالله قاضي قال لي ابن(ـی) شيخ عمر رضي الله عنه. الله اکبر، ان کان رضائک اکتب لاجلی و ابناء و اهل عيالک بآيت القرآن و باحاديث الانبياء و باقوال الاولياء و بدليک نصيحة(؟) ثم اجبت قوله و اريد ان يکتبها (؟) مفصلاً بمقدار علمي و ادراکي بالعناية و بالمدد و بتوفيق الله باحدی و عشرين فصلاً و سميتها مقصود المومنين و يکتب فيها متصل (؟) موافق حديث و آيت لاجل ان يقرون و يذکرون و يعلمون به مومنون والمومنات...))[1].



د کتاب (په) آخر کې داسې ليکلي دي: ((تم هذه الرسالة مسمی بمقصود المومنين من تصنيف بايزيد الانصاري رحمة الله عليه بدستخط عبدالضعيف راجي الی شفاعة النبي صلی الله عليه وسلم نتها(؟) ولد اخوند شيخ نور محمد سکنه سرسنگه دلرگهر(؟) فی يوم اربع و عشر من شهر ربيع الثاني تحرير يافت سنه ۱۲۲۴)). که څه هم د کتاب په لوړه مقدمه کې ليکلي دي، چې ټول (۲۱) فصلونه لري؛ مګر په دغه نسخه کې دغه شل فصلونه راغلي دي:

(۱) بيان العلم و معرفته و منفعة والنصيحة (۲) معرفت عقل و نور و درجات (۳) معرفة ايمان واصل و فروعه (۴) معرفة الخوف و عقوبته(؟) (۵) علم و معرفت رجاء و عطايئه(؟) (۶) معرفة النفس

[1] دا مقده ماته ګوډه عربي ده چې ادبي او ګرامري مقياس نه لري.

و عداوته (۷) معرفة الشیطان کیده و ضلالته (۸) معرفة القلب وخصاله (۹) معرفة الروح و راحته (۱۰) معرفة الدنیا وصول وغریته(؟) (۱۱) معرفة الاخرة نعمائه و نقمته (۱۲) معرفة التوکل و قناعت (۱۳) معرفة التوبة (۱۴) معرفة الشریعة و اوامر والنواهي (۱۵) معرفة علم الطریقت (۱۶) معرفة الحضور(؟) (یا حصور) (۱۷) معرفة فرضیه (ښه نه ویل کېږي) (۱۸) بصیرت... الروح (۱۹) الوصله، قرین و ذکر وصاله (۲۰) الوصلة و اسراره.

## ۵_ فخر الطالبین:

په حالنامه کې کښلي دي، چې دغه رساله بایزید میرزا سلیمان د بدخشان حکمران[۱] ته هغه وخت ولیکله، چې ده ټولو پاچاهانو ته له خپلې خوا د تبلیغ او تلقین خطونه استول؛ مگر ددې رسالې کومه خطي نسخه تر اوسه چاته نه ده معلومه[۲].

## ۶_ خیرالبیان:

د پیر روښان مهم کتاب چې د پښتو ادبي یوه غوره ذخیره ده ((خیرالبیان)) نومېږي چې راورتې یې نوم (خوریان؟) هم لیکلی دی[۳].

---

[۱] مېرزا سلیمان د خان میرزا (جان مېرزا) زوی و او دغه خان مېرزا د بابر اکا کېده، دغه پلار او زوی د بابر او همایون په وختو کې تر ۹۲۰ هـ وروسته د بدخشان او د افغانستان د نورو ځایو حکمرانان وو او سلیمان په (۹۹۷ هـ) د عمر پر (۷۷) کال په لاهور کې وفات شو (اکبرنامه ۲_۵۱۵_۵۵۱) دا شهزاده د فارسي او توركي شاعر او تخلص یې ذکاء و، دا بیت دده دی:

دلم بگرفت از کار جهان ساقی بده جامی
که یکساعت بیاید این دل سرگشته آرامی

[۲] انسایکلوپیډي اف اسلام ۱ج، (مذاکر احباب خطي ۸۸).

[۳] د پښتو گرامر مقدمه.

د دبستان لیکوال وایي ((و کتابی دارد خیرالبیان، و آن به چهار زبان گفته))[1] صمصام الدوله لیکي: ((خیرالبیان وی نسخه ایست منتخب از اقوال اکابر سلف بر اثبات وحدت وجود))[2].

په اسلامي دائرة المعارف کې پر خیرالبیان هسې لیکي:

((دا کتاب څلوېښت فصلونه و، (حالنامه) چې د اخوند درویزه په قول یې ځینې ټوټې په عربي او فارسي او ځینې په پښتو او هندي وې (تذکره) او یو څو برخې یې ملا ارزاني خویشکي د قصور هستېدونکي چې د روښان خلیفه و، لیکلې وې. کله چې روښان پر ځنکدن پروت و؛ نو مریدانو ځینې خبرې له ده څخه وپوښتلې، ده وویل چې هر څه ماته معلوم وو، هغه مې په خیرالبیان کې لیکلي دي. اخوند درویزه وایي، چې د خیرالبیان ځینې جملې بې ربطه او بې ترکیبه دي (تذکره) خو مریدانو یې دا کتاب دده له الهاماتو څخه مقدس ګاڼه او هغه یې تر دې حده ساته، چې عمر دده زوی په یوه جنګ کې خاص ددې لپاره معطل و، چې د خیرالبیان نسخه یو ځای ځنې پاتې شوې وه او د هغې تر راوړلو لپاره په جنګ ځای کې ولاړ و (حالنامه)[3].

ارزاني پخپلو اشعارو کې دا کتاب د (دیوان) په نامه یادوي، چې په څلورو ژبو و:

د فقیر پښتو دیوان دی
دا دیوان حقاني خوان دی
دی ریخته په څلور ژبې
دی بیان په څو الوان دی
دا کلام د هغه دل دی
چې د عشق پر اور بریان دی[4]

---

[1] دبستان ۲۵۱ ص.

[2] مآثرالامراء ۲ج، ۲۴۳ ص.

[3] انسایکلوپیډي ۱ج.

[4] د ارزاني قلمي دیوان.

د روښان بل مرید دولت داسې وایي:

په څلور لفظه یې خیرالبیان روغ کا[1]
مـــــــوافق شو په آیات په حدیثونه

دا بیت ښکاره کوي، چې روښان بل دیوان نه درلود؛ خو دده په څلور ژبې کتاب هغه خیرالبیان دی، چې اوس ددې کتاب نسخې خورا لږ دي او فقط یوه نسخه* یې د جرمني د ټوبنگن په کتب خانه کې شته، چې ما یې ذکر دمخه کړی دی. ددې کتاب متن پښتو دی او په منځ منځ کې د قرآن شریف آیتونه، یا ځینې احادیث او عربي مقولې او د اسلافو خبرې په عربي رانقل شوې دي او ددغو عربي برخو ترجمه په فارسي ژبه پر حاشیه په یوه بل خط چې د اصلي متن خط نه دی، لیکلی شوې ده او د کتاب په ابتدایي څو مخو کې ځینې جملې د پنجابي ژبې هم شته، چې دا به ضرور د پنجابي هغه لهجه وي، چې په جالندهر کې ویله کېده؛ ځکه چې بایزید او دده کورنۍ په هغه ځای کې اوسېده او ده به په کوچنیواله کې ضرور هغه لهجه زده کړې وي؛ مګر دغه پنجابي او هندي جملې د کتاب په لومړیو مخو کې ډېر لږ دي.

کتاب داسې ختمېږي:

هـــــر آن حرف کز قلم رانده ام　　　بخوننا بها دیده را مانده ام

((تمت تمام شد خیرالبیان بروز چهارشنبه به وقت عصر بتاریخ بیستم ماه مبارک رمضان برای عصمت پنهان بی بی خیر خاتون. کاتب فقیر بهارتونی (طوسی یا نونی؟) مورید (مرید) پیر روښان رحمة الله علیه، هر که ختم کند کاتب رابفاتحه یاد دارد. سنه (۱۰۶۱))[2].

---

[1] د دولت قلمي دیوان.

* د خیرالبیان یوه بشپړ نسخه ښاغلي هېوادمل په هند کې هم مونده، وګ: د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې.

[2] خیرالبیان ورق ۱۶۵ خطي.

# د خیرالبیان نمونې

د خيرالبيان دغه نسخه چې اوس شته او يو عكس يې دلته رارسېدلى دى*، خط خو يې نستعليق او ښه دى؛ مگر د املا د بېلتون له جهته يې لوستل لږ څه مشكل دي او ډېر دقت او غور غواړي.

زه به دلته له دې كتابه يو څو نمونې د پير روښان د پښتو نثر د سبك د ښكاره كولو دپاره راواخلم او په اوسنى املا به يې له توضيحاتو سره وليكم، چې ښاغلي لوستونكي دده نثر او د ليك ډول پخپله ولولي او وگوري چې ددې نثر د سليمان ماكو له نثره څونې فرق دى:

(په دې نمونو كې چې كوم اوږده اوږده عربيات راغلي دي، د هغوى پر ځاى مې (...) ټكي ايښي دي).

## دكتاب پيل (١ ورق):

په نامه د خداى چې بخشاينده دى مهربان. معنى په نامه د خداى په خداى دى عيان.

آغاز د كتاب: څما ډېر ستور[1] صفت وكښه، خوشي مې پيدا شي چې څما ډېر ستور صفت وايي آدميان.

گوره! څما تسبيح وايي چې څما په مزكه كې دى په اسمان.
نشته هېڅ بېرون چې څما تسبيح وايي، ته باور كړه په دا بيان.

* چاپي نسخه يې لومړى ځل د حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي په محشيه او مقدمه په ١٩٦٧ع كې چاپ شو، دويم ځل د همدې خطي عسكي چاپ په كابل كې خپره شوه/ ١٣٥٣ل.

[1] دا كلمه اوس موږ ستر ليكو، د بزرگ او لوى په معنى.

يسبح لله[1] مافي السموات وما في الارض په قرآن کې دی
عيان.
کل شئ قال تسبيح الرحمن[2]، هادي ويلي دي، رحمت د
خدای په ده دا کلام زه عامي مېږه يم، په څه[3] ستا ډېر ستور
صفت وکښم او سبحان!... ته دانا يې او خالق يې د مخلوقان.
ته ژغوروې[4] واړه مخلوقان او ژغورول دې[5] چې لادوی[6]
پیدا شوي نه و عیان.
و ربك على كل شئ حفيظ[7] په قرآن کې دي عيان.
عالم و حافظ کل شيئ کان سبحان.
. هادي ويلي دي رحمت د خدای (په ده) که دریابونه شي څو
پکړندر[8] د مخلوقان ترو واړه دریابونه توري شي یا که له
دغو[9] پکړندر(؟) زيات شي او يا زره کاتبان يا که له دغو

---

[1] اصل. تسبع؟ دا آيت قرآني دی، قرآن، سورت التغابن، آيت او معنی يې په حاشيه کې داسې په فارسي ليکلې ده. بپاکی ياد ميکند مر خدايرا چيزی که در آسمانها و زمين هاست.

[2] حاشيه هر چيز ميگويد تسبيح پروردگار.

[3] اصل: پسه.

[4] اصل: تبزغروې.

[5] اصل: اوږغرده.

[6] اصل: چې لا دويوه.

[7] حاشيه: پروردگار تو بر هر چيز نگاهبان است و نگاهدارندهٔ هر چيز است.

[8] دا کلمه په دغه شکل څو واره تکرار شوې ده، چې معنی يې (عدد، شمار) دی؛ مگر ماته ددې ريښه او اصل په پښتو کې نه شو معلوم ښايي (په) ښېل وي او (کړندر) ښېل او ممکن ده چې د پښتو گڼل، گڼه، گڼو (شمردن) سره ربط ولري؛ خکه چې دا کلمات کله (کړل، کړه، کړون) هم ويل شوي دي اما وروسته (ندر) نه معلومېږي، چې څه شی دی؟

[9] اصل: کلدغو.

پکړنـدر(؟) زیـات شـي، د هـر کاتـب اویـا زره قلمونـه شـي بېګمـان وکښـي[1] او تمـام بـه نـه شـي سـتا د سـتوری[2] ثنـا خبـرې، کـه د کښل په بهنه.

قلمونه مات شي او توري شي تمام...

ولـو انمـا فـی الارض مـن شـجرة اقـلام والبحـر یمـدّه مـن بعـده سـبعة ابحـر مانفـدت کلمـات الله (ان الله) عزیـز حکـیم[3] پـه قـرآن کې دي عیان.

یـا سـتا ډېـر سـتور صـفت هـورې دی[4] پکړنـدر(؟) چـې پتـا معلـوم دی او سـبحان. ان الله کـان علـی کـل شـئ حسـیبا[5] پـه قـرآن کې دی عیان.

لا احصـی ثنـاء علیـك انـت کمـا اثنیـت علـی نفسـك[6] نبـي ویلـي دي صـلی الله علیـه وسـلم. وکښـه پـدا کتـاب صـلوة پـه خـاتم د انبیـا چې محمد دی (ع ـم)[7].

او په واړه پیغامبران چې د دیو دي پسروان.



---

[1] وکښي: نوشته شده.

[2] ستوری ستري: یعني لوړې.

[3] حاشیه: و اگـر باشـد آنکـه بتحقیـق هـر چیـزی کـه در زمـین اسـت از جـنس درختـان قلمهـا و دریـا سـیاهی شـود حـال آنکـه بعـد د هفتـاد دریـا دیگـر مثـل ایـن دریـای موجـوده باشـد، تمـام نشـود سـخنهای صـفتهای کـلام الله تعـالی و بدرستی که خدای غالب است و حکیم است آیت ۲۷ سورۀ لقمان.

[4] هوی دی: هغه دی او هغوني دی.

[5] حاشیه: بتحقیق هست الله تعالی بر هر چیز دانا... آیت شریف دی.

[6] حاشیـه: طاقـت نـدارم ای پروردگـار سـتایش گفـتن بـر تـو چنانچـه سـتایش کردی تو بر خود.

[7] د علیه السلام مخفف توری دی.

وسلام علی المرسلین والحمد لله رب العالمین[1]. په قرآن کې دي عیان...

ومې که رحمت او برکت په تا او ستا په پسروان په محبان، چې دې نغوړي[2] پدا زمانه، په تا دې وي اعلام...

وکښه خیرالبیان، چې یې لولي آدمیان، په هغه هسې الخان، چې یې[3] لوست سورت د الرحمان.

زه عاجز بنده عامي یم، خپسر[4] وتا وته ګنهګار او بد کار ګڼم له واړه ګنه ګارانو له بدکارانو د محمد په امت کې علیه السلام.

ولې امیدواري مې ستا وښېګړې[5] و رحمت و بخشش وته ده، راوبخښه و ما وته او ځما و یارانو فرمان بردارانو و محبتی وته ګناهان.

بل مې زړه قرار شي او ستا و کلام وته وزګار شي- او سبحان!...

تا زده چې په ما پورې مسخرې که او راپورې خاندي ځما په کښل او ځما په لوستن پورې ځیني ادمیان.

راحواله کړه و ما وته هغه چارې چې ځما پکښې د ېرې ښېګړې او ستا خوښې وي (چې) نه مسخرې که نه راپورې

---

[1] حاشیه: سلامتی است از جانب خدای تعالی بر پیغمبران مرسل و ستایش و ستوده ګیها ثابت است مر خدای راکه پروردګار عالمیان است.

[2] نغوړي دا کلمه وروسته تکرارېږي، معنی یې (شنونده) ده، له نغوړل (شنیدن) څخه.

[3] اوس وایو: چې به یې لوست.

[4] خپسر: خپل خان.

[5] اصل: ستا و ښېګړو رحمت.

خانـدي... [۱] ادمیـان او بایزیـده! شـرم دې نشـته چـې در پـورې مسخرې که، یا درپورې خاندي او نه نقصان د ایمان.

ګـوره! هسـې یـې مسـخرې کـړې او خنـدل یـې څمـا پـه پیغامبرانو، په اولیاګانو پورې له تا وړاندې ادمیان...

و تـا مـې عقـل درکـه، ودې لیـده، ودې پېژانـده دده پـه رښـا رښتیا دروغ، امر، نهې، حلال او حرام.

تـرومې ننیوسـت سـتا پـه زړه کـې ډار، امیـدواري. پـه هغـه بهنـه دې کـړې چـارې د اسـلام، د چـارې پـه بهنـه دې لار بیامونـده او هـر مقـام. تـرو حکمـت مـې درکـه او اجتهـاد او نـور د الهـام و هـر چـا لـره چې مې حکمت ورکا، و هغه مې ډېرې ښېګړې ورکړې عیان.

یـؤتی الحکمـة مـن یشـاء و مـن یـؤت الحکمـة فقـد اوتـي خیـراً کثیراً [۲] په قرآن کې دي عیان. فعل الحکمة لایخلو عن الحکمة [۳] نبي ویل دي علیه السلام.

**ورق ۶:**

مـرګ بـه ورشـي و سـړي وتـه ننګهـان [۴] نشـته د سـړي پـه دنیـا کې تل د تله مقام.

ګـوره! ددغـې زمـانې ادمیـان غـواړي دنیـا او هـر چـې پکښـې دي پې مشغول دي ډېر ادمیان.

---

[۱] دلته یو توری نه ویل کېږي.

[۲] حاشیه: ومیدهد حکمت و علم شریعت و معرفت، هر کسی را که میخواهد، و هر کرا داده شد علم شریعت و معرفت، پس بتحقیق داده شد نیکی بسیار. آیت ۲۶۹ سورة البقره.

[۳] حاشیه: کردار حکیم خالی نیست از حکمت. دا غالباً عربي مقوله ده.

[۴] کذا، معنی یې هغه ناګهان دی.

ځیني په کرل یا په بازرګاني یا په پوندګلي[1] یا په ترکښ[2] باندې، ځیني په نور نور چار مشغولي که ادمیان. یعلمون ظاهراً من الحیاة الدنیا و هم عن الاخرة هم غافلون[3] په قرآن کې دي عیان...

مرګ به ورشي و سري وته ننګهان. نشته د سري په دنیا کې تل د تله مقام. ځیني سري هسې ګڼي چې لویه عزیزي په ډېر مال، په زهوزاد[4] یا په ډېره دنیا ده، چې بد بېهوده په زور وایي. نده ځما خوښي چې بد بېهوده په زور وایي ادمیان.

لایحب الله الجهر بالسوء من القول[5] په قرآن کې دي عیان
البلاء موکل بالقول[6] نبي ویلي دي علیه السلام.

مرګ به ورشي و سري وته ننګها. نشته د سري په دنیا کې



---

(1) پوندګلي: شباني او کوچي توب.

(2) دا کلمه په خیرالبیان کې مکرره ده، چې په اوسنی املا تورکش ده، یعنې توري کښونکی او شمشېرباز د قدیمو آریایانو کشتري چې په ویدا کې دی، هم (کش توري) و او د زړې پارسي او اوستا خشتر هم له دغې ریښې څخه دی، چې د مارکوارټ په قول د کشور، شار، شاه، ریښې هم له دغې څخه دي. دا کلمه د اباسین د هندنه په یوه سنسکریت کتیبه کې چې په مسیحي (۷_۸) پېړۍ کې لیکلې شوې ده، (تورشکه) راغلې ده (کابل د پرنس تالیف، ص ۱۲۰) نوکشتري، خشتري، تورکش د جنګي خلکو او عسکریانو ډلې ته وایي، چې حکمرانان او پاچهان وو.

(3) حاشیه: می دانند ایشان آنچه پیداست از زنده ګانی کمینه و حال انکه از آخرت ایشان غافلند آیت ۷ سوره النساء.

(4) زهوزاد: اولاده او کورنی.

(5) آیت ۱۴۸ سوره النساء.

(6) حاشیه: هر بلا ئی که فرود می آید از ګفتار بد. دا حدیث طیالیسي روایت کړی دی (کنوز الحقائق د سناوي).

تل د تله مقام. يا هسې ګڼي چې لويه عزيزي په نبنت[1] ده، د قهر په رانل[2] ده، د تېغ په وهل ده، چې وژني آدميان.

ګوره! دا هسې چارې دي حرام، خذالعفو وامر بالمعروف و اعرض عن الجاهلين[3] په قرآن کې دي عيان...

مرګ به ورشي ننګهان. نشته د سړي په دنيا کې تل د تله مقام يا هسې ګڼي چې لويه عزيزي په زور کاري، په غلا، په طمع۸، په کاسيري[4]، په ناداني ده په ګناهان...

مرګ به ورشي و سړي وته ننګهان نشته د سړي په دنيا کې تل د تله مقام. يا هسې ګڼي چې لويه عزيزي په اسراف[5]، په وراني، په بد فعلي په ميرخي کې ده. ميرخي به نه وي بېرون له نوسه لشيطان، ولاتتبعوا خطوات الشيطان[6]، بيان دي په قرآن...

وايه چې مرګ دي ډېر يادوي آدميان او يا دوي دې عذاب د ځانکدن چې روح يې به وزي[7] له تنه د آدميان...

د ترسکارانو نخښه هغه ده چې لېږې به اوسي ځما د ډار په بهنه له واړه حرام. د محبتي نخښه هغه ده چې هره چاره به که زما د محبت په بهنه ځما په ورمندن[8] ځما د طلب او د

---

[1] نبنت: جګړه.

[2] رانل: راندن.

[3] حاشيه: پيش بگير تو در گذشت را از خطای آدميان و امر بکن بکار نيکی و روی بگردان تو يا محمد از جاهل نادانان. آيت ۱۹۹، الاعراف.

[4] کاسيري: زناکاري.

[5] اصل: اسرف؟

[6] حاشيه: پيروی نکنيد ای مسلمانان قدمهای شيطان را. آيت ۱۶۸، سورة البقره.

[7] په اوسنی ژبه، چې روح به يې وځي.

[8] دا کلمه په خيرالبيان کې مکرره د "امر، طلب، لازموالي" په معنی راغلې ده ښايي چې له "ور+ مندل= ورمندل" څخه مرکبه وي.

پېژندګلي دپاره به ښه چارې که په اندام...

ترو ستا به وي چې یاد کړې عذاب د ځان کندن، د پوښتنې د ګور، د قیامت یاد کړه نامه او تله[1] او عذاب د اور و آدمیان. بل لېږې اوسه د هر مقام له واړه حرام...

ګوره د ځانکدن عذاب هغه دی چې د ګناه ګار، ځانکدن شي وده ته به د ځان کندن په وقت د قهر فرښته له هیبته سره دده د روح د وکښول دپاره ورستوم چې روح یې په ګرانی وکاږي دده له ځانه عیان...

د ځان کندن عذاب یې یو ساعت دده په نظر څو کاله کړم، یو کال به څو د دنیا زر کاله وي او درد به یې هسې وي، چې څوك پوست کاږي د ژوندي حیوان یا به زیات وي له هغه د خیني آدمیان، چې مرګ ورنژدې شي، تروبه وایي ګنه ګار. زار شه په ما چې ولې مې عذابوې سبحان؟...

تروبه و خپلو فرښتو وته وکړم فرمان، چې وایي و ګناه ګارو ته چې تا نه لوست کتاب د خدای؟ چې دې لوست، چار دې نکړه په کتاب د رحمان؛ ځکه دې دا عذاب مندلی دی عیان...

تروبه د هغه پس عزرائیل په قهر ورته ګوري، تروبه هسې ورته وایي: او بې نمازه روحه له دغه بې نمازه تنه راووزه، ترو به یې روح راوباسم پخپل فرمان، دده له تنه، تروبه یې په عذاب کېباسم په تادي وي اعلام..



[1] تله: میزان.

**۳۹ ورق:**

# د شریعت د طریقت د حقیقت د معرفت بیان

ګوره: د شریعت پوه مې د پیغامبرانو ګفتار کړی دی او بنیاد د اسلام بنیاد د مسلمانۍ روا کلمه د شهادت کړې ده چې رښتیا اشهد ان لااله الاالله وحده لاشریك له و اشهد ان محمداً عبده ورسوله وایي په ژبه په زبان عیان. او روا لمونځ شپه ورځ، پنځه وخته دی، د زړه په حضور د جنان... او روا روژه ده لکه روژه د انبیا د اولیا او چې د دوی دي پسروان، روژه د ماه رمضان... او روا زکات د مال، د تن دی د ایمان...

او روا حج چې زیارت د خلیل د جلیل د کور که هر چې طاقت[1] لري عیان... کلمه د شهادت مې د هغو روا کړې ده، هر چې يې نمونځ، روژه، زکات روا دي له آدمیان.

نمونځ، روژه، زکات، حج عبادت مې د هغو روا کړی دی، چې يې که بې غفلته بې حرام. چې يې ځما په پېژندګلی، په یاد، د زړه په حضور ي وي په دین د اسلام...

ګوره تن د سړي په زهرو مري او ایمان يې په حرام. نه به وي د ادمیان، چې وژني ایمان، په چار د حرام. زه نه قبلوم بندګي له حرامو سره د ادمیان. هر چې يې رضا[2] وي چې په رښتیا ځما په بندګي کښېوزي ترو دده به وي چې په هر مقام کې دی لېږي اوسي له واړه حرام.

---

[1] اصل: تاقت!

[2] اصل: رزا؟

**۴۱ ورق:**

**د نمانځه د فرض د واجب د سنت دی بیان:**

- د فرض زده کول فرض، د واجب واجب، د سنت د ادا کول د پاره سنت دی په آدمیان... نمونځ بې اودسه او اودس بې استنجا روا ندی. که د استنجا ځای له درمه زیات پلیت وي عیان.

د اودس وړاندې ستنجی[۱] فرض ده او له نمونځ وړاندې اودس فرض دی، ښه چار هغه ده، چې هره چاره د هغې چارې په مهل[۲] چاره که آدمیان...

تروبه وي چې فرض، واجب، سنت د سنتجی، د اودس له فرض له واجب د سنت، له ادا کولو وړاندې ادا که او مکروهات دې یې مکروه لري او فرض، واجب، سنت د اودس، د نمانځه له فرض له واجب او د سنت له ادا کولو وړاندې ادا که آدمیان...

**۴۵ ورق:**

ګوره د مخ جاربستل د نمانځه د پاره و کعبې[۳] وته شرط او حکم دی په شریعت کې او په طریقت کې د زړه د مخ جاربستل دي په اخلاص دورمندن[۴] د اسلام. او په حقیقت کې د زړه د فهم جاربستل دي او ذکر خفي و فکر دایم مدام.

او په معرفت کې جاربستل د روح دي ځما و یګانګی وته، د قراري و راحت وته دي د آدمیان.

**۵۷ ورق:**

پرېښون[۵] او خوله د سړي، د جنب د حایض د نفاسا[۶] پاک،

---

[۱] کذا، مطلب استنجا ده. [۲] مهل = مهال یعني وخت. [۳] اصل: کعبه وه.
[۴] ورمندن- طلب، حکم، امر. [۵] پرېښون: پس خورده. [۶] نفساء: هغه ښځه چې په نفاس کې وي.

د کافر يا که وي مسلمان هسې لکه پرېښون او خوله د حلال حيوان. که هغه پليتي وي چې څرګندېږي لکه وينه يا زوغل[1]، په لېږې کولو يې[2] پاك شي عيان.

بېرون چې اثر يې پاته وي نه پرې کېږي، يا هغه پليتي وي چې نه څرګندېږي لکه متيازې، يا په شراب يا په نور هسې پليتي پليت وي، په درې واره وله پاك شي، يا هونبره پرېونځي چې زيات ګمان د پاکۍ پيدا شي د آدميان...

که پليتي په موزه يا پيزار وي، تر څو درم ورسي، که وچ شي، په مزکه يې ومېږي، نمونځ په روا دی د ادميان.

که لرګين يا خورين کالی[3] پوزی يا پلاس يا نور هسې کالی پليت شي، په درې واره، هسې وله پاك شي، چې په هر واري څاڅکي ودري عيان.

که اسپرين[4] ياسرولين[5] يا دا هسې نور کالي يا تېغ پليت شي، که يو ورا يې پرېونځي، پاك شي، په خاورو يا په ايرو يې ومږي، په تادې وي اعلام.

**۷۹ ورق:**

ګوره د عيد د نمانځه دی بيان. په کم عيد ثواب دی چې له نمانځه ورانـدې وخوري له اتمام[6]. ښه يا پاکه جامه دې واغوندي چې لري.

---

[1] زوغل: حيواني فضله.

[2] اصل: بلوکوليي.

[3] کالی: دلته د مطلق متاع معنی لري، لباس نه دی.

[4] په اصل کې دغسې ليکلی ښايي چې مقصد يې اوسپني شی وي.

[5] اصل کې دغسې ليکلی دی ښايي چې مقصد يې ځينې مسي شی وي. دا دواړه کلمې د غور وړ دي.

[6] اتام، ډوډۍ او خواړه.

په تن او په جامه دې خوشبويي پورې که هر چې لري عيان...

مسواك او غسل دې وكه، سرسايه دې د عيد له نمونځه وړاندې وركه. د عيد د مزدك په لار دې تكبير په زوره وايي عيان.

نفل نمونځ د عيد له نمانځه وړاندې، نه په كور نه په مزدك، دا ثواب دى د نمونځ كړوني، په تا دې وي اعلام...

د كم عيد په نمانځه كې يوولس تكبيرونه دي، شپږ په ورمي[1] ركعت او پنځه په دووم كې او واجب دي د ستر عيد په نمانځه كې نه تكبيرونه دي، پينځه دې په ورمي ركعت وايي او څلور په دووم كې عيان.

هر چې د عيد په نمانځه كښېوزي، تكبير تحريمه او درې دې پس ووايي، لاس دې وړاندې لري، څو تكبيرونه كه تمام.

دې پس دې سبحانك اللهم، ترو اعوذ بالله، ترو بسم الله، ترو الحمد دې لسورة سره ولولي، ترو دې تكبير وايي، ركوع دې وكه، ترو دې دووم ركعت په لوستن آغاز كه، چې له لوستن خلاص شي، ترو دې درې واره تكبير ووايي، ترو دې څلورم تكبيره ووايي، په هغه دې ركوع كه او نمونځ دې كه تمام.

**۸۸ ورق:**

روژه د رمضان له نيت سره فرض ده، كه عاقل بالغ وي په امتي د محمد عليه السلام. روژه روا ده په نيت د شپې، كه يې وهېر[2] شي، نيت يې روا دى پخوا چې نور[3] وجاورزي عيان...

د نيت وړاندې هسې وايي: يا خدايه! روژه مې درله تالره،

---

[1] ورمي: لومړی، اول. ددې كلمې ريښه په ورمه شپه، لاورمه شپه كې هم شته.

[2] وهېر: هېر.

[3] نور: لمر.

توکل باور مې په تا دی او ستا په رزق روژه کښایم[1]، ترو دې
څه وڅښي یا دې وخوري له اتام.

له کښایل پس دې نیت که چې ګوندې[2] به فرض روده لرم
که خواست وي د سبحان.

روژه له خوړو له څښو له سرو تو[3] منعې که بې شپې
ادمیان...

ماته نشي فرض روژه نفل که په و هېره څه وخوري یا وڅښي
یا صحبت که. یا واچوي بېرون پقصت[4] نه چې یې غلت که[5]
شیطان.

چې پقصت واچوي روژه یې ماته شي، یو دې قضا ولري ولې
کفارت یې واجب نشي په تا دې وي اعلام.

په روژه د سر غوړول، د سترګې تورول د دنیا د ښایست
دپاره بېرون د دارو، ناروا کښلول، د لوبې کړه لهغه، مکروه دي
په آدمیان.

***ورق ۱۰۰:***

نوس اماره، لوامه، ملهمه، مطمئنه له خوی سره ذی په ادمیان.

اماره ځای دی چې پکې اوسي شیطان، او لوامه ځای دی چې پکې
اوسي لښکر د شیطان، او ملهمه ځای دی چې پکې اوسي فرښتګان او
مطمئنه ځای دی، چې پکې روح اوسي عیان...

ګوره لار د شیطان د لښکرو زړه وته و کیڼ رخ وته ده، په زړه

[1] کښایل: کشودن.

[2] اصل: کهند؟

[3] اصل: لسروة، چې غالباً به سروته وي د جماع په معنی.

[4] په اصل کې دغسې دی، ښایي دا ترکیب د انزال یا جریان په معنی وي.

[5] اصل: غلتك.

کې و کینې رخ وته ننوزي، چې وسوس که په ادمیان، له لښکره د شیطان خناس الذي یوسوس فی صدور الناس[1] بیان دی په قرآن...

وریادوي لذت، شهوت، هوس د نوس و ادمیان.

په ښېګړې ورخرګندوي و دوی وته شیطان، و هغو چارو ته به یې لړي[2] لښکر د شیطان، د شیطان د لښکر د نغوتې په بهنه د کینې لوري له یارانو شي آدمیان... ګوره پسو[3] وریادوي لذت، شهوت، هوس د نوس و ادمیان: کشکې ډېر مال د خرچې دپاره، یا دې ډېر ملك د کښت دپاره، یا دې ښایسته اورته په کور، یا برده یا اس وي، یا څناوران، یا نور څېر د دنیا له ما یې وریادوي و ادمیان...

ګوره ښه آواز و غوږ، ښایست و سترګې، خشبويي و پوزې، او وخولې وته مزه د ښو د خوړو د اتام، ښه اغوستن وسله او پسول یا دوی و تن و اندام.

**ورق ۱۵۴:**

## د کتاب خاتمه

ګوره کړی مې دی خیرالبیان، په څلور ژبې، موافق له قرآن. پکې دی بیان د رښتیا د دروغ د حلال د حرام او بیان دی کړونکړ[4] د هر مقام. په تا دې وي اعلام.

---

[1] حاشیه: خناس آنکه وسواس میکند در سینهای آدمیان. آیت سورة والناس پاره ۳۰.

[2] لړي: یعني، یي له لښل څخه مشتق دی.

[3] پسو: داسې او پرله پسې.

[4] کړونکړ: امر و نهې.

ګوره کړې مې دی خیرالبیان کتاب، تهنګ دارو د دین، تندرستي د ایمان او ځراغ د ادمیان.

چار کړه په قرآن، په خیرالبیان او په هغه کتاب چې موافق دی له قرآن د تندرستی، دپاره د زړه د روح د ایمان.

او که چار یې نکړې، بخره دې نشته په خیرالبیان.

ترو دې وشرمېږي له ما چې پند ورکوي و ادمیان بې کردې د خیرالبیان، ګوره هر چې لولي خیرالبیان. او پې چار کا ورته وښیم وده وته ځلور ژبې، خبر به یې کړم د کړ د نکړ له چارې د هر مقام.

پناه به یې کړم د دنیا په ژوندون د نوس له بدی، د شیطان له مکره، له ورکوالي د ایمان... ترو به یې وباسم لمنکری و باور وته، له ګناهه ورمندن وته[1]، له غفلته و یاد مدام. له بېراهی و لار وته، له ناپوهی و پوه وته، له ړندوالي ولیده وته، له کڼوالي و اروېده وته، له جدایی و پیوستن وته او له شرکه و یګانګی وته، له نفاقه و اخلاص وته آدمیان...

ګوره! هر چې لولي خیرالبیان، او پې نکه، ورو به نه ښیم وده وته ځلور ژبې او خبر به یې نکړم د کړ د نکړ له چارې د هر مقام.

ولې پناه به نه مومي د دنیا په ژوندون د نوس له بدی، نه له مکره د شیطان... او ژوندون به یې وي له ګناهان.

ترو به بیامومي عذاب د ځانکندن، د ګور، د قیامت، د اور او عذاب رنګارنګ عیان... یعذب الله الانسان بسبب العصیان و یدخلهم فی راحته بسبب الاحسان هادي ویلي دي رحمت د خدای په ده دا کلام (د کتاب ختم).

---

[1] ورمندن: معروف، طلب.

# د خیرالبیان موضوع او مباحث

د خیرالبیان ډېره برخه پښتو ده، د پښتو جملو په منځ کې د قرآن عظیم آیات او ځینې احادیث یا عربي مقولې د دلیل په ډول راوړل شوې دي او د قرآني آیاتو فارسي تحت اللفظ ترجمې هم د کتاب پر حاشیه لیکلې شوې دي، فقط د کتاب په ابتداء کې چې د املا کومه رساله ده، په هغه کې د پنجابي لهجې ځینې جملې هم لیدلی کېږي.

د خیرالبیان مضامین ټول شرعي احکام او عقاید او د تصوف او اخلاقو مباحث دي، د حلال او حرامو بیان دی او دا ټول د حنفي فقهې له کتابو څخه رااخیستل شوي دي، لکه هدایه، کنز، قدوري او نور...

پخپله روښان خیرالبیان داسې معرفي کوي:

کړی مې دی خیرالبیان، په څلور ژبې، موافق له قران. په کې دی، بیان د رشتیا د دروغ د حلال د حرام او بیان د کړو نکړو د

هر مقام[1].

دا کتاب له لومړۍ پاڼې په حمد و نعت شروع کېږي او تر ۳۹ پاڼې پورې تحذيري خبرې او اخلاقي تبليغونه او له مرګه او د قبر او دوزخ له عذاب بېرونه ده. له ۳۹ پاڼې وروسته د شريعت او طريقت او حقيقت او معرفت څېړنې دي.

د شريعت په برخه کې د اسلام د پنځو بناوو (توحيد ـ لمونځ ـ روژه، زکات، حج) بيان تر (۹۸) پاڼې پورې بيانېږي.

بيا نو د طريقت او اخلاقو بيان (له ۹۹ پاڼې) او د حقيقت (۱۱۷ پاڼې) ذکر (۱۲۷ پاڼې) پېژندګلي او د کامل پير متابعت (۱۳۱ پاڼې) زده او[2] چار د معرفت (۱۳۲ پاڼې) سماع (۱۴۲ پاڼې) قربت، وصلت (۱۴۳ پاڼې).

د خدای وجود په هر ځای او هر څه کې د وحدت وجود په ډول (۱۴۴ پاڼې) موحد (۱۶۵ پاڼې) سکونت (۱۵۲ پاڼې) او نور اخلاقي او د تصوف خبرې دي او د توحيد په مسئله کې البته ډېره شرح لري، چې دغه مشکله خبره يې په پښتو په اسانه ژبه بيان کړې ده او هر ځای يې د قرآن عظيم آيات او احاديث او د اسلامي بزرګانو مقولې د برهان په ډول ورسره راوړې دي.

د فقهې د علم احکام دوه ډوله دي: يو عبادات دي او بل معاملات. عبادات هغه دي، چې په خدای او بنده اړه لري، يعنې د بنده وظايف نسبت و خدای تعالی ته بيان شوي دي، چې لومړی رکن يې توحيد دی، اما معاملات هغه احکام دي چې د بندګانو په (ذات ال) بينې او اجتماعي روابطو اړه لري، لکه نکاح او نور معاملوي احکام په بيع و شری او نورو فردي او

[1] د خيرالبيان خطي نسخه، ۱۵۴ ورق.

[2] دا کلمه مکرره د زده کولو په معنی راوړي.

اجتماعي معاملاتو کې.

خيرالبيان له فقهي احکامو څخه فقط د عباداتو خوا مفصله بيان کړې ده او داسې معلومېږي، چې د غه احکام يې له حنفي مذهبه را اخيستي دي د نورو مذاهبو احکام نشته، يعنې د ائمه وو اختلافات يې نه دي ذکر کړي، لکه د فقهي ځينې کتب چې يې راوړي. د خيرالبيان بل مهم موضوع عقايد دي، چې په دغو کې د اهل السنه له عقايدو څخه کوم اختلاف نه ښکاري او د سنت د پيروانو په ډول يې بيان کړي دي؛ مگر د توحيد په مسايلو کې لږ څه شرح کوي او داسې ښکاري، چې د توحيد پر وجودي او شهودي لارو تللې دي او دا د تصوف يوه مهمه مسئله ده چې ډېر متصوفين دمخه هم پر دغه لار تللي وو او روښان ددغو مکتبو شاگرد دی.

بله برخه د خيرالبيان، په اخلاقو پورې اړه لري، چې اخلاق هم په هغه ډول بيان شوي دي؛ لکه اسلامي متصوفينو چې بيانول. اساساً د ارسطو اخلاق له يوناني منابعو څخه اسلامي فيلسوفانو لکه ابن رشد، ابن سينا، ابن مسکو په فارابي او نورو ترجمه کړل او د دوی د بيان ډول او ترتيب د ارسطو په ډول و.

مگر متصوفانو له اخلاقو څخه هغه برخه او هغه راز بيان غوره کړ، چې د انسان په تزکيه نفس او د طريقت په طی کولو پورې اړه لري،مثلاً دوی صبر، تواضع، توکل، جود، حلم، عفو، محبت، توبه، رضا، عزلت، تجرد او نور نور لازمه عناوين چې د يوه سالك لپاره ضرور وو، په اخلاقي ابحاثو کې غوره کړل، چې د لومړي ډول کتب د ابن سينا تدبير منزل او د ابن مسکو په تهذيب الاخلاق او د الفارابي المدينة الفاضله او نور

دي؛ مګر په دوهم ډول کې د ابن عربي فلسفة الاخلاق او د امام غزالي احياء او کېمياى سعادت او منهاج العابدين او د علي هجويري غزنوي کشف المحجوب دي.

د خيرالبيان اخلاقي برخه هم په دغه دوهم ډول ده، يعنې د الغزالي او هجويري او ابن عربي په ډول د اخلاقو او ښو خويونو بيان او تفصيل دی، نه په فيلسوفانه او حکيمانه ډول، چې د ارسطو د بحثو بيان لار وه.

روښان په خيرالبيان کې په داسې ډول خبرې کوي، لکه خواجه عبدالله انصاري هروي چې کوم مخاطبات له خالقه سره لري او دغه د بيان (هغه) ډول دی، چې دده معاصر علماء يې نه خوښوي او له ده سره اختلاف لري اخوند درويزه او دده ملګري، چې د روښان پر خلاف کومه وسله استعمالوي، هغه هم داده، چې دا بنده له خالقه سره خبرې کړي او په هره مسئله کې له خالقه څخه په (او سبحانه!) سوال کوي او بيا يې جواب په (او بايزيده) سره وايي.

دغه ډول مخاطبه او شرح يقيناً يو نوی کار دی چې پير انصاري هروي يې هم د علماوو په مخ کې بد نام کړی و او دی يې (ولي ګستاخ) باله؛ مګر که موږ د خيرالبيان ابحاثو ته ځير شو، هلته يو بحث او موضوع چې خلاف شريعت وي، يا د اسلامي متصوفانو او متقدمانو په کتابو کې نه وي، نه دی راغلی، له دې جهته پر پير روښان او دده پر ملګرو د الحاد او تکفير حکم کول، ګران کار معلومېږي او ښايي چې د هغه وخت علماء هم د اخوند درويزه په ډول، ټول دده مخالف نه وو؛ ځکه چې دده د خيرالبيان مضامين ټول هغه ابحاث دي، چې د فقهې، عقايد، اخلاقو په کتابو کې د اهل السنه والجماعه له

خوا د مخه لا نوشته شوي وو او ده فقط په پښتو را اړولي دي[1].

**الف: عرفان او تصوف:**

# ۸ـ د بايزيد عرفاني او سياسي افکار

بايزيد اهل السنه حنفي متصوف سړی و، چې دده ديني اعمال پر حنفي مذهب برابر وو او د حنفي فقهې له کتابو سره سم يې په خيرالبيان کې ديني احکام او عبادات بيان کړي دي.

دده په عصر کې د پښتنو اسلامي اعمال او عقايد دوه اساسه لري چې لومړی اساس يې اسلامي فقه او حنفي مذهب دی، دوهم اساس د اهل السنه عقايد او د تصوف د امامانو اقوال او اعمال دي، چې دا هم له اسلامي نصوصو سره موافقت لري او د تصوف د لويو بزرګانو لکه (شبلي ـ جنيد ـ بايزيد) او



[1] پر پير روښان باندې ځينې تهمتونه هم ويل شوي دي، چې خلکو مشهور کړي دي مثلاً په پېښور کې دې خبرې شهرت درلود، چې روښان به ويل: ښځې دې ګلونه چې هر څوك يې بو يوينه، يا چرګ يو مارغه دی چا چې ونيو د هغه دی. له دې جهته نو ملايانو دی د اباحت په تور نيولی دی؛ مګر دا خبرې الحاقي او تهمت ښکاري ځکه لومړی پښتو مقوله ددغه عربي بيت ترجمه ده، چې ابن فقيه همداني په (۲۹۰هـ) پخپل کتاب کې راوړی دی:

ان الانساء رياحين خلقن لکم وکلکم يشتقي شم الرياحين

(کتاب البلدان د ابن فقيه د ليدن طبع ۱۳۰۲ ۴۴ ص).

له دې څخه ښکاري، چې په روښانيانو پسې يو عمومي پروپاګند د سياسي اختلاف په وجه له شاهي درباره روان و چې دوی د الحاد او اباحت په تور بدنام کاندي. دې خبرې ته سراولف کارو په لطيف ډول اشاره کوي، چې روښان خو د سياست لپاره ((پير تاريك يا ملحد و بلل شو))؛ مګر د هغه وخت پاچا "اکبر" خو پخپله هم ددغه نامه مستحق و؛ ځکه چې هغه هم يو نوی (دين الهي) را اېستلی و! (پټهان ۵، ۱۹۹ ص).

نورو بزرگوارانو پر اعمالو او اقوالو بنا دی؛ خو ظاهري علماء هر کله له دغې ډلې سره اختلاف لري او دا د اختلاف هنگامه له پخوانۍ زمانې څخه توده ده، نوې هنگامه نه ده. شيخ شهاب الدين مقتول سهروردي، حسين حلاج، حتی لوی شيخ ابن العربي چې پر دغه لار تله، د ظاهري علماوو له خوا محکوم او مقتول يا د اعتراض هدف و؛ نو اخوند درويزه او د دوی ملگريو پر پيرو روښان او روښانيانو باندې هم اعتراضونه کړي دي او له دوی سره يې معارضې او مشاجرې درلودې، دا خو نوې خبره نه ده، ډېر سوابق لري او د اسلام تاريخ په داسې وقايعو ډک دی.

د روښان پر تصوف باندې مفصل نظر او دده د طريقت او متصوفانه ژوندون تحليل هغه وخت ممکن دی، چې خيرالبيان په انتقادي نظر وکوت شي او دده د مخالفانو خبرې هم وکتلی شي.



اوس چې ماته دغسې مطالعات ميسر نه دي؛ نو زه لنډ لنډ ځينې مطالب دده او دده د شاگردانو له اقوالو څخه را اخلم، دا به يو ابتدايي بحث وي، ښايي چې کوم وخت دغه لنډ او مجمل بحث مفصل کړ شي او له علمي اساسونو سره سم د پښتو د تاريخ دغه تياره گوټ روڼ شي.

لاندې د نمونې په ډول ځينې مباحث وگورئ او بيا به د روښان د شاگردانو او ملگرو په احوال کې هم د دوی عرفاني افکار درښکاره شي (ددې کتاب دريم ټوک).

**وحدت**: په اسلامي صوفيانو کې د وحدت دوه مکتبه موجود دي، چې يو وحدت الوجود بولي او بل وحدت شهود او په پارسي عبارت د لومړي مکتب يو خلص سمبول "همه اوست" دی او د دوهم مکتب ډله "همه ازوست"؛ خو اسلامي تاخرينو صوفيانو دغه دوهم مکتب "وحدت شهود" خوښ کړی دی او

دوی وایي، چې: له کتاب او سنت سره دغه دوهم فکر ښه او ډېر مطابقت لري او محقق علماء دا وایي، چې د وحدت وجود طرفداران هم معذور دي او د دوی اقوال او خبرې که ظاهراً له شریعته سره برابرې نه کړي پیدا، باید تاویل شي او هغو بزرگانو ته بد ونه ویل شي.

علماء وایي: ((توحید وجودی عبارتست از اذعان وحدت در وجود، و توحید شهودی از وجدان وحدت در شهود، و تعبیر ازین توحید در فارسی بیک دیدن میشود و از توحید اول بیک موجود دانستن، و توضیح فرق میان هر دو آنکه معنی اول اعتقاد است بوجود حق تعالی با اعتقاد بعدم، غیر وسوای او تعالی، چه جمیع ما سوای حق تعالی بر مشرب وجود به معدوم محض و موهوم صرف اند، که از وجود و تحقق بهره ندارند، و معنی ثانی وجدان وجود حق تعالی است، فقط با عدم وجدان وجود از غیر او، و منشا این عدم وجدان نسیان ما سوای او تعالی است نه اعتقاد عدم آن))[1].

حضرت شیخ احمد مجدد سرهندی وایي: ((مسئلهٔ وحدت وجود هر چند بظاهر مخالفت بمعتقدات اهل حق دارد، اما قابل توجیه است و شایان جمع، این فقیر بعنایت الله سبحانه در شرح رباعیات حضرت خواجه باقی بالله قدس سره این مسئله رابمعتقدات اهل حق جمع ساخته و نزاع فریقین را بلفظ عاید داشته و شکوک و شبهات طرفین را حل ساخت، بنهجی که محل ریب و اشتباه نمانده، کما لا یخفی علی الناظرفیه...))[2].

له دغو روایاتو څخه تاسې معلومولای شوای: چې د اسلامي

---

[1] رساله خطي توحیدین محقق قندهاري ۲۲۷ ص.

[2] مکتوبات حضرت مجدد؟ مکتوب ۲۶۶.

پوهانو او محققانو افکار د وجود او شهود په باب څه دي؟ او محتاط علماء لکه حضرت مجدد رضي الله عنه څنګه دد غو اقوالو سمونه او تلفیق له اسلامي روایاتو سره کوي.

روښان هم د وحدت په خصوص کې ښه بیانونه په پښتو لري او ډېر ځله د قرآن شریف د نصوصو ترجمه ده، مثلاً د قل هو الله احد مقصد داسې شرح کوي:

((ما هر چیز له خپلې هستۍ د خپلې هستۍ دپاره یو یو کړی دی، په هر یو کې زه یو خدای یم بېګمان + ترو بویه چې ځما د یګانګۍ یاد کا، هر یو چې ویني آدمیان+)).

دلته د "همه ازوست" شرح ده او هر شی د یوه واحد لاشریک مصنوع دی او هر انسان چې د شهود سترګې لري، باید په هر شي کې د لوی خدای صنعت او قدرت ویني.

د الله الصمد لم یلد ولم یولد.... الخ... پښتو شرح داسې کوي:

((زه هغه بې پروا یم، چې هر چار تل بې شریکه بې مله بې کالی کړم،... نشته ځما پلار، زهمن نه خور، ورور...)).

صوفیه وایي: چې الله تر هر څه انسان ته نژدې دی او هر کله حاضر او ناظر دی، (په) قرآن شریف کې راغلي دي، نحن اقرب الیه من حبل الورید، روښان په پښتو هسې وایي: ((زه یم په آدمي کې، ځما هستي په چارسون د ادمیان، زه نژدې یم و آدمیان وته له ځان...)).

ددې خبرې شرح ارزاني د روښان شاګرد هسې کوي:

| | |
|---|---|
| دا ثبات په سرای دننه | غیر نشته الا الله |
| یو الله دی وړاندې بیارته | ښي او کیڼ ته و بالا |
| د مولی په یاد کې اوسه[1] | په ملا هم په خلا |

---

[1] د ارزاني قلمي دیوان.

دولت لواڼی د روښان بل شاګرد وایي:

هر چې نوش د وحدت می کا  د خودۍ مرکب به پې کا
یو دیدن به د دوست ویني  هر نظر چې پر څه شی کا[1]

**بحر وجود:**

صوفیه پر "وجود" ډېر عمیق ابحاث لري، د روښان په تصوف کې هم دا خبره ډېره څېړل کېږي، آیت شریف "ان الله محیط بالعباد" په پښتو هسې شرح کوي:

((کب چې په اوبه کې ګرځي، مخ یې و اوبو ته شي، هسې هر لور وته چې و جاروزي، مخ یې و ما وته شي د آدمیان... آدمیان ځما په هستۍ کې دي، ځما هستي ده په آدمیان)).

مولینای رومي وایي:

هستیت در هست آن هستی نواز
همچو مس در کیمیا اندر گداز
بحر وحدانیت جفت و زوج نیست
گوهر و ماهیش غبر از موج نست

مولینا جامي په لوایح کې وایي:

بحریست وجود جاودان موج زنان
ز ان بحر ندیده غیر موج اهل جهان
از باطن بحر، موج بینی گشته عیان
بر ظاهر بحر، بحر در موج نهان

خواجه عبدالله انصاري هروي لا دمخه ویلې دي:

عشق آمد و شد چو خونم اندر رگ و پوست
تا کرد مرا تهی و پر کرد ز دوست

[1] د دولت قلمي دیوان ۲۵ ص.

جای وجـــودم همگی دوست گـــرفت
نامیست زمن بر مـــن و باقی همه اوست

**همه ازوست:**

آیـه شـریفه ده: هـوالاول والآخـر والظـاهر والبـاطن. مولینـا جـامي رحمـه الله ددې پـه شـرح کـې وايـي: چـې حقیقـت الحقـایق خـو ذاتـاً واحـد دی، هلتـه شـمېر او عـدد لار نـه لـري؛ مګـر پـه تجلیـاتو او شـئونوکـې کثیـر او متعـدد دی، د عـین وحـدت پـه لحـاظ حـق ورتـه وايـي او د ظهـور او تعـین پـه لحـاظ يـې "خلـق" بـولي؛ نـو ظهـور، بطـون، ازلیـت، آخریـت ټـول د هغـه اعتبـارات دي.[1] عرفـاء او متصـوفین پـه حقیقـت کـې وجـود يـو بـولي او نـور يـې ټـول شـئون او د صـفاتو مظـاهر ګڼـي (ومـا رمیـت اذ رمیـت ولکـن الله رمی) روښان د واجب الوجود صفات په پښتو داسې بیانوي:

((هر علم څما لـه علمه دی، هـر نـوم څمـا لـه نومـه دی، هـر زور څمـا لـه زوره دی، هـر آواز څمـا لـه آوازه دی، هـر رنـګ څمـا لـه رنګه دی، هر ستر او لـوی څمـا لـه لویـې دی، هر ښایست څمـا لـه ښایسته دی، هـره تیـاره څمـا لـه تاریکـې ده، هـره روښـنایي څمـا لـه روښنایې ده... زه له هر څه سره یو یم...)).

مولینا رومي دغه د وحدت مراتب هسې بیانوي:

او بصـــنعت آزر اســـت و مـــن صـــنم
آلتـــی کـــو ســـا زدم مـــن آن شـــوم
گـــر مـــرا ســـاغر کنـــد ســـاغر شـــوم
ور مـــرا خنجـــر کنـــد خنجـــر شـــوم

[1] لوایح جامي ۲۵.

گــر مــرا چشــمه کنــد آبــی دهــم
ور مــرا آتــش کنــد تــابی دهــم
گــر مــرا بــاران کند خــرمن دهــم
ور مــرا نــازک کنــد در تــن جهــم
مــا چــو نــائیم و نــوا درمــا ، ز تُســت
مــا چــو کــوئیم و صــدا در مــا ، ز تُسـت
مــا چــو شــطرنجیم انــدر بــر دو مــات
بــر دو مــات مــا ز تست ایخــوش صــفات!
مــا عــدم هــائیم و هســتیهای مــا
تــو وجــود مطلــق فــانی نمــا
بــاد مــا و بــود مــا از داد تُســت
هســتی مــا جملــه از ایجــاد تُســت



(مثنوی)

روښـان د ټولـو وجـودي صـفاتو منبـع فيـاض خـدای ګڼـي او ټـول مصنوعات د هغـه د قـدرت مظـاهر بـولي دی وايـي پـه حقيقـت کـې اروېـدل هـم دده لـه قدرتـه دي او د "سمع" صـفت پـه مخلوقـاتو کـې يــو مجـازي شــی دی، (هــر آواز ځمــا لــه آوازه دی، ځمــا اواز دی اروی لکـه اورېـده بـه سـامعان آدميـان" وګـوری عـين دغـه فکـر د مولينا رومی په دغو بيتو کې:

آن چه باد است اندر آن خورد استخوان
کــو پذيرد حرف و صوت قصه خوان
اســتخوان و باد ، رو پوش است و بس
در دو عـــالم غير يزدان نيست کس

(مثنوي)

ارزانـي خوېشـکي چـې د روښـان لـه ملګـرو ځخـه دی، هـم داسـې

وايي:

چـــارې يو کننده کاندي آدم تشــــه بهانـــــه دی
يو احـــــد شو په څو نامه دا فلانـــه هغـــه فلانـــه دی
خليفه يـــــې دا انسان کا دی پادشـــاه تـــر دا ميانـــه دی.
د زړه عـــــلم فقير کښلی پـــه قلـــم دو زبانـــه دی[1]

ارزانـي دا فـيض او د وحـدت د سـر اصـلي رمـز لـه (فقيـره) اخيستی و او فقير دده په اصطلاح بايزيد روښان دی.

## مشاهده او بې رنګي:

عـــارف هـــر کلـــه ګـــوري او د مشـــاهدې پـــه جـــولان کـــې د مصـنوعاتو او جهـان تماشـا کـوي؛ مګـر هـر وخـت لـه مصـنوعاتو څخه صانع ته او له موجوداتو څخه موجد ته ځي، روښان وايي:

((پـه عـارف واجـد داورمنـدن دی، چـې هېـڅ لـه مـا شـريك نـه ګڼي، هـر چـې شـته پـه دواړه جهـان + پـه هـر نظـر د زړه سـترګې و مـا وتـه نظـر کـه، پـه هـر څـه کـې[2] دی ځمـا هسـتي بـې رنګـه ويني لکـه ليـده عارفـان. زمـا آواز دی اروي لکـه اروېـده بـه سـامعان آدميـان. او خـوښ دې اوسي پـه دا هـر حـال پـه هـر ځـای مکـان. نښـان د عـارف واجـد دا چـار ده پـه تـا دې وي اعـلام[3]. د مشـاهدې دغـه سـير د عارفانو په نزد داسې دی:

د حيـوان تشخصـات او تعيينـات چـې لېـرې شـي؛ نـو لـه انواعـو څخـه فقـط "حيـوان" پاتېږي؛ نـو کـه د حيوانـاتو مميـزات هيسـته شـي يـو مشـترك حقيقـت "جسـم" بـه پاتـه شـي، بيـا هـم کـه د جسـم

[1] د ارزاني قلمي ديوان.
[2] اصل: ځښکې.
[3] خيرالبيان ۱۳۸ ورق.

تحليل وشي؛ نو به "جوهر" باقي وي او که د جوهر او اعراضو مميزات هم تحليل شي؛ نو به مشترك اسم "ممکن" پاته شي، بيا که د ممکن او واجب مميزات هم حل کړه شي، فقط "وجود مطلق" پاتېږي او دا نو د ټولو ذواتو او صفاتو منتهی ده[1] او د مشاهدې اخرنۍ مرحله هم دغه ده، مولينا جامي وايي:

تا چند حديث جسم و ابعاد و جهان
تا کی سخن معدن و حيوان و نبات
يکذات فقد بود محقق نه ذوات
اين کثرت و همی ز شئونست و صفات

مولينای روم هم دا د مشاهدې مراتب چې په آخر کې بې رنگه هستي پاتېږي، داسې بيانوي:

صنع بيند مرد محجوب از صفات
در صفات آنست کو گم کرد ذات
واصلان چون غرق ذاتند ای پسر
کم کنند اندر صفات او نظر
چونکه اندر قعرجو باشد سرت
کی برنگ آب افتد منظرت
هست بيرنگی اصول رنگها
صلحها باشد اصول جنگها
صبغة الله است رنگ خم هو
رنگها يکرنگ گردند اندر او

(مثنوي)

روښانيان ﷫ دغو مراتبو کې ډېر محتاط دي، چې په صفاتو

[1] لوايح جامي ـ ۱۸

او مصنوعاتو او تعييناتو کې پاتې نه شي؛ بلکې "مطابق وجود" او بې رنګه هستي وپېژني، ميرزاخان انصاري د روښان لمسى او دده د مشرب مشهور سړى وايي:

که جهان د حقيقت په نظر وينې
زيان و سود مې د هر چا له خپلې مينې
دانيان په هر ظاهر کې باطن ګوري
د جاهلو زړونه تور شوه سترګې سپينې

دولت لوانى وايي:

د ديدار لذت چې مومي په نظر يې
د جنت لذت به سهل بې مقدار شي
تر ابده به پرې مست وي بېخبر تل
پرې يکسان به غم خوښي ليل و نهار شي
د جنت پر حور غلمان به مينه نه کا
چې ديدار ورته څرګند د پاك غفار شي
اى دولته! ته نظر پر غير مکړه
د عارف د وړاندې درست جهان يو يار شي[1]

## ذکر

په تصوف او طريقت کې ذکر يو مهم موضوع دى او عرفاء يې داسې تعريف کوي چې د حق يادول دي، د ماسوى الله په هېرولو (واذکر رب اذا نسيت) او بايد چې عارف دومرې د حق په ياد مشغول شي، چې بې له خدايه نور هر څه هېر کړي (اذکروالله بنسيان ماسواه)[2].

---

[1] د دولت قلمي ديوان ۱۸۰ ص.
[2] لب لباب مثنوي ۳۳۱ ص.

روښـان ذکـر تـه پنځـه مـرتبې ږدي اول د بـدن ذکـر، دوم د انـدام ذکـر، دریم د ژبـې ذکـر، څلـورم د زړه ذکـر، پـنځم د سـاه ذکـر چـې ددغو شرح داسې کوي:

ذکر مې د تن، د اندام، د ژبې د زړه، د سه[1]، کړی دی عیان.

د تن ذکر هغه دی چې تن و جارباسي له واړه حرام[2].

د انـدام ذکـر هغـه دی چـې عبـادت او یـاري د ښېګـړې کـه لـه آدمیان.

د ژبـې ذکـر هـوی دی چـې کتـاب، تسـبیح پـې لـولي، پـې وایـي ښه کلام. ((وقولوا للناس حسناً)) بیان دی په قرآن.

د زړه ذکـر هغـه دی چـې پـه کښېباسـي څمـا فکـر او څـنې وباسـي اندېښنه د شیطان.

د سه ذکـر هـوی دی چـې ننباسـي او وباسـي څمـا پـه یـاد هـره سـه پـه هـر حـال، پـه هـر ځـای چـې وي ذاکـران آدمیـان. ((واذکـرو الله کثیراً لعلکم تفلحون)) بیان دی په قرآن.

افضـل العبـاد عنـد الله مـن یـذکر الله کثیـراً[3] نبـي ویلـي دي صلعم[4].

پـه دې پنځـو مراتبـو کـې آخرنـۍ مرتبـه هسـې ده چـې عـارف پـه ذکـر کـې فـاني کـوي او لـه هر ساه کښلو او ننه یستلو سره د حق پـه یـاد کـې لوېږي او دا ذکـر اخص دی، چـې عـارف یـو ګـړۍ لـه حقـه نـه فارغ کېږي او نور ټول یې هېرېږي مولینای روم ویلي دي:

---

[1] سه: په اصل کې دوه واره سین زور او هـ زېر لري اوس یې ساه وایو.

[2] اصل: هرام!.

[3] دا حـدیث شـریف د امـام احمـد پـه مسـند او د امـام ترمـذي پـه صـحیح کـې داسـې دی افضـل العبـاد درجـة عنـد الله یـوم القیامـة الـذاکرن الله کثـراً (جـامع الصغیر، ۵۰ ص).

[4] خیرالبیان، خطي ۱۲۸ پاڼه.

ذکر حق پاکست و چون پاکی رسید    رخت بر بندد برون آید پلید

اهل تصوف په دې خبره کې اختلاف لري، چې ذکر خفي ښه دی که جلي؟ ځینې خلك د جلي ذکر طرفدار دي او ځینې خفي ذکر کوي، روښان خپلو مریدانو ته دواړه ذکره تجویز کړي دي، دوی وایي چې له انسان سره باید تل د تله خفي ذکر ملګری وي او په پټ ډول خدای یاد کاندي؛ مګر د سحر پر وخت دوی جلي ذکر هم خوښوي، ارزاني د روښان ملګری وایي:

د حق یاد خاصه جوهر دی    که خفیه دی که جهر دی
د حق یاد فرض دایم دی    نه پر وخت، ساعت پهر دی
که خفیه ذکر هر دم دی    د جلي وخت پر سحر دی

میرزا خان انصاري وایي:

ذاکران چې د غفلت له خوبه ویښ شوه
د نفس و چلېده ته نظاره کا
مسافر چې له خواږه خوبه بیدار شي
په سحر جرس د تلو په وخت ناره کا

په دې اول بیت کې هغه د ساه ذکر توضیح شوی او په دوهم بیت کې "جهر او جلي ذکر" د جرس د سحري نارو په تعبیر سره راوړی دی.

په دې ډول روښانیان ډېر د خفي او پټ ذکر پر خوا دي ارزاني پخپل نثر کې لیکي: ((د سړي اندامونه خدای کړي دي د هر اندام بخره شته، سترګې خدای کتو لره کړې دي او خوله خدای خبرو لپاره کړې ده او پوزه خدای دم لره کړې ده او غوږ خدای آروېدو لره کړي دي او پښې خدای یانه لره کړې دي او

زړه خدای یاد لره کړی دی چې هېڅ دم د خدای لیاده مه یې تش ننباسه او مه یې وباسه د سړي عمر سپی هم په شمار دی حدیث ویلي دي (الانفاس معدودات فکل نفس یخرج بغیر ذکر الله فهو میت) یعنې هر دم چې د خدای بې یاده وباسي هغه مړی دی حدیث ویلي دي رسول علیه السلام (قلب المومن حرم الله ان لا یولج فیه غیر الله) یعنې حرام دی د خدای په ځای، چې نور څه پکې ننباسي... مشایخ ویلي دي: ذکر الخفي طریق الی الحق یعنې پټ ذکر لاره ده و خدای وته...))[1].

دا سطور هم د روښان هغه د ساه ذکر شرح کوي چې باید خفي او تل وي، دولت وایي:

مـحبان د خدای و لارې وته بولي ورښيي همېشه یاد خفي ذکرونه
د خفي ذکر تاثیر یې زورور دی[2] د ذاکر له زړه به لرې شي زنګونه



**توبه:**

د حق د لارې د سالك لومړی مقام توبه ده. په دې خصوص کې ډېر نصوص وارد شوي دي او توبه رجوع ته وايي، یعنې له نهې څخه راګرځېدل او پښېماني کول[3] او دا توبه د عارفانو او سالکانو په نزد مراتب لري، روښان دا مراتب داسې ښیي:

((توبه مې فرض کړې ده په آدمیان چې له ناپوهۍ و پوهې وته، له کفره و ایمان وته، له ګناه و فرمان برداري وته، له غفلته

[1] د ارزاني له قلمي دیوانه څخه چې منثوري برخې هم لري؛ مګر دغه دوه حدیثونه په صحاحو کې نشته.

[2] د دولت قلمي دیوان ۴ ص ـ د ذکر په خصوص کې د روښان افکار د حقیقت تر عنوان لاندې هم وګورئ.

[3] کشف المحجوب د علي هجویري.

دې جاروزي و یاد (ته) مدام)) +[1]

ذوالنون مصري علیه الرحمه ویلي دي: ((توبة العوام من الذنوب و توبة الخواص من الغفله) چې عین دغه د خواصو توبه روښان هم ښودلې ده، یو عارف وایي:

• عام را توبه ز کار بد بود    خاص را تو به ز دید خود بود

د روښانیانو د طریقت او سلوك په مراتبو کې هم لومړی کار توبه ده، چې ارزاني یې داسې بیان کوي:

حدیث دی "التایب من الذنب کمن لاذنب له" یعنې هغه څوك چې توبه کا هسې له ګناهه پاك شي، چې هېڅ ګناه یې کړې نه وه. طالب دې غسل وکا، ترو چې اوبه پر ځان اچوي هسې دې وایي: ای خدایه! لکه مې تن په اوبو پاك شو، زړه مې دتا په یاد پاك که[2] تر دې وروسته استغفار لولي او توبه کاندي، چې له ګناهه خلاص شي.



دولت وایي:

په ګناه د دوست له رحمه نومېده مشه!
خود په خود درته ناري وهي چې راشه
د توبې په آب تېر شوې ګناه ووینځه
د غفلت له واړه زنګه مصفا شه

دلته دولت هم له غفلته توبه کول توصیه کوي، چې د حضرت ذوالنون په کلام کې راغلی دی او بیا روښان هم دغسې ویلي و:

---

[1] خیرالبیان ۱۲۷ ورق.

[2] د ارزاني قلمي لیکونه.

**د نفس وژل:**

عرفاء تـل لـه نفس سره جګړې کـوي او نفـس خپـل لومړی دښمـن ګڼي، څـو سړی پر نفـس غالـب شي او لـه هـوی هـوس سره مخالفـت ونـه کـړي، د عرفـان او سـلوك پـر لار قـدم نـه شـي ایښوولای.

عرفـاء وایـي: چـې نفـس د شـر منبع دی، ذوالنـون مصـري رحمـه الله ویلي دي:

(اشـدٰ الحجـاب رویـة الـنفس و تـدبیرها) بایزیـد بسـطامي وایـي: (الـنفس صـفة لا تسـکن الا بالباطـل) د حضـرت جنیـد خبـره ده: (اسـاس الکفـر قیامـك علـی مـراد نفسـك) د ابـو سـلیمان درانـي قـول دی: (الـنفس خاینـة مانعـة افضـل الاعمـال خلافهـا) دا ټـول د عرفـاوو اقـوال پـر هغـه حـدیث شـریف مبنـي دي، چـې حضـرت رسـول الله (صـلعم) فرمـایلي و: (المجاهـد مـن جاهـد نفسـه فـی الله) او هم ده د جهاد اکبر په بیان کې داسې وفرمایل:

(الا! وهي مجاهدة النفس)[1]

مولینای رومي د عرفان ددغې مهمې مرحلې شرح هسې کوي:

مـا در بتهـا بـت نفـس شـما اسـت
زانکه آن بت مـار، و ایـن بت اژدهاست
بت شکسـتن سهل باشـد نیـک سـهل
سـهل دیـدن نفـس را جهلسـت جهـل
یـک قـدم زد آدم انـدر ذوق نفـس
شـد فـراق صـدر جنـت طـوق نفـس
هـر کـه مـرد انـدر تـن او نفـس گبـر
مـرورا فرمـان بـرد خورشـید و ابـر

[1] د علي هجویري کشف المحجوب.

مولینای رومي نفس او شیطان یو ګڼي چې فقط صور یې دوه دي او د (ان الشیطان لکم عدواً فاتخذوه عدواً) پر اساس دښمني ورسره کوي او انسان ته داسې وايي:

نفس و شیطان هر دو یکتن بوده اند
در دو صورت خویش رابنموده اند
چون فرشته، عقل کایشان یک بدند
بهر حکمتهاش دو صورت شدند
دشمنی داری چنین در سر خویش
مانع عقل است، و خصم جان و کیش
دشمن است این بی وفا از وی گریز
بلکه از خود کن گریز اندر ستزي
آن عدوئی کز پدر تان کین کشید
سوی زندانش زعلیین کشید

(مثنوی)

روښانیان د نفس په مجاهده کې ډېر اقوال او بیانونه لري او د دوی په سلوك او طریقت کې له نفس سره جګړه یوه مهمه مرحله ده پخپله روښان وايي:

((هر چه د نوس له بدی پناه غواړي، ترو یې بویه، چې د نوس هوس د عقل په رڼا فهم لري... د مشقت په تبغ دې ووژني عیان!)).

د روښان د شاګردانو دواوین او اشعار ټول په دغه تبلیغ ډك دي، میرزا انصاري وايي:

نوس نادان دی مه یې نغوړه　　ته دانش په فهم خیر کړه
له خناسه خاطر ژغوره؟　　د خدای یاد باندې تحریر کړه

دولت وايي:

| | |
|---|---|
| نوســــك وتړه په بند كـــې | روح پادشــــاه جـــاوداني كـــړه |
| د خـــــناس په نغوته مه ځه | پســـروي د روحــــاني كـــړه |
| بد د يو نوس دی، كه دې بند كا | پـــر هـــوا دې ســـليماني كـــړه |
| له دښـنه سره دښـــــمن شه | پـــر خپـــل دوســت مهربـاني كـړه |
| كـــــه دې دا فتح رښتيا شي | تـــل تـــر تلـــه كـامراني كـــړه |

(د دولت قلمي ديوان)

## شریعت او طریقت:

لــه ډېــره وختــه د اهــل ظــاهر او اهــل بــاطن تــر مــنځ يــو ډول اخــتلاف موجــود و، علمــاء چې د شــريعت پــر ظــاهري لار روان وو، د طريقــت او ســلوك خاونــدان بــه يــې ښــه نــه ليــدل او داســې اختلافــات د علامــه ابــن الجــوزي او ابــن تيميــه او ابــن حزم ظــاهري او نــورو علمــاوو پــه آثــارو كــې ليــدل كېــږي، چــې د فقــه او احــاديثو علمــاء يــې پــر خــوا دي او دوی لــه صــوفيانو او د طريقــت او ســلوك له خاوندانو سره مخالفت ښكاره كوي.

د اهــل شــريعت او طريقت دغــه جګــړې چــې پــه قرنــو قرنــو جــاري وې، د زرم هجــري كــال پــه حــدودو كــې د حضــرت مجــدد شــيخ احمــد ســرهندي كــابلي پــه عالمانــه توجــه حــل شــوې او د شــريعت او طريقــت اخــتلاف ورك شــو، وروســته تــر ده حضــرت شــاه ولــي الله دهلــوي او شــاه عبــدالعزيز او نــورو علمــاوو هــم د حضــرت مجــدد رحمــه الله دغــه لار تعقيــب كــړه او دوی دا خبــره ټينګــه كــړه: چــې طريقــت او ســلوك لــه كتــاب او ســنته څخــه يــوه ذره اخــتلاف نــه لــري او يــو ســالك بايــد لــه كتــاب او ســنته يــو وېښــته تجــاوز ونــه كــړي. پــه دې ډول د دوی پــه ســعي او همــت، تصــوف او ســلوك او طريقــت، بيــا د شــريعت پــر قــوي اســاس روان شــو او انفكــاك او اخــتلاف يــې

ورك شو.

روښانيان هم پر غه لاره روان دي او شريعت له طريقته سره ملګري کوي، روښان د شريعت او طريقت تعريف په لنډو الفاظو داسې کوي:

((شريعت وينا او طريقت چار د پيغامبران ده... نه نغوته د نوس ده او شيطان او نغوته د زړه د روح چار د پيغامبران ده عيان))[1].

بل ځای وايي:

((زه د طريقت ورو هيغه[2] وته بپرانزم چې د شريعت په علم چار کا، د هيغه پس وده وته د طريقت پوه وربخښم، د حقيقت ورو هيغه وته ته پرانزم چې د طريقت په علم چار کا، دغه پس يې د حقيقت له پوهې خبر کړم. د معرفت ورو هيغه وته پرانزم، چې د حقيقت په علم چار کا، دغه پس د يګانګي پېژندګلي وروښيم عيان))[3].

د بايزيد له نوشتو ښخه ښکاري چې ده د شريعت په اقامت کې ډېر تاکيد کاوه، پخپله وايي:

((در مقام وصالت نيز درويشان و عارفان دوست ميداشتم، و خدمت ايشان ميکردم، به آيت قرآن، بحديث انبياء، و باقوال اولياء شغل ميکردم...))[4].

د شريعت په باب کې داسې وايي! ((شريعت پينج پناى مسلمانيست. و گفتار پيغمبران عليهم السلام پس مى بايد

---

[1] خيرالبيان، ۹۹ ورق.

[2] هيغه: د هغه يوه لهجه ده؛ خو لږ ځه اشارې زور په کې شته.

[3] خيرالبيان، ۱۱۵ ورق.

[4] صراط التوحيد، ۱۱ ص.

که شریعت را عزیز دارند، چنانکه عزیز داشتند پیغمبران براست ثابت کلام، و هر که باز گردد و حذر دارد از دروغ و بیهوده و فحش و طعنه دادن و بدنام خواندن و غیبت کردن و از نامشروعات دیگر... پس از اهل شریعت است، و هر که در شریعت کار کند، وی بسوی طریقت برسد...))[1]. په دې ډول بایزید شریعت د طریقت لار بولي او دا دوه نه سره بېلوي او پاچاهانو او خپلو اتباعو ته په "شریعت" سره توصیه کوي: ((گفتار من بشنوید و در شریعت ثابت شوید، و دیگر آدمیان را نیز بفرمائید، تا در ان ثابت شوند))[2].

تر دې وروسته د طریقت په باب کې وايي: ((پس آن کار پیغمبران است و خوی فرشتگان است و تائب باید کرد خود را از فرمان برداری گروه شیطان، باز گرداند اندامهای خود را از گناهان))[3].



شریعت را مقدم دارا کنون
حقیقت از شریعت نیست برون
کسی کو در شریعت راست آید
حقیقت را بروی خود کشاید

و ادا کردن طریقت (آن است) که با عبادت شریعت دیگر عبادت ضم کند، با نماز نماز نفل ضم کند، با روزه روزهٔ نفل ضم کند با زکوة سخاوت ضم کند، با حج کردن پیر کامل ضم کند، تا عبادت زیادت شود...[4]

---

[1] صراط التوحید، ۸۶ ص.
[2] صراط التوحید، ۸۸ ص.
[3] صراط التوحید، ۹۰ ص.
[4] صراط_ ۱۰۰ ص.

دغه دی چې بايزيد د شريعت او طريقت ملازمت په داسې ډول سره کوي، چې قطعاً يې پرېکړون ممکن نه دی، دده په مريدانو کې دولت لوڼ وايي:

شريعت: رښتيا ګفتار د پيغامبر دی
حذر کړه له غلا زنا، له غيبتونه
پنج بنا، حلال، حرام پېژندګلي ده
عمل کړه په واړه حکم په رکنونه
طريقت: فعل، کردار دايم فرض شوی
د صانع طاعت په واړه اندامونه

له صوفيانو څخه ځينې متقدمين محققان هم شريعت او حقيقت يو له بله سره بېل نه ګڼي، حضرت علي هجويري غزنوي وايي: حقيقت هغه معنی ده، چې نسخ يې روا نه وي او له آدمه تر دې دمه يې حکم متساوي وي: لکه د حق معرفت او خلوص نيت؛ مګر شريعت هغه معنی ده، چې نسخ او تبديل يې روا وي لکه احکام او اوامر، چې په هر شريعت کې ځينې نسخ شوي او اوښتي دي؛ نو شريعت د بنده په فعل پورې اړه لري او حقيقت د خدای تعالی مقرر کړی او دده حفظ او عصمت دی؛ نو د شريعت اقامت بې حقيقة محال دی او د حقيقت اقامت هم بې شريعته محال دی، شريعت بې حقيقته هم ريا ده او حقيقت بې شريعته هم نفاق دی؛ نو شريعت له مکاسبو څخه دی او حقيقت له مواهبو څخه[1].

حضرت علي هجويري يو پوخ او ثقه متصوف دی، تاسې دده له دغه لوړه بيانه معلومولای شوای چې روښانيان هم په دغسې خبرو کې د پخوا او لويو امامانو پر لار تللي دي او د

---

[1] کشف المحجوب.

مقدمینو پاخه پیروان دي.

قشیري چې د صوفیانو یو لوی امام دی شریعت (امر بالتزام العبودیه) او حقیقت (مشاهدة الربوبیه) بولي او وایي: که شریعت په حقیقت سره مؤید نه وي، غیر مقبول دی او هر حقیقت چې په شریعت مقید نه وي، هغه هم ښه نه دی[1] له دې جهته نو پخواني ټول د تصوف لوی لوی امامان په شریعت پورې داسې تمسك لري، چې جزویات یې لا هم نه پرېږدي او د روښان په طریقه کې هم شریعت په حقیقته سره توام او یو ځای دی.

## انسان:

صوفیه انسان عالم اکبر بولي او د خلافت الهي بهترین مظهر یې ګڼي، دوی وایي: چې انسان د صفاتو د تجلی او ښکاره کېدلو لپاره د یوې هینداري په ډول دی، له دې جهته باید دی خپل مقام وپېژني او خپلې لوړتیا ته ملتفت شي، مولینای رومي علیه الرحمه دغه د عرفان مهم بحث په دې ابیاتو کې سره لنډوي:

آدم اصطرلاب اوصاف علوست
وصف آدم مظهر آیات اوست
چون مراد حکم یزدان غفور
بود در قدمت تجلی ظهور
پس خلیفه ساخت صاحب سینه ای
تا بود شاهیش را آئینه ای
ای خنک آنرا که ذات خود شناخت
در ریاض سرمدی قصری بساخت

---

[1] الرسالته القشیریه ۴۳ ص.

ز آدمـی ابلـيس صـورت ديـد و بـس
غافـل از معنـی شـد آن مـردود خـس
ايـن ندانسـت او کـه اوصـاف کمـال
انـدر ايـن آئينـه بنمايـد جمـال

(مثنوي)

د انسـان دغـه لـوړ مقـام پـه دغـه بيـت کـې چـې حضـرت علي(رض) ته منسوب دی ښه ښوول شوی دی:

و تزعم انك جرم صغير        و فيك انطوی العالم الأکبر

يو بل عارف وايي:

بيرون ز تو نيست هر چه در عـالم هست
از خود بطلب هر آنچه خواهی که تو ئی!

روښـان وايـي چـې د توحيـد لار کښـتـه، پورتـه، ښـي، کيـڼ تـه نـه ده؛ بلکـې د توحيـد صـراط مسـتقيم پخپلـه د انسـان وجـود او زړه دی، د صـراط مسـتقيم پـه فارسـي رسـاله کـې دا موضـوع ښـه سـپني او نـور روښـانيـان هـم د پخـو صـوفيانو او عـارفـانو پـه ډول د انسان دغه لوړ مقام مني، ارزاني د روښان ملګری داسې وايي:

| | |
|---|---|
| دا صورت د خـــاورو ځلی | پـه دم سـپور او پـه دم پلـی |
| په دا خـــلي کې بسيا دی | ددې دواړو کونـــبو کلـــی |
| حـــق د دواړو کونو علم | د صــورت پـر کتــاب کښلـی |
| دا کـــتاب دی هغو لوستی | چـې يـې خپـل صـورت کتلـی |
| دا صورت لـوح محفوظ دی | لــه لـوی نـون قلـم وتلـی |

(د ارزاني قلمي ديوان)

"دولت" چې ځان انسان او عالم اکبر ويني نو هسې وايي:

پـه ظـاهر صـورت عـاجز بنده بالـه شم
د معنـی پـه ملك د دواړو کونـو ميـر يـم

په خواري راته نظر مه کړه نادانه!
څه شو نن که بې لښکره بې وزیر یم
زه اوس مست راغلی نه یم له ازله
پرورده د محبت په خاصه شیر یم
د لاهوت په ملك یم روح "من امر ربي"
د ناسوت په مقام یاد دولت فقیر یم

(د دولت قلمي دیوان)

میرزا خان انصاري وایي:

که ذره د لمر په مخ کې
د وصال په هوا ورزم[1]
ګاهي غوټه پر اوبه یم
ددې لامکان مرغه یم

## د روښانیانو د سلوك اوایل:



د روښان په ډله کې د سلوك او طریقت پر لاره داخلېدل، خاص آداب او شرایط لري او دغسې اصول او شرایط په ځینو نورو طریقو کې هم مقرر دي. د ارزاني د دیوان په پای کې دغه شرایط او آداب په نثر بیان شوي دي، چې زه یې لنډ دلته را اخلم:

ملا ارزاني وایي: چې د ټولو سعیو او مجاهداتو نتیجه داده، چې معرفة الله حاصل شي، ولې چې (لا یقبل الله تعالی عبادة العبد کلها بغیر معرفة الله) یعنې نه قبلوي خدای عبادت بې د خدای له پېژندګلي. دی لومړی مرحله توبه ګڼي او بیا طهارت، نو به طالب اوله پلا غسل کوي او بیا به پر زنګنو کښېني او لاسونه به پر زنګنو ږدي او دا به وایي: ((اللهم اني

[1] ورزم: یعني لوړېږم، الوزم.

اعوذ بك من ان اشرك بك شئ الخ...)) بیا به کلمه طیبه وایي، بیا به آمنت بالله وایي.

دلته به نو خلیفه دده لاس نه ونیسي او دده نوم به زده کي او خلیفه به دا وایي: چې دا لاس د میا (مقصد روښان دی) لاس دی او طالب به هم هسې ووایي، چې پیر مې میا دی او توبه مې وکړه له واړو بدو. بیا به نو خلیفه ده ته مبارکي ورکي.

بیا به نو طالب عبادت کوي: او عبادت دوه قسمه دی، یو ښکاره او بل پټ. څرګند چې پنځه بنا (کلمه ــ نمونځ ــ روژه ــ زکات ــ حج) دي او بل پټ عبادت دی، چې دایم د خدای په یاد کې وي او دا فرض دایم دی:

. له دې جهته باید طالب ته داسې ذکر ورکړه شي، چې ټول اعضاء یې په ذکر مشغول شي او زړه او نفس هم ذکر وکړي او د ذکر بهتره طریقه خفي ده، تر ذکر وروسته باید چې طالب د ادب کامل خاوند شي او ددغه ادب شرایط هم بیانوي او خاص به بیا خپل پیر ته پوره ادب کوي او هم به حلاله نفقه مومي او لږ خوب به کوي او په لمانځه به ډېره مشغولا کا او یو ګړی به غفلت نه کوي او تل به په طلب کې وي او مسلسل تفکر به کوي، پر دې اساس چې (تفکروا فی آته، ولاتفکروا فی ذاته).

بیا نو خلیفه له طالبه پوښتنه کوي، چې ته څوك یې؟ ستا ژوندون له چا دی؟ ستا د سترګو بینایي له چا ده؟ ستا د غوږو شنوایي له چا ده؟

طالب به وایي: له خدایه! خلیفه به وایي: رشتیا ده، چې آیت شریف هم دغسې دی: هوالاول، هوالآخر، هوالظاهر هوالباطن.

دلته به نو طالب ته د فنار رهنمایي وشي چې (من عرف نفسه بالفنا، فقد عرف ربه بالبقاء) او دا چې ټول له خدایه څخه

دي او په حقیقت کې بقا هم دده ده.

بیا بـه نـو د کلمـې درې مقامـه دروښیـي: اول نفـې چـې لاالـه دی دوهم اثبات چې (الا الله) دی او بیا (محمد رسول الله).

## د روښاني اوه صفته:

پس لـه هغـه چې یو طالب د طریقت پر لار روان شـي؛ نـو روښـان دده لپـاره اوه صـفته لازم ګڼـي او بایـد چـې یـو روښـاني پـه دغـو صفاتو متصف وي:

((اول آنکه از جمله حرام حذر دارد.

دویـم: آنکـه از حـلال بـی اسراف، انـدک آب و طعـام بچشـد و بخورد.

سوم: آنکه اندک سخن بنرمی بگوید و بد کلام نگوید.

چهـارم: آنکـه خـواب انـدک کنـد، و خـواب و بیـداری وی بیـاد خدا باشد.

پـنجم: آنکـه در صـحبت نیکـان باشـد، از صـحبت بـدان و غافلان دور باشد.

ششم: آنکه خدا پنهانی بذکر دایم یاد کند.

هفـتم: قـرار نشـود از جانـب خـدا، تـا اورا بـه یگـانگی بشناسـد...))[1]. پـه دې ډول طالـب د روښـان پـه طریقـه کـې داخلېدلی شي او بیا په دغو مقاماتو کې سیر کوي:

## اته مقامات:

روښـان د یـوه سـالك لپـاره اتـه مقامـات مقرر کـړي دي، چې هر سـالك بایـد دغـه اتـه مـرحلې پـی کـړي او د کمـال لـوړې مـرتبې تـه

[1] صراط التوحید، ۸۴ ص

ورسپړي.

پخپله روښان وايي: چې ما پخپل سیر او سلوك کې دغه مراتب طی کړل. دی تاکید کوي، چې دغه علم باطن دی او باید سړی یې له "پیر کامل" څخه زده کاندي. په صراط التوحید کې شاهانو ته خطاب کوي:

((بدانید ای گروه پادشاهان و امیران! که علم، ظاهر و باطن است و میباید که علم ظاهر از استاد بیآموزند و علم باطن از پیر کامل))[1].

وروسته د پیر کامل تعریف داسې کوي، چې ددغو اتو مقاماتو خاوند وي او د روښان له دې بیانه ښکاري، چې دده په طریقت کې دغه اته مقامات داخل وو، وايي:

((و کامل و مکمل آنست که صاحب شریعت و طریقت و حقیقت و معرفت و قربت و وصلت و وحدت و سکونت بود، و کشاف حقایق اسرار ربوبیت و تخلقوا باخلاق الله شده باشد. و طلب و اطاعت بر آدمیان فرض مطلق بود؟ و فرمان برداری پیر کامل فرمان برداری رسول است و فرمان برداری رسول، فرمان برداری خدایست، و فرمان خدای راه راست...))[2].

د روښان دغه اته مقامات او د سلوك پوړۍ ارزاني داسې بیانوي:

**دکمال اته مرتبې:**

شریعت دی، طریقت، دی　　حقیقت یې معرفت دی
هر چې دا څلور یې خپل کړل　　د بابا آدم پر پت دی
بل قربت، بل یې وصلت دی　　بل وحدت، بل سکونت دی

---

[1] صراط التوحید، ۳۷ ص.
[2] صراط، ۴۷ ص.

تر دې وروسته ددغو مقاماتو لنډه شرح داسې کوي:

شريعت د ره آغاز دی　　طريقت يې سوز و ساز دی
حقيقت حال دی په زړه کې　　معرفت يې سر راز دی

＊＊＊

قربت يې نزديکي ده　　په وصلت کې لا دويي ده
په وحدت کې دويي نشته　　سکونت کل نېکخويي ده[1]

دا خو د اتو مراتبو لنډ بيان و؛ ځکه چې د روښان تر عصر وروسته تصوف او ددغه اصطلاحات د پښتو ادب يو مهم جز شوه؛ نو به لږ څه دلته په اتو مقاماتو کې وږغېږو، چې د آينده دورې د ادبي مطالعاتو لپاره هم ددغو اصطلاحاتو پوهېدنه ضروري ده[2].



[1] د ارزاني خطي ديوان.

[2] د تصوف فکر په پخوانو انسانانو کې هم و او داسې مراتب په پخوانيو اديانو کې هم مقرر وو، د زرتشت په مزدي سينا کې پندار نېك ـ گفتار نېك ـ کردار نېك درې مقامه وو، د هيون تسنگ په وخت (۶۴۴م) کې د بودا دين هم اته مقامات درلوده، دی وايي: د بودا په قول (متولد حدود ۵۶۷ ق، م) انسان د ژوند له مسلسلو تکاليفو ځخه د نفس په رياضت او د خواهش په ترك نجات مومي او دا نجات اته مقامات لري، سمه عقيده ـ سمه آرزو ـ سمه وينا ـ سم کردار ـ سم معيشت ـ سم قصد او کوښښ ـ سم ذکر ـ سم تفکر ـ او هغه ځوك چې دغه اته مراتبه طی کړي، د نر وانا او سعادت نفس مرتبې ته رسېږي (د هيون تسنگ سفرنامه). په اسلامي تصوف کې هم داسې مقامات مقرر شوي وو، خواجه عبدالله انصاري هروي (متوفی ۴۸۱هـ) ددغو مقاماتو په بيان کې يوه عربي رساله "علل الداخله فی المقامات" لري (طبع دمشق ۱۹۵۶م) او ددغه لوی افغاني صوفي بل عربي کتاب "منازل السائرين" هم ددغو مقاماتو تفصيل دی، چې لنډون يې په فارسي کتاب "صد ميدان" کې ليکل شوي دي (طبع قاهره ۱۹۵۴).

دغه سل مقامه د انصاري په قول درې درجې لري: اول عامه درجه. دوهم د سالك درجه. درېم د محقق درجه چې په اوله درجه کې سړی په سير او سلوك پيل کوي، په دوهمه درجه کې په غربت کې داخلېږي. او په درېمه درجه کې د مشاهدې حالت دی چې د توحيد په سترگو د فنا په لار کې ليدنه کوي (د صد ميدان مقدمه).

د هند يوه صوفي سيد عبداللطيف قادري يو کتاب جواهر السلوك کښلی دی (د مدراس طبع ۱۲۸۳هـ) چې دغه سل مقامه يې په جدول کې لس لس برخې کړي او زر مقامه (الف مقام) يې ځنې جوړ کړی دی او په دغه بحث کې يو جامع او مانع کتاب دی. اما ابو طالب مکي د عربو ډېر پخواني صوفي پخپل کتاب قوت القلوب کې دا مقامات اوه دريابه (سبعة ابحر) گڼلي دي: (۱) سکر (۲) وجد (۳) کشف (۴) شهود (۵) قرب او ولايت (۶) جمع (۷) د افراد حقيقت (کشف الاسرار ۳ج، ۲۹۷ ص).

## ۱_ شریعت:

دا لومړی مرحله ده، چې بایزید یې په ډېر تاکید توصیه کوي او خپل ملګري شریعت ته رابولي، دمخه مو د روښان له صراط التوحید څخه د شریعت او طریقت تر عنوان لاندې اقتباس وکړ او له هغه څخه د روښان پوره د شریعت تقلید ښکاري، دده بل ملګری دولت یې داسې بیانوي:

شریعت رښتیا ګفتار د پیغامبر
حذر کړه له غلا، زنا، له غیبتونه
پینځ بنا، حلال، حرام پېژند ګلي ده
عمل کړه په واړه حکم په رکنونه[۱]

ارزاني وایي، چې شریعت پنځه حرفه دی او هر حرف یې بېل مقصد لري:

ش: شرم له خدایه، ر: روا چارې_ ي: یاري لربه_ ع: عبادت_ ت: توبه ده[۲].

## ۲_ طریقت:

دوهمه مرتبه طریقت دی د روښان خپل بیان مو دمخه د شریعت او طریقت تر عنوان لاندې اقتباس کړ؛ مګر دولت ددغې مرتبې له بابته داسې وایي:

طریقت: فعل کردار دایم فرض شوی
د صانع طاعت په واړه اندامونه
خمس حواس بندي کول د فرښتو خوی دی
په صافي پاکي همښ ریاضتونه[۳]

---

[۱] د دولت قلمي دیوان ۴ص. [۲] د ارزاني قلمي نثر.
[۳] د دولت دیوان ۴ ص.

ارزاني خو يې په يوه بيت کې هسې لنډوي:

طريقت باريکه لار ده  راه د خپل اصلي وطن دی

ارزاني هم د طريقت پنځه حرفه هسې تحليل کوي: ط: طوق بندګي. ر: رياضت تن. ی: يون په ورځ و شپه ـ ق: قدم راستي ـ ت: تن پاك.

## ۳ـ حقيقت:

دريمه درجه حقيقت دی چې پخوانو عرفاوو يې داسې تعريف کاوه: ((اقامت بنده باشد اندر محل وصل خداوند و وقوف سروی بر محل تنزيه))[1].

بايزيد د حقيقت په شرح کې ليکي:

((حقيقت حال پيغمبران است، و حال پيغمبران ذکر خفی و دايم است. يقين و ترک کردن گمان و صافی دل است، پس تائب را بايد که در حقيقت، از غفلت سوی ذکر خفی باز گردد، تا دلش صاف شود، اما ذکر خفی آنست که هر دم که اندرون و بيرون کند در ياد حق باشد، و هيچ دم بی ياد حق نزند))[2].

نو د حقيقت مرحله په ذکر خفي او دايم دوام کوي او هم دغه مقصد د روښان نورو ملګرو بيان کړی دی، دولت وايي:

حقيقت د زړه طاعت د نبي حال دی  المدام د مذکور ياد دی...

د مولی ذکر د زړه صيقل ياد شوی[3]  پرې خلاصېږي... له غيرتونه

ارزاني حقيقت داسې شرح کوي: ح: حال دروني ـ ق: قلب پاك ـ ی: ياد جلی و خفی ـ ق: قالب زنده بدم ـ ت: تن له بدو

---

[1] د هجويري کشف المحجوب ۴۵۳ ص.

[2] صراط التوحيد، ۹۴ ص.

[3] په قلمي نسخه کې دا بيتونه پرې شوي دي.

پاك. وروسته نو وايي:

حقیقت پــــاكي دامن دی — دا پـــاكي لـــه مـــا و مـــن دی
هوبښ پر دم، فهم، قـــدم دی — هـــم خلـــوت د رانجمـــن دی

## ۴_ معرفت:

څلورمـــه مرتبـــه معرفـــت دی، چـــې عرفـــاء يـــې پـــر دوه ډولـــه وېشـي، معرفت علمي او معرفت حالي او حضرت علي هجويري رحمه الله وايي: ((معرفت علمی قاعدهٔ همه خیرات دنیا و آخرت است و معرفت حالی حیات بود بحق، و اعراض سرازدون حق... پس مردمان او علماء و فقها و غیر آن صحت علم را بخداوند معرفت خوانند، و مشایخ این طایفه صحت حال را با خداوند معرفت خوانند، و ازآن بود که معرفت را فاضلتر از علم گفتند، که صحت حال بجز صحت علم نباشد، اما صحت علم صحت حال نباشد، یعنی عارف نبود که بحق عالم نباشد، اما عالم بود که عارف نباشد))[1].

ځيـنې عرفـاء د معرفـت وېشـنه داسـې کـوي: اول رسـمي معرفت، دوهم بالکُنه معرفت.

(۱) رسـمي معرفـت: د عـارف کاشـفي تعبيـر داسـې دی ((ادراك حقسـت باعتبـار تعيينـات او در مجـالی مکونـات و تنوعـات ظهـور او در مراتـب تنـزلات))[2]. او دا هغـه د هجـويري علمي معرفت دی چې يوه عربي شاعر په دې کې شرح کړی و:

وللّه فـــی کل تحریکة — و تســـکینة ابـــدا شـــاهد
و فی کل شـــیٔ له آیة — تـــدل علـــی انـــه واحـــد

[1] کشف المحجوب ۳۲۶ ص.
[2] لب لباب ۴۲۰ ص.

(۲) بالکنه معرفت: چې کاشفي یې داسې شرح کوي: ((ادراك اوست باعتبار کنه ذات مجرد از ملابس تعینات اسماء و صفات، و این ممتنع است مر غیر حق را که لایعرف الله غیر الله))[1]، چې دغه معرفت د حضرت هجویري په تعبیر معرفت حالي دی؛ مگر دا دوهمه درجه معرفت د پخو عارفانو په عقیده، انسان ته میسر نه دی او د "ذات په کنه" کې فکر کول نه ورته ښایي:

کنه ذاتش ره سوال ببست          عقل حیران و نطق لال نشست

حضرت مولینای رومي دغه مشکل په دې ډول روښوي:

مر صفاتش را چنان دان ای پسر          کزوی اندر وهم ناید جز اثر
ظاهر است آثار نور رحمتش          لیک کی داند جز او ماهیتش
لیک ماهیات اوصاف کمال          کس نداند جز بآثار مثال



په دې ډول انسان نه شي کولای چې په ذات کې فکر وکړي؛ نو عرفاء دلته خاموش دي، مولینا رومي وایي:

چونکه غیب آمد و راز و پوش به          پس دهان در بند لب خاموش به

دا رباعي هم دا گرانه خبره راښیي:

ای آنکه بجز تو نیست در هر دو جهان
برتر ز خیالی و مبرا ز گمان
هر چند که عین هر نشانی لیکنی
اینست نشانت که تورا نیست نشان

د روښان خپله نوشته د معرفت په خصوص کې داسې ده، چې دی د معرفت اساس پر تعقل او مشاهده ږدي او وایي:

[1] لب لباب ۴۲۲ ص.

"پس عاقلان را باید که عقل خود بیدار گردانند، تا امر و نهی یعنی کردنی و ناکردنی حلال و حرام نیکخواه و بد خواه، خوی پیغامبران و مؤمنان و مخلصان و شیطانان و کافران و منافقان را سود و زیان جمله مقام به بیند وبشناسد ... از فضیلت عقل بشنو که رسول مقبول فرموده است صلی الله علیه وسلم: العقل کرامه_ والعقل نور فی القلب یفرق به بین الحق والباطل... باید مر عاقلان را که عقل خود در خواب و دلهای خود در غفلت و فهم خود بی فکر حق نگذارند و فکر بکند، که حق تعالی شما را از چه چیز برای چه چیز آفریده است؟ هستی و بقاء هستی به چه چیز است؟ و کجا خواهد رسانید و شما را از چه چیز خواهد پرسید ...؟ بدانید که معرفت، ظاهر و باطن است و معرفت ظاهر معرفت مخلوقاتست و معرفت باطن معرفت خالق است... و حاصل نمی شود مر آدمیان را معرفت ظاهر و باطن، بی طلب و بی نظر دیدن و بی یافتن آدمی اول طالب گردد، پس ناظر پس بینا، پس عارف گردد ... اما معرفت لفظ جامع است و معرفت بسیار چیزهائی در آن در می آید، چنانکه معرفت دنیا بیخ و شاخهای آن، معرفت آخرت، درجات و حسنات آن و معرفت نفس در آنچه دروست، وظاهر و باطن و زیان آن، و معرفت روح و کار عذاب و راحت آن، و بدان که حق تعالی همه علم و عبادت و معرفت و همه نیکیها و خیرات برای معرفت توحید گردانیده است:

(بی گلی هـــــر گز نیابی بوی را
تا نه بینی کی شناسی روی را)"[1].

د روښان دغه د معرفت نظریات ټول د نورو پخو متصوفانو

---

[1] صراط الوحید، _ ۳۵_۱۰۴_۱۰۶ ص.

پـر تعقـل او مشـاهده او تفکـر بنـا دي او دا هغـه د رسـمي او علمـي معرفت لار ده، چې تفصیل یې دمخه وشو.

اوس بـه وګـورو، چـې نـور روښانیـان څنګـه پـه دې ګرانـه مرحلـه کې داخل شوي دي؟

دولت وایي:

معرفت غیب دیــدن دی بې جهته　　د جمیل جمال بې شبه بې نمونه
د باطن په سترګو هر چرې لیده شي　　د عارف مقصود...[1] تر شهرتونه
معرفت به بې اخــلاصه حاصل نکا　　کـه پـه ډېر نماز لغړ کا زنګنونـه

بل ځای وایي:

د عـــارف واجـــد مقـــام د معرفـــت دی
هـر نظـر د دوسـت و مـخ وتـه کتـل تـل
زاغ حـریص منګـل آلـود پـر جیفـه ګـرزي
دلـداده بلبـل دی مست پـر مـخ د ګـل تـل
نور سرې د دین دنیا په کار مشغول دي[2]
د عـارف بـې دوسته هېڅ نـه وي پـر دل تـل

ارزانـي د روښـان بـل ملګـری د معرفـت تجزیـه داسـې کـوي: م: مـخ یعنې پـه هـر مـخ کـې خپـل مـخ لیـدل ـ ع: عـین: ف: فنا ـ تـن د حق وطن ـ بیا نو وایي:

مـــعرفت د نور څراغ دی　　هـر عـارف یـې داغـي داغ دی
عـــارف یو په یوه ویني　　کـــه بلبلـــه ده کـــه زاغ دی[3]

---

[1] دلته یوه کلمه په خطي نسخه کې نه لوستله کېږي.
[2] د دولت قلمي دیوان ۱۴۶ ص.
[3] د ارزاني قلمي دیوان.

میرزا انصاري د روښان د ډلې يو بل عارف وايي:

عارفان د دواړو کونو ننداره کا
شو پرك په تياره ګرزي بې نظره

له دغو ابياتو څخه ښکاري، چې روښانيانو هم رسمي او علمي معرفت خوښ کړی و او دوی هر وخت په تعيناتو او مکنوناتو او تنزلاتو کې کتنه کوله او له "معرفت بالکنه" څخه يې ځانونه ژغورل او د نندارې او مشاهدې له خوا به د معرفت په مرتبه کې داخلېدل:

چشمی داری و عالم در نظر است
دیگر چه معلم و کتابت باید؟



## ۵_ قربت:

دا پنځمه مرحله ده، چې مولينا کاشفي يې داسې شرح کوي:
((و آن ارتفاع مسافت است و انقطاع مخافت، و گفته اند که قرب زوال حسن است، اضمحلال نفس، و گمان نبری که قرب حق مکان است، بل بیمکان نیست، بی شبهه حضرت ذات متعالی، از مکان و زمان و جای و جهت منزه است))[1].
مولينای رومی هم دغې خبرې ته هسې اشاره کوي:

قرب نه بالا و پستی جستن است
قرب حق از حبس هستی رستن است
کار گاه قرب حق در نیستی است
غرهٔ هستی چه داند نیست چیست؟

[1] لب لباب ۴۰۵۰ ص.

گفت پیغمبر که معراج مرا
نیست بر معراج یونس اجتبا.
آن من بر چرخ و آن او بشیب
زانکه قرب حق بر دنست از حسیب

(مثنوی)

دا قرب دوه ډوله دی یو قرب فرضي، بل قرب نفلي. قرب فرضي هغه مرتبه ده، چې بنده ته د محبت په مقام کې داسې حالت پېښ شي، چې اختیار د شعور د سلب په سبب له ده څخه نفې شي، دی د قدرت کامله یوه آله وي او سمع الله لمن حمده له دې مقامه یوه نکته ده. مولینای رومی له دې مقامه وایي:

من چو کلکم در میان اصبعین نیستم در وصف طاعت بین بین
او بصنعت آزر است و من صنم آلتی کوه سازدم من آن شوم
گر مرا ساغر کند ساغر شوم ور مرا خنجر کند خنجر شوم
گر مرا باران کند خر من دهم ور مرا ناوک کند در تن جهم

(مثنوی)

اما دوهم ډول نفلي قرب، د محبوبیت هغه مقام دی، چې د سالك صفات، په ذات کبریا کې محو شي او دی تش یوه آله وي چې کنت سمعه و بصره و لسانه وید، فلا ناطق غیری ولا ناظر ولا سمیع سوای[1].

---

[1] لب لباب ۴۰۹ ص.

مولینای روم په دې مقام کې وايي:

ما چو نائیم و نوا در ما ز تست ما چو کوهیم و صدا در ما ز تست
ما عـدمهائیم و هستیهای ما تـو وجـود مطلـق فـانی نمـا
باد مـا و بود ما از داد تست هسـتی مـا جملـه از ایجـاد تست

ارزانـي وايـي قربـت يـې نزديکـي ده او قـر: قربـت حـق ـ ب. بنـد ـ ت تن پاک ـ دی او په دې رباعي کې هسې بيانوي:

تر معرفت يې لوی قربت دی دا قربـت پـه ډېـر غربـت دی
لـــه خپل ربه به اشنا شي چـې اشـنا پخپـل قربـت دی[1]

دولت وايي:

د قربت ذکـر مقام د سامعان دی پوهېـده پـه تسبيحات او آوازونـه
بې مثلي عجب آواز په زېر و بم کا دا افلاك لکه سرود، اشيا تارونه[2]

## ۶ ـ وصلت:

شـپږم مقـام دی، چـې مولينـا کاشـفي يـې هسـې تعريـف کـا:
((اشـار تسـت بفنـای عبـد از اوصـاف خـود، و ظهـور اوصـاف حق در او، و چـون سـالک متصـف گـردد بصـفات حـق و فـانی شـود در ذات او، هر آينه بوصل حقيقی رسد))[3].

بايزيد ددې مقام شرح داسې کړې:

((و بدانيـد ای گـروه پادشـاهان و اميـران! بدرسـتی ورسـائی کـه انبيـاء و اوليـاء و مومنـان مخلصـان در مقـام قربـت قـرار نبودنـد؛ و

[1] د ارزاني قلمي ديوان.
[2] د دولت قلمي ديوان.
[3] لب لباب، ۴۱۳ ص.

قدم ازآن سوی وصلت برداشته بودند، بذکر وصلت تارک وجود شده بودند، و ذات خود را بذات معبود یکی یاد میکردند. و اندامهای خود را از هستی خود میرانیده بودند، ننگریستند و نمی گفتند و نمی دیدند و نمی شنیدند و نمی گرفتند، پس می باید شما را که در مقام قربت قرار میباشید و قدم ازآن سوی وصلت بردارید، بذکر وصلت هستی خود، یکی به هستی معبود، خود یاد کنید، اندامهای خود را از هستی خود بمیرانید که ننگرید، ونه بینید و نگوئید و نشنوید و نگیرید و نروید و نکنید هیچ کاری را مگر ترک وجود کنید و زنده گردانید که هر کاری بهستی معبود کنید...))[1].

دا تغیرات چې بایزید له وصلته کړي دي د واعظ کاشفي د هغو الفاظو شرح ده، چې ویلي یې وو: ((فنای عبد از اوصاف خود، و ظهور اوصاف حق در او)).

ارزاني وصلت داسې تجزیه کړی: و: وصل مقصود ـ ص: صیقل دل: لانفی ـ ت: ترك خودی. دولت وایي:

په وصلت د واصلانو یو ګډه دی
له یوه وجود شمېرل واړ وجودونه

دلته روښانیان د (همه ازوست) یعنې وحدت شهودی خوا ته تللي دي.

## ۷ـ وحدت:

اوومه مرحله ده چې عرفاء یې پر درې مرتبې وېشي: اول توحید شرعي چې د الله تعالی د وحدانیت ثبات دی. دوهم

[1] صراط التوحید، ۷۱۵ ص.

توحید عقلي، چې خاص خدای لره اثبات د وجوب دی او نفې د وجوب ده له نورو څخه. دریم کشفي توحید چې خاص حق لره د وجود اثبات دی[1]. بایزید وایي: ((در غایت جوانی ذکر جز هستی خدای، دیگر هستی هلاکت میکرد یقینم چنین بود:

که هستی من و جمله موجودات و ذره ئی از ذرات، از هستی خدای جدا نیست و نبود...))[2]. بل ځای وایي: ((انبیاء و اولیاء و مؤمنان و مخلصان در وصلت قرار نمی بودند، و قدم ازآن سوی وحدت برداشته بودند بذکر توحید وجود خود گم کرده بودند، و در هر گم شده به هستی معبود خود یاد میکردند، و خود را از خوی بشریت میرانیده بودند. و بخوی ربوبیت زنده گشته بودند، در هر یکی خدا می نگریست و میدید و خود را نمی شمرد))[3].



مولینای روم هسې وایي:

چیست توحید خدا افروختن　　خویشتن را پیشی واحد سوختن

هستیت در هست آن هستی نواز　　همچو مس در کیمیا اندر گداز

بر درش هر که من و ما میزند　　رد با بست او و بر لا میزند

نو روښانیان په دې باره کې هسې وایي، د دولت قول دی:

په وحدت کې دوئی نشته　　یګانه یګان دی

دا حاصل په سر بازي شي　　هسې نه چې رایګان دی

د کثرت د عددونو حساب ډېر دی　　د وحدت پر مقام دی بېخدایه کل هېڅ

په هزار پرده که مخ د وحدت پټ شي　　د موحد د وړاندې نه کېږي حایل هېڅ

[1] لب لباب، ۴۳۷ ص.

[2] صراط التوحید_ ۹ ص.

[3] صراط التوحید، ۷۴ ص.

میرزا خان انصاري وايي:

ما چې وکوت په باطن د معنی ولی
د وحدت په انګې مېشت د کثرت کلی
د عاقل د عقل قیاس رسېدی نه شي
چې د کن فیکون لاس دی رسېدلی

## ۸ـ سکونت:

اتمه او آخرنۍ پوړۍ ده، چې دلته عارف ته سکون حاصلېږي او دا مرتبه خورا لوړه ده؛ ځکه چې د سکون په حالت کې بېرته عارف کښته د نورو انسانانو په ډول وي او په خدمت خلق مشغولېږي، دلته تول "صحو" وي، له سکره وځي د شریعت او سنت ټول جزویات پر ځای کوي او شریعت او طریقت او حقیقت سره یو ځای کېږي.



ارزاني سکونت داسې تجزیه کوي: س: سوګند وایم په خدای ک: کمال خوبی، ن: نیت خوب، ت: تمام شدن مراتب:

د سکونت شېوه ښه خوی دی    ساکن ګل دی، یار یې بوی دی
په هر دم په دا خپل کور کې    تل له یاره روبروی دی!



هم تمام مې دا کلام دی    سکونت و ستری مقام دی
چې ته دې مقامه راشې[1]    پېژندلی یې خپل قام دی

دولت وايي:

سکونت بلند مقام له واړو پاس دی
نور دده دپاسه نشته مقامونه

[1] د ارزاني قلمي دیوان.

د مسکین په رضا واړه چارې کېږي
په هر هر یوه کې کاندي خپل حکمونه

❋❋❋

سکونت د روح خصلت شي
په صورت یې عمل ګران دی
نه کښېني، نه ځي، نه خوري څه
نه وصال نه یې هجران دی
نه په عرش، کرسي، په زمکه[۲]
نه بېرون، نه تر دا میان دی

په دې ډول روښانیان د تصوف او سیر و سلوک په مقاماتو کې ډېر ګفتارونه لري، ما یې ځینې مهم مسایل په دغه برخه کې راوړل، پخپله د روښان او دده د شاګردانو افکار مې څرګند کړل. له دې بحثه زه دا نتیجه اخلم، چې روښانیان په تصوف کې د پخوانو محققانو پر لار تلي دي، د دوی په اقوالو او دیوانو او نوشتو کې کوم بدعت او نوي له ځانه راوړي افکار نه لیدل کېږي او عموماً دوی د "شهودي توجیه" پر لار ځي؛ مګر کله کله د روښانیانو په کلام کې د "وحدت وجود" تجلي هم شته؛ مګر داسې ښکاري، چې دغسې افکار کله کلهٔ او لږ لږ پر دوی غالبېږي او کله چې د "صحو" څخه "سکر" ته ولاړ شي؛ نو د وجودیانو په ډول کلام هم لري ـ د متصوفانو په اصطلاح "شطحیات" وایي او بلند پروازي کوي.

(۲) د دولت قلمي دیوان ۱۱ ص.

مولینا جامي وایي:

همسایه و همنشین و همره همه اوست
در دلق گدا و اطلس شه همه اوست
در انجمن فرق و نهانخانۀ جمع
بالله همه اوست، ثم بالله همه اوست

مولینای رومی وایي:

اتصال بی تکیف بی قیاس
هست رب الناس را با جان ناس
لیک گفتم ناس من نسناس نه
ناس غیر از جان جان اشناس نه

په دغه ډول ځیني شطحیات د روښانیانو په کلام کې هم شته، چې د دوی معاصرو علماوو یعنې اخوند درویزه او دده ملګریو هم دغسې خبرو ته ګوتې نیولې وې او د روښانیانو انتقاد به یې کاوه، حال دا چې دغسې خبرې د ټولو پخوانو پخو صوفیانو بزرګانو په کلام کې خورا ډېرې دي او په هغه ډول ارزاني وایي:

د منصور رشتیا سبق و | دا سبق یې پر ورق وو
هر ورق باندې یې کښلی | سر کلام د اناالحق وو

دولت وایي:

یو احمد راته ښکاره شو لور په لوري
په خفي ذکر چې لرې کا حایل ما
د جمال جلوه یې وکړه پر یې مست کړم
د باطن په سترګې ځیر ولیده کل ما

بې تا هېڅ نشته موجود څه — دا، هغه جهان، وجود څه؟
واړه ستا دي بې چګونه! — پر اسمان، زمکې رنګونه
کل پيدا له تا بېچونه! — اسمان، زمکه درياب، غرونه
کل له تا پيدا ای پاکه! — هر چې شته هر نُه افلاکه
چې څه شته هغه کل ته يې! — هغه نشته چې ته نه يې!

ميرزا خان انصاري وايي:

زه به څه وايم چې څه يم — نيست و هست واړه په ده يم
هر چې نيست شي له هستي — د نيستي معنی زه يم
ګه ذره د نمر په مخ کې — ګاهې غوټه پر اوبه يم
له وحدته پر کثرت شوم — هغه نه شته چې زه نه يم

په دې شطحياتو او سکر کې روښانيان بېرته ملتفت کېږي او ځينې "اسرار" او د نه ويلو خبرې نه کړي؛ ځکه چې داسې اسرار محرمان غواړي او هر غوږ ددې د اورېدلو تاب نه لري، مولينای رومی هم وايي:

اين مباحث تا بدينجا گفتنی است — هر چه آيد زين سپس بنهفتنی است
هان و هان هشدار بر ناری دمی — اولا برجه طلب کن محرمی
عاشق و مستی و بگشاده دهان — الله الله اشتری بر نردبان!
باوجود آنکه اين اسرار کار — يک بود وقت بيان از صد هزار
زند رونم صد خموش خوش نفس — دست بر لب ميزند يعنی که بس

ارزاني وايي:

يو احد دی دوهم نشته — دا رشتيا وينا ده مُره
دا رشتيا وينا ډرخه ده — که طالب يې ويې نغره
دا اسرار يې پوشېده کړه — برهنه مه وايه له سره
د فقير وينا رموز ده — پوشيده نه ده له حره

که د ســــر آتش ونغرې　　　ستا بــه ولګـي پــه ســره
ته دايم لــــرې اغوستې　　　شـريعت سـپينکې زغــره



ارزاني پښتو خـــــبرې　　　ځيــنې ګــوى ځيــنې مګــويې
دا د ګوى مګوى خــبرې　　　ارزانـــــي لــــه دلــــه زېــــږي

دولت وايي:

لاالــــه الاالله تـــــل لولـــــه ســبق نـــور
د خپل زړه په ارسي[1] هېڅ مکوښه بې حق نور
د بــاطن پــه زور يـــې هســـې مصــفا کــړه
چــې تمــام عمــر، ونــه نيســي غسـق نــور
پــه ظــاهر بــاطن څـوک نشــته بــې احــده
هېــڅ شــريک ورســره مــه ګڼــه مطلــق نــور
اســــتر ذهـــب مـــذهب رســـول ويلـــي
د مګـــوى خبــرې مــه کوښــه پــه ورق نــور
پــر منصــور علمــاو ځکــه سياســت تېــر کــا
چــې هــر تقليــدى فــاش نکــا اناالحق نــور



دا وه د روښـــــان او روښانيـــانو عرفـــاني افکـــار او د دوى د تصوف برخه، چې لنډ څه مـا تشريح کـړه، اوس بـه نـو ولاړ شو او د روښان سياسي خوا بـه وڅېړو؛ ځکـه چې دا سـړى يـوازې متصوف او منزوى سړى نـه و، لـه عرفانـه سره يې سياست هـم يـو ځـاى کـړى و او د طريقت تـر خـرقې لانـدې يـې تېـره تـوره هـم پټـه وه، متصـوف و؛ خو "مجاهد" هم و، که "رياض" و؛ خو "جګړن" هم و.

[1] ارسى: تخته، لوحه.

# ب: د روښان سیاسي پلو

تاسې دمخه هم ولوستل: چې د روښان شخصیت ډېرې خواوې لري او دا سړی یوازې د یوه میدان ماهر نه دی؛ بلکې دده د نبوغ خواوې او متعدده پلوونه بېل بېل د بحث او څېړنې وړ دي. عرفان، ادب، سیاست درې بارز صفات دده په کرکټر کې مینډل کېږي.

بایزید پخپل عرفاني حرکت کې یو عملي روح داخل کی او د تصوف منفي خوا او انجماد یې په اجتهاد او حرکت او عمل تبدیل کړ؛ ځکه نو دده او دده د کورنۍ او اولاد او شاګردانو عمرونه په یوه سیاسي جهاد کې تېر شول او مقصد له هغه څخه هم اول "د پښتنو آزادي" وه او بیا د "پښتنو د عظمت تجدید".

د روښان د معاصرینو اقوال او دده د ملګریو اعمال، اقوال، حرکات، نهضتونه چې موږ مطالعه کوو؛ نو روښان او د روښانیانو سیاسي خوا داسې تحلیل کوو، چې دا نابغه په سیاست کې ډېر پوه و او دده سیاسي افکار پر درو اساسونو بنا وو:

## ۱_ د پښتنو آزادي:

د روښان په وخت کې د پښتنو د عروج او سلطنت دوه تېره شوې ده، دده د تولد په کال (۹۳۲ هـ) د پاني پت په ملحمه* کې د لودیانو شاهنشاهي ختم شوه او د فرغاني یو مغولي فاتح (بابر) پښتونخوا او هندوستان ونیول؛ نو ځکه روښان خپل لومړنی مطمح نظر دا وګرځاوه، چې پښتانه د مغولو له غلامۍ

* خونړۍ جګړه.

ځخه وژغوري!

ددې کار لپاره ډېر علمي او عملي تدابیر او تجاویز لازم وو او روښان په خورا غور او سنجش دا مراحل تشخیص کړل او خپلو مریدانو ته یې د "آزادۍ مکمل پروګرام" جوړ کړ، ددې پروګرام کلیات دا وو:

## الف: له ظالمانو او ظلمه نفرت:

روښان پخپلو مریدانو او پیروانو کې داسې تلقین وکړ، چې هر ځای له هر ظالمه سره مبارزه وکړي. ده فتوا ورکړه؛ ځکه چې مغولان پر پښتنو ظلم کوي؛ نو باید پښتانه د دوی حکومت ونه مني او ځانونه آزاد کاندي.[1]

پخپله روښان د قندهار د یوه تجارتي سفر قصه کوي، چې دی هلته د قندهار حکمران بیرم خان ته ولاړ او هغه ته یې د حکومت کولو لاره داسې وښووله:

((گفتم امیران و پادشاهان را حق تعالی از عدل خواهد پرسید و یک ذره عمل کسی را حق تعالی ضایع نگرداند، بروی بنماید...))[2].

لکه چې تاسو دمخه ولوستل: د روښان د نهضت اصلي علت هم دا و، چې ده به پر پښتنو باندې د مغولو د حاکمانو د ظلم چارې لیدلې او د هغو د دفاع لپاره یې توره وکښله.

ده په قندهار کې یوه پښتنه مېرمن ولیده، چې د مغولو سپاهیانو یې وښتان د ژرندې په پله تړلي وو او دا به د ژرندې له پله سره چورلېده.

---

[1] حیات افغاني، ۱۸۵۶ ص.
[2] صراط التوحید، ۲۰ ص.

نو روښان دونې متاثر شو، چې له مغولو سره یې خپل عمري جهاد شروع کړ[1].

دی په خیرالبیان کې د خپلو عرفاني مقاماتو په شرح کې انساني اخلاق او رحم او عدل ډېر بیانوي او په سیاست کې د هغو وجود ضروري ګڼي.

د روښان د شاګردانو په کلام کې هم د ظلم او ظالمانو پر خلاف ډېر تبلیغات شته او دوی کوښښ کوي، چې پښتانه د ظالمانو پر خلاف ودروي او حکام او مشران د عدل خوا ته بوځي، مثلاً دولت وايي:

په قیامت به ظالم واړه　　ډوب تر حلق پورې په خوی کا
عزرائیل به په آخر دم　　مات د هر یوه مغزی کا





چې ناحق ناروا زور پر مظلومان کا
لایزال به دده ځای آتش سوزان کا
عرش، کرسي، اته بهښته یې وران کړي
هر نادان چې د مؤمن خاطر پرېشان کا
که یې عدل کړی ښه وي
خوښ به شي له سلطنه
که ظالم وي زار به کاندي
له شاهۍ له شوکته:
کاشکې شاه نه وای ګدای وای
نن ورځ مه وی فضیحته

[1] په دې کتاب کې د روښان د کورنۍ او استایدو عنوان وګورئ او د معارف مجله ۱۹ ج د تذکرة الانصار په حواله.

په دې ډول د روښانیانو اولینه مجادله له ظالمانو سره وه او دوی له ظلمه نفرت کاوه او ویل یې:

مرتبه د آخرت به هغه مومي		چې دلې په ظلم نکه د چا سر مات

(دولت)

## ب: له مغولو سره عدم موالات او اجتناب:

د اوسني عصر د سیاست په میدان کې هم له دې کاره ډېره استفاده کېږي او که یوه ټولنه وغواړي، د نورو له ظلمه او اسارته ځانونه خلاص کي؛ نو دوی له هغو سره خپل د همکارۍ او معاونت او موالات روابط قطع کوي او دې ته په سیاسي اصطلاح COOPERATION NON وایي، د هندوستان د آزادیخواهانو یوه وسله د انګرېزانو په مقابل کې هم دغه وه، چې اوسنی جمهوریت یې وګاټه.

عجیبه داده، چې تر ګاندهي دمخه، پیر روښان د پښتونخوا په غرو کې د مغولو پر خلاف هم له دغې وسلې څخه کار اخیست او خپل مسلکي پیروان یې ټول له مغولو سره په عدم موالات او نه همکارۍ امر کول.

موبدشاه په دبستان مذاهب کې یوه عجیبه قصه لیکي، چې د روښانیانو شدید نفرت او نه همکاري له مغولو سره ښیي، دا قصه په عبدالقادر، اړه لري، چې د روښان کوسی و او د شاه جهان مغولي پاچا لښکرو ته تسلیم شو، عین عبارات دادي:

((نامه نگار (مولف دبستان) از سلطان ذوالقدر مخاطب به ذوالفقار شنید، که گفت: چون بفرمان سعید خان بخواندن عبدالقادر، رفتم، اقسام اطعمه و اشربه بهر او می آوردم، تا بدان فریفته شود، روزی یکی از افغانان پیر، بعد از چشیدن حلوا، برخاست و گفت: ای عبدالقادر! از زمان نیای بزرگوار تو

تا این زمان، قدم به مغول اینجا نرسیده است، این مردیکه آمده میخواهد ترا بجامهٔ سرخ و زرد و اطعمهٔ چرب و شیرین که رغبت بدان، دین اصحاب بطن و نفرت از ان آئین درویشانست بفریبد ، صلاح درین است که اورا بکشیم، تا دیگری از هراس بدینجا نیاید. اما عبدالقادر و مادرش بی بی علائی که دختر میان جلا الدین است، راضی نشدند.

روزیکه عبدالقادر داخل اردوی سعید خان میشد ، از آواز نقاره و کرنای، اسپ او مر ترسید ، از میان مردم بر کنار میرفت. افغانی با او گفت: آنچه حضرت میان روشن فرموده است، اسپ بجامی آورد و شما نه، خمار این مستی خواهید کشیده! عبدالقادر پرسید ، میان چه فرموده است؟ افغان گفت: ((از مغولان دوری و اجتناب))[1].



په دې ډول روښانیانو له مغولو څخه ډېر اجتناب کاوه او ځکه چې مغولان ظالمان وو؛ نو دوی له هغو سره نه ګډېدل او له ظالمانو څخه لرې ګرځېدل، چې "ان الله لا یحب الظالمین".

## ج ـ سربازي او قرباني او عدم تسلیم:

دریمه مرحله د روښانیانو په سیاسي رفتار کې "سربازي" وه چې د آزادۍ په لار کې ټولو ځانونه بایلل. تاسې به ددې کتاب په دریم ټوک کې وګورئ، چې د روښانیانو په دغه آزادیخواهانه حرکت او نهضت کې څومرې خلک قربان شوي دي؟ او پخپله میا روښان، جلال الدین دده زوی، احداد د روښان لمسی او نور دده شاګردان او پیروان ټول د استقلال په جهادونو کې مړه دي او سرونه یې په دې لار کې ایښې دي.

---

[1] دبستان مذاهب ۲۵۳ ص.

موبدشاه یوه عجیبه قصه لیکي، چې له دغې قصې څخه مونږ د روښانیانو د سربازۍ احساس ښه معلومولای شوای، د روښانیانو نارینه نه؛ بلکې ښځو هم سربازي کوله او د آزادۍ لپاره یې ځانونه قربانول او مغولو ته نه تسلیمېده. د موبدشاه الفاظ دادي: ((افغانان بعد از وصال احداد، عبدالقادر بن احداد را برداشته و بکوه رفتند، ولشکر پادشاهی که گمان مسخر شدن قلعه نداشتند، داخل قلعه شد. دختر احداد در قلعه میگردید، یکی از لشکریان آهنگ گرفتن او کرد، دختر چادر بر چشم افگنده، خود را از دیوار قلعه بزیر افگند و هلاک گشت، مردم همه متحیر شدند...))[1].

## ۲_ د پښتنو حکومت:



پیر روښان لیدلي وو، چې پښتون یو غښتلی او دلاور قوم دی او دوی له څو قرنو څخه په پښتونخوا کې خپله پاچاهي درلوده او پر هندوستان یې هم د امپراتورۍ دمامه کوك وه.

په هغه وخت کې چې پیر روښان ژوندون کاوه، یقیناً د پښتنو د انحاط او اسارت دوره وه، د بابر او دده د کورنۍ سلطه او اقتدار د ګنګا له غاړو تر آمو پورې خپور و، د پښتنو تللي عظمت په وینو ژړل او پښتانه د اسارت په سوځند اور کې ورتبدل.

بایزید اولاً په پښتنو کې د خپلې سلطې او پښتني اقتدار احساس پیدا کړ او دوی ته یې د یوه پښتني "امام" او شرعي "اولوالامر" ضرورت وښود او پښتنو دې په خپل شرعي امامت ومانه او ده ته یې شرعي عشر او خراج هم ورکاوه او ده د پښتنو د حکومت یوه "خزانه هم درلوده او لکه اخوند درویزه چې لیکي

---

[1] دبستان، ۲۵۲ ص.

د روښان زامنو سکه هم په خپل نامه وهلې وه[1].

نو روښان پخپل ژوند کې د پښتنو د حکومت اساسونه ایښي وو، عشر او مالیات یې له خلکو څخه ټولول، خزانه یې درلوده او د خپل دولت عایدات یې په جهاد او ملي مصالحو کې صرفول. اخوند درویزه د روښان د زوی شیخ عمر په باب کې هسې لیکي: ((شیخ عمر خود را پادشاه افغانان تصور کرده، حتی که مردم یوسفزی انقیاد بعضی اوامر دنیوی او نموده بل بدادن عشر و خراج راضی شده...[2].

بل یو سند چې د روښانیانو سیاسي تشکیلات ښیي او دوی د پښتنو حکمرانانو په ډول معرفي کوي، د موبدشاه دا نوشته ده، چې د روښان لمسی او د شیخ عمر زوی (احداد) ستایي:

((احداد مردی بود عادل و ضابط... و حق مردم را بمردم رسانیدی و خمس اموال که از جهاد بهمرسیدی، در بیت المال داشتی، و آنرا نیز بغازیان رسانیدی...))[3].

د روښان د شاګردانو او پیروانو په آثارو کې د یوه "امام" او "عادل حکمران" نظریه تلقین شوې ده او دوی پښتنو ته دا ښوولې دي، چې باید دوی له ځانه یو عادل امام ولري او د پردو اسارت ونه مني، دولت وایي:

ودانې یې تمه مکړه زر به وران شي
هغه قام چې نصیب نه وي له امامه
ښه عادل حاکم د درست جهان بنا یست دی
مشه دا جهان هرګز بې اهتمامه[4]

---

[1] مخزن.

[2] تذکرة الابرار، ۱۵۵ ص.

[3] دبستان مذاهب، ۲۵۲ ص.

[4] د دولت قلمي دیوان ۲۴ ص.

بل ځای د پاچا لپاره عدل او رعیت داري داسې لازمه ګڼي:

که پادشاه د جهان شي عدل دې نه وي
میراثي د حرصناك شیطان ملعون یې
په قیامت به یې له حاله پوښتېدو شي
ستا رعیت لکه رمه او ته یې شپون یې[1]

ارزاني د روښان بل ملګری د راعي او رعیت متقابل حال هسې بیانوي:

د رعیت پادشاه راعي دی — رعیت د شه راعي دی
چې رعیت آزاروینه — دی خپل زړه خورینه افعي دی

✻✻✻

پادشاه درخته رعیت بېخ دی — شاه خېمه رعیت مېخ دی
چې رعیت آزاروینه — دین یې نشت شیطان یې شېخ دی

✻✻✻

دا حدیث کړی رسول دی — د هر چا نن هم قبول دی
هر راعي له رعیته — د قیامت په ورځ مسئول دی

✻✻✻

پادشاهي نه ده اسانه — دا وینا نغوږه انسانه!
هر پادشاه به حق وپوښتي — هم لعدله له احسانه

(د ارزاني قلمي دیوان).

## ۳ـ د پښتنو شهنشاهي:

روښان یوازې پر دې نه و قانع، چې پښتانه له خپله منځه یو "عادل امام" او پښتون حکمران ولري او دوی آزاد ژوندون

[1] د دولت دیوان ۲۲۲ ص.

وکړي؛ بلکې د غوريانو او لوديانو د عظمت په تجديد هم بوخت و، چې دده خوب اعليحضرت شېرشاه سوري بېرته تعبير ته ورساوه او د روښان دغه درېيم سياسي مهم هدف و.

روښان دا عزم درلود، چې اول خپله پاچاهي په پښتونخوا کې قايمه کاندي او بيا نو د غزنويانو او لوديانو په دود، بېرته هندوستان هم ونيسي او د پخواني عظمت ډيوه بيا هلته روښانه کړي. دروېزه د روښانيانو مخالف ملا، د روښان دغه لوړ آمال هسې بيانوي، چې دده به ويل.

"لښکرې به کړم بنياد، هندوستان به ونسم، آوازه يې کړله ګډه، هر چې آس لري راځي، د اکبر پادشاه تنګه واړه ځما دي"...[1]

له دې معاصره سنده تاسې ښه معلومولای شئ، چې روښان څه آمال لرل او د دوی معاصرينو د سياسي اختلاف په سبب، په دوی پسې څنګه تبليغات کول؟ بل ځای هم دروېزه د جلال الدين روښاني له خوا وايي:

((چې پادشاه د پښتانه يم، پښتانه راپسې ځي، زه به ماته د اکبر دروازه کړم..))[2]. د روښانيانو سياسي رقباء د دهلي مغول وه او هغو هم د دوی د دفع کولو لپاره خپل ټول عسکري او مالي او تبليغي قواء متوجه کړي وه؛ مګر روښانيان ټول سرفروش او مجاهد خلک وو او لکه چې تاسې ولوستل: د دوی ټول عمر په جهاد او تبليغ کې تېر شوي دي او دا ټوله سعيه او جهد فقط د "پښتنو د آزادۍ او د دوی د تاريخي عظمت د تجديد" لپاره و؛ نو څکه د روښان په آثارو او دده د شاګردان په باقيات الصالحات کې د "آزادي خواهۍ" يو ژوندی روح ښکاره

[1] د دروېزه مخزن، قلمي ۴۱۸ ص.
[2] مخزن پښتو ۴۲۳ ص

دی او د غسې تبلیغات د روښان د ادبي مکتب روح روان ګڼل کېږي.

خو د تعجب ځای دادی، چې روښان د تصوف او سیر او سلوك په درس کې سیاسي روح ننه اېستلی و او د تقوا او خدا پرستۍ له سجادې سره یې ځلانده توره هم په ترخ کې وه.

ده که له نفس سره جهاد اکبر کاوه؛ خو له سیاسي مخالفانو سره په جهاد اصغر هم بوخت و او په دغه لار کې یې سر هم کېښود.






## ۹ــ د روښان دنثر ادبي خصایص

تاسې دمخه د "فني نثر" په بحث کې ولوستل، چې دغه دنثر ډول څنګه پیدا شو او پر پښتو یې څنګه اثر وکړ؟

پیر روښان په پښتو کې د "فني نثر" علم پورته کړ او دغه مخصوص مکتب یې په پښتو ادب کې بېرته کړ چې د پښتو له پخواني نثره سره ډېر تفاوت لري او د "خیرالبیان" د لیك ډول هغه نه دی، چې پخوا سلیمان ماکو خپله تذکره پر لیکلې وه.

دغه سبك: تر روښان وروسته، د درویزه له خوا په مخزن اسلام کې تعقیب شو او وروسته د درویزه کورنۍ او نورو لیکوالو لکه بابو جان او اخوند قاسم او حسین او نورو هم پسې وروزه چې تاسې به ددې ادبي مکتب دوام، پس له زرم هجري کاله ددې کتاب په درېم ټوك کې وګورئ.

دا ادبي سبك نیم منظوم نثر و، چې "سجع" پکې داخله شوه او مهم خصایص یې لاندې بېل بېل ښیم.

۱ـ د اوږدو يا لنډو جملو په آخر کې د "سجع" راوړل، چې دغه سجع هم په اکثر خيرالبيان کې په (آن) (يا آم) ختمېږي، مثلاً قرآن، سبحان، ښبان، کلام، سلام... په دغو جملو کې مختلفې سجع وګورئ.

لرې دې اوسي په پرېزګاري له واړه حرام
بل به نه کښېوزي څما په عذاب کې آدميان.

۲ـ د خيرالبيان په نيم مسجع سبك کې کله کله د کلماتو ربط او تراکيب هم د پښتو ژبې له جاري محاورې سره سم نه دي او کوښښ شوی دی، چې کلمات او الفاظ سره وړاندې وروسته شي او دا کار به يا ارادي و، د يو نوع ريتم او آهنګ لپاره يا به غير ارادي و، د عربي او پارسي تر اثر لاندې مثلاً:



## د خيرالبيان نثر:

۱ـ راوښيه وماته رده او چار د طريقت پخپل فرمان او سحبانه!

۲ـ سرسايه په نور وخاته واجب ده چې وباسي آدميان + هر چه له دغه وړاندې ومري يا وزېږي يا شي مسلمان + سرسايه يې واجب نه شي...

۳ـ په منځ د حرفو د قرآن...

۴ـ پې مشغول دي ډېر ادميان.

## دغه نثر د پښتو پر محاوره سم:

۱ـ او سبحانه! ماته د طريقت رده او چار پخپل فرمان راوښيه!

۲ـ واجبه ده چې آدميان سرسايه په نورخاته وباسي، که له دغه وړاندې څوك ومري يا وزېږي يا مسلمان شي؛ نو سرسايه

نه پر واجبېږي.

۳_ د قرآن د حرفو په منځ کې.

۴_ د ېر آدميان پې مشغول دي.

په دې ډول روښان کلمات او الفاظ له خپله ځايه سره اړه وي او غواړي چې د کلام آهنګ خوندي شي او دا کار د دغه سبک يوه مميزه ده، چې په ټولو آثارو کې ليده شي او تاسې به يې د دې کتاب په دريم ټوک کې نورې نمونې هم مفصلې وګورئ.

۳_ سره له دې چې د آهنګ د ساتلو لپاره روښان د پښتو جملې سره اړوي او د محاورې له جاري ډوله تخلف کوي، بيا هم دده نثر له وضاحته او صراحته نه وځي، خپل مقاصد په فصاحت ادا کوي او له دې جهته خپل نثر ته يو خاص ملاحت هم بخښي او دا ملاحت او عذوبت د اخوند درويزه په مخزن کې ډېر لږ موندل کېږي سره له دې چې درويزه د خيرالبيان په ماتولو کې ډېر کوښښ هم کړی دی. تاسې لاندې د روښان يو څو خوږې جملې د درويزه د کتاب له آغازه سره مقابله کړئ:

**خيرالبيان:**

زه هغه بې پرواه يم، چې هر چار تل بې شريکه، بې مله، بې کالي کړم، نشته ځما محتاجي شريك و مل و کالي وته لکه د آدميان + حال د مخلوقان بدلېږي نور نور کېږي، ځما حال نه بدلېږي، نه نور کېږي لکه حال د مخلوقان.

**مخزن درويزه**

بسم نام د الله خدای دی کار ساز د کل عالم دی د بندګان + رحمان مهربان خدای دی، رزق روزي ورسوينه، مومن و کافرو

جمله و ځانوران رحمان رحیم دواړه مشتق له رحمته، د رحمان معنی مې ووې، رحیم بسیار بخشاینده دی، هوري ډېر به ورکوینه دی خاصه و مومنان.

چا چې پس له روښان او دروېزه څخه هم دا سبك او فني نثر تعقیب کړی دی، دومرې خوږتوب او سلاست او وضاحت چې د روښان نثر لري، دا نور یې نه لري؛ ځکه نو حقاً روښان ددغه مکتب موسس او لومړی واضع بلل کېږي.

۴ـ کوم صریح لهجوي امتیازات چې د شمالي پښتونخوا او جنوبي پښتونخوا یعنې (پختون او پښتون) په لهجو کې شته، د روښان په نثر کې کوم خاص رنګ چې یوې خوا ته مایل وي، نه لیدل کېږي؛ بلکې دی داسې نثر لري، چې د شمال او جنوب تر منځ مشترك دی او د مځنۍ پښتونخوا یعنې (وزیرستان) د لهجې اثر هم ډېر نه په کې ښکاري، مثلاً هغه امالې چې دغه خلك یې لري؛ لکه: مور، مېر ـ دده په نثر کې ډېرې نه ښکاري، ددې خبرې علت هم دادی چې روښان د پلار له خوا قندهاری و او بیا پخپله ده په شمالي پښتونخوا کې تر پېښوره او د یوسفزو تر میرو پورې سیاحت او ژوند کړی و او مور یې د هند په پښتنو کې محشوره وه؛ نو ځکه دده په پښتو لیك کې د ټولې پښتونخوا مشترك لهجوي رجحان لیده شي. مثلاً (مخ یې و او بوته شي) د قندهار پر لهجه سمه جمله ده، اما (زه نژدې یم و آدمیان وته له ځانه) د شمالي پښتونخوا رنګ لري، ترو، بویه، لولي، هوی، ورچانې، داسې کلمات دي، چې په قندهار کې نه مستعملېږي، اما ورڅخه هسې، مبنه، کښېوزي، کښېباسي او نور ډېر کلمات شته، چې د قندهار او جنوبي پښتونخوا د لهجې نمایندګي کوي او بل د شمالي پښتونخوا یعنې د

یوسفزو د لهجې غیر نافي (نه) کورټ په خیرالبیان کې نه لیدل کېږي؛ لکه (له کور نه راغی)؛ بلکې په دې خاصیت کې پوره جنوب لهجې ته ورته دی.

**۵**ـ روښان ځینې خاص خاص پښتو نادر لغات هم استعمالوي، چې په نورو ځایو کې لږ لیدل شوي دي، مثلاً (کړمکړ) د (امر و نهي) پر ځای او (تورکښ) د عسکریت او لښکر پر ځای، (ورمندن) د واجب او لازم پر ځای، (نغوړي) په معروفه یاء، د شنونده او پیرو په معنی. (یون) رفتار او تګ، (تله) د ترازو په مفهوم (کالی) د آلت او اسباب پر ځای (چار) د عمل او کار په مفهوم، (نغوته) تحریك او اشاره، (رده) لار او طریقه، (غوښت) خواهش او هوا، ستروی (عظمت).

دا لغات او کلمات ځینې موږ هم پېژنو او د نورو شاعرانو په دیوانو کې راغلي دي؛ لکه نغوته، غوښت، کالی، یون؛ مګر ځینې کلمات خاص دي، د روښان په استعمال پورې لکه کړمکړ، ورمندن، تورکښ، ستروی او نور...

**۶**ـ ځکه چې روښان پخپل کتاب کې دیني، اخلاقي، عرفاني، فقهي ابحاث سره یو ځای کړي دي؛ نو طبعاً عربي کلمات او مصطلحات چې په دغو ابحاثو یې اړه درلوده، هم دده په نثر کې ډېر دی. لکه صلوة، نبي، سلام، حلال، حرام، رحمن، محبت، بقا، فنا، رحمت، طریقت، توبه، فرض، شیطان او نور...

**۷**ـ روښان ځای پر ځای ځینې خبرې له عربي څخه راوړي. په آیاتو او احادیثو او عربي مقولاتو استدلال کوي، چې دا د پخوانو په آثارو کې لږ وه خاص بیا په نثر کې.

**۸**ـ د روښان ځینې پښتو جملې مستقیماً له عربي څخه

ترجمه دی؛ مګر ده یې عربي اصل نه دی ښوولی؛ خو د لویو صوفیانو اقوال یا د احادیث شریفه مقاصد یې خلص په پښتو کې را اړولي دي او کله آیات شریفه په پښتو ترجمه کوي، مثلاً د (الله الصمد لم یلد ولم یولد) مقصد هسې وايي: ((زه هغه بې پرواه یم، چې هر چار تل بې شریکه، بې مله، بې کالي کړم، نشته څما پلارو زهمن، نه خور، ورور)).

۹_ د افعالو تکرار لکه د نورو متقدمانو په نثر کې چې شته، د روښان په نثر کې هم لیدل کېږي او دا کار دی ډېر کوي، مثلاً: ((حال د مخلوقان بدلېږي، نور نور کېږي، څما حال نه بدلېږي، نه نور کېږي)).

کله کله د کلماتو تکرار په نښتو جملو کې راځي او دا بد هم نه معلومېږي؛ بلکې ښه خوند کوي او د مقصد د توضیح لپاره په ډېر سلاست او جزالت تکرار کېږي؛ لکه: ((زه یم په وېښته، په پوست کې د آدمیان + په وینه په غوښه د آدمیان + په رګ په پله د آدمیان + په هډ په ماغزه د آدمیان +)).

۱۰_ د افعالو حذف هم په متعاطفو جملو کې د روښان په نثر کې لیدل کېږي:

مثلاً په لوړو جملو کې ابتداً (زه یم) راغلی دی، چې درې وروسته جملې هم په قرینه سره هغه (زه یم) لري؛ مګر حذف شوی دی.

په دې ډول نو روښان د قدماوو سبک پخپل نثر کې د "تکرار" له امله هم ساتي او کله کله د افعالو حذف هم د "فني نثر" په ډول کوي او یو مخلوط سبک ایجاد وي.






# ددې ټوک پای

په دې ډول زموږ د پښتو ادبیاتو تاریخ، دوهم ټوک د پیر روښان پر بحث ختم شو او د هجرت د زرو کالو د پښتو ژبې تاریخ د اسلام له ابتداء څخه تر (۱۰۰۰ هـ) پورې راورسېده.

دا کتاب ما په ۱۳۲۵ ش په کابل کې لیکلی و؛ خو د ټول کتاب په نشر موفق نه شوم او اوس مې په سر کې یو څو نوې څېړنې پورې ونښلولې او دادی پښتو تولنې ته د خپرولو لپاره وړاندې شو.

امید لرم چې دغه مباحث به ښاغلو لوستونکو ته ګټور وي او که ژوند پاته و؛ نو به ددې لړ دریم او څلورم ټوک هم ولیکم.

کابل. شش درک

۱۰ حوت ۱۳۴۰

عبدالحی "حبیبي".






